


# ۱۲ گرامه ماغزه

شهرت ننگیال

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# دوولس گرامه ماغزه

ليکوال: **شهرت ننگيال**

خپرندوی: **دانش خپرندويه ټولنه**

د خپرېدو نېټه: **وږی- ۱۳۹۴ لمريز**

چاپشمېر: **۱۰۰۰ ټوکه**

چاپ نوبت: **لومړی**

ديزاين: **سپين سهار**

چاپځای

**اسد دانش مطبعه - کابل / ۰۷۰۰۴۴۹۲۹۸**

**د تر لاسه کېدو پتې:**

(۱) ميوند وات، پخته فروشی کوڅې ته مخامخ، احمدي پلازا، څلورم پور،

دانش کتابخانه- کابل/ ۰۷۷۱۱۴۴۳۱۷

(۲) ميرويس ميدان (کوټه سنگي)، بهزاد کورس ته مخامخ،

مينه يار مارکيټ، دانش کتابپلورنځی/ ۰۷۸۵۲۰۰۲۱۲

(۳) اسحاق زی مارکيت، څمکتل، دانش کتابخانه- جلال آباد/ ۰۷۸۶۹۸۸۶۵۵

# د خپرندويې ټولنې يادښت

دوولس گرامه ماغزه، د افغانستان د تاوجنو سياسي پرمختياوو پر منظره کشې او تحليل دوارو راگرځي.
دغه تصويرونه له ټولو ربښتيني او ژوندي دي، چې ليکوال راساً د خپلو سترگو لينز کې له راخيستو وروسته په تورو ټکو خورا په زړه پورې انځور کړي دي.
د هغو بوږنوونکو پېښو او لړزوونکو پرمختياوو انځورنه چې له ميډيا پټې راپورته شوې، او د خلکو له سترگو الونيا غزېدلې دي.
ليکوال د ډېرو پېښو او پرمختياوو خپله شاهد دی، ځنگ ته يې پاتې شوی او له نژدې يې څارلې دي.
ځکه خو د لومړي لاس موادو په توگه دغه يادښتونه د راتلونکي تاريخ لپاره د نغدو لاسوندو زېرمه برابره کړې ده.

ښاغلی شهرت ننګیال له قضاوت تر ډېره ډډه کړې، په دې توګه یې د لوستونکي دغه حق خوندي کړی دی.

ناپیلتوب ته یې هم خپله ژمنه پاللې لکه یو امانت پېښې او پرمختیاوې یې پخپله اصلي بڼه او څېره زموږ مخې ته ایښې دي.

د دغو یادښتونو ارزښت په دې کې دی چې نن او د نن په رڼا کې نه دي کښل شوي پرون یې په هماغه پرون کې د پرون په دود او موډ قلمبند او محفوظ کړی دی.

هغه مهال چې پر هېواد د لومړنۍ تپلې جګړې اور لګېدلی و، دا اور څنګه ولګېده، چا ولګاوه چا لمن ورته وهله، څوک یې تاو ته پنډ وو، چا پرې اوبه، چا تېل غورځول ټول د دغه کتاب منځپانګه ګرځېدلې.

دانش خپرندویه ټولنه د دغه کتاب پر خپراوي وياړي، ښاغلي شهرت ننګیال ته مبارکي وایي او لوستونکي یې لوستلو ته رابولي.

درنښت

دانش خپرندویه ټولنه

هزاران سال با فطرت نشستم
از خود ببریـدم و با غیر بستم
ولیکن سر گذشتم این سه حرف است
تراشیدم، پرسیتدم و شـــــکستم

# لړلیک

# سېلابي اوبو کې جل وهلې تنده

دا د هغه مهال يادښتونه، برداشتونه، انګېرنې، خاطرې، يونليکونه او د سياسي سوچ خورې ورې نخچې او زاوېې دي چې ژوند بايلله، مرګ ګټله. د هغه وخت فکري مود او سياسي فېشن ډيزاين چې وخت يوازې د مرګ برېوکی الوزولې او د ژوندانه دنياګۍ يې د وحشت له دوړو او خځلو ډکوله.

موږ برباد نسل هم دغو ځپو په خورا بې دردۍ يوه بله خوا غورځولو - د ساحل په تمه مو کله سرونه له کمرونو سره لګېدل، کله به د نهنګونو او مګرمچو خولو ته لوېدلو...

لکه د سېلاب اوبو کې جل وهلي تږي چې د سرابونو په لالهاندۍ او بې دمې ستومانۍ اوښتي وي...

دغو برېوکيو زموږ سترګې له خاورو خځلو ډکې کړې، خو له ځېلې مخې يې کاږه نه کړو، ځېله لاره يې را نه ورکه نشواى کړاى ...

دا يوه کيسه هم ده - د يوه مجاهد ولس د مېړانې حماسه او پر دغه اتل ولس د تپليو مشرانو د ذهني پستۍ او سياسي خوارۍ شر مناک داستان ... هغه چې جهاد يې له لاسه پر فساد واوښت، پر اسلام او افغانيت يې بولۍ ولګوله، ځېل خلک يې له يرغلګرو په زيات قساوت او شقاوت وځپل - د ځپل مېړني ولس د عزت او عظمت شمله يې د پرديو پښو ته تيته کړه، ملي، ديني او افغاني ارزښتونه يې په خورا نامردۍ

لیلام کړل ...

په حقیقت کې دغه یادښتونه د اسلام او جهاد تر نامه لاندې د ملت پر مړی د چاړې راکښلو د خونړي فلم د ځینو صحنو ننداره ده، د مرگونو پېښو او پرمختیاوو نیمگړي او تت تصویرونه، د هغه پرون تصویرونه چې تر نن یې د وحشت تیارې غځېدلې او لا سبا شوی نه دی...

دغه یاد دښتونه هماغه وخت احمد ضیاء بابري په مکنتاش کمپیوټر کې کمپوز کړي وو، هغو ورځو کې چې کمپیوټر پښتو توري نه لرل، د احمد ضیاء په گوتو د دغو یادښتونو پروف له ما په لېږد را لېږد کې بې درکه شول - دوه کال وړاندې چې پر یوه بله ورکه پسې گرځېدم پر دغو کاغذونو ور پېښ شوم.

یا خدایه! اوس په دې څه وکړم ...؟

د دغو پاڼو په موندلو ما ته ځان داسې برېښېده لکه خپله لمن پر سر اړوم ...

له سره د پروفو کمپوز اسانه، نه وو، چې یو خو یې پښتو توري نلرل - بل د پروفو تصحبح له لوستو ایستي و.

روښنا وردگ خور ته مې مخ واړاوه، له واره یې ښه کړه، په لنډ وخت کې یې پروف را وسپارل، خو زه لندن ته ولاړم، په راگرځېدو د ناروغۍ یوې بلې خپې لاندې کړم، تر هغې مې چې پروف لوستل د روښنا لپ ټاپ ټول متن خوړلی و.

دا ځل مې اسد جان ته غاړه کږه کړه- ده قاري صاحب ته د پاڼو سپارلو حکم راکړ - ما په تلو کې قاري صاحب ته د پروفو پاڼې ولېږلې، خو له ولایت زما په راگرځېدو یې لا کمپوز بشپړ شوی نه و - نژدې کال

له گران عبدالهادي سره پاتې وو چې دی په لوست او ازموينو بوخت و، ما د کتاب له کمپوز د ده لوست او کاميابي درنه گڼله ...

له پروفو کمپوز خورا زړه خوږينې چاره ده، زه له روښنا خور او عبدالهادي منندوی يم. د کتاب د پيل برخه نقيب الله مل کمپوز کړې دغسې حبيب جان هم د پروفو تصحيح کې ډېره خواري کړې د دوی مننه پر ځان پور گڼم. زه دا منم چې دغه يادښتونه د پرون په موډ او منطق راگرځي - متن، موضوعات او اوډن پرېږده، سرليکونو کې هم ما کوم بدلون نه دی را وستی، دا مې غوره بللې د پرون ناخوالې په هماغه کاني تول ته کېږدم... لوستونکي ښايي پرون، د پرون له زاويې و ارزوي د نن له عينکو دې نه گوري، د پرون کاڼي تله دې پسې راواخلي هماغه ځپه او سياسي فېشن پام کې ونيسي، پرون ته خپل سر ور دننه کړي، نن ته يې را نه ولي ... قضاوت د لوستونکي حق دی - ځکه خو ما د ښه او بد له قضاوت او احساساتو پرته خپل يادښتونه ليکلي او را غونډ کړي دي.

وايي اختر چې تېر شي نکريزې پر دېوال تپئ... كه دغه پاڼې پر دېوال تپلې نکريزې راخېژي، پر رنگ او سوروالي يې سترگې نه شي پټېدای ... همدا سرخي د ملي مبارزې سورمخي ده. کتاب له ولسمشريزو ټاکنو دمخه چاپ ته چمتو و، خو د ملگرو له دغې اندېښنې چې کېدای شي منځپانگه يې د ټاکنيزو تکتونو پر خلاف وکارول شي، له ټاکنو وروسته کړ.

خو ټاکنو موږ يو ځل بيا د تاريخ د تکرار له نخرې سره لاس و گريوان کړو. په کومه شرمېدلې بڼه چې جهادي مشران د پېښور گورنر هاوس، بگراميو، اسلام اباد کې د ترکي الفيصل، جنرال حميد گل، اعجازالحق،

نوازشریف، غلام اسحق خان پر وراندې ګډ شول، د اوباما، جانکیري، یانکویچ، نیکولاس هایسم او ... په مخ کې هم په هغه بڼه نڅا تر سره شوه: د اسلام، جهاد، شریعت له شعارونو سره د دیموکراسی، مدني حقونو د خلکو ارادې ته د درناوي هغو حساب او انجام برابر وخوت ...

اوره دې په اوره منت دې په څه ...؟

د پرون لوبه د نن له ډرامې سره څومره ورته وه ...؟ یوازې د ریفري او پروډیوسر توپیر ... له انلوګ ډیجیټل ته د لوبې او ډرامې د ننداري فرق ... زموږ ملت چې وار په وار د انقلاب، کارګر، خواریکښ ... جهاد، اسلام، شریعت او دموکراسی په نامه یرغمل دی، زاړه ګنا کاران غواړي له سره د ملت اراده برمته وساتي ...

یو ځل بیا دغه یادون ته ورګرځم چې د دغو یادښتونو د چاپ یوازینی موخه په تورو ټکو د پېښو او پرمختیاوو د انځورنې هڅه ده - نه د چا د محکومیت او برأت نیت ...

که دې کې کوم رنګ روښانه، شوخ او یو نیم تت او تیاره راغلی وي لامل یې زما کمزوري ده چې پر یادون یې سترګې نه شوای پټېدای.

دغه پاڼې زما د ژوند د ضایع شوې برخې هغه پانګه ده چې له مودو زما د زړه او اوږو بار ګرځېدلی ... له لوستونکو مننه که د دغه باره په اوچتولو کې یې را سره مرسته کړې ...

له دغو یادښتونو ځینې ما ـ خپل ځان لپاره کښلي، مانا د خپل پام غلطولو لپاره... په بله وینا دا هغه وخت زما فیسبوک او ټویټر دی ...

۲۹ کتابچې، ډایرۍ مې له دغسې یادښتونو ډکې دي ...

یو ځل مې زړه کې راتېره شوه چې له سره یې و کاږم ، نه پوهېږم همداسې به ښه وو، که له سره مې لیکلي وای ...؟

ډایري به څه ډول کاږي ...؟ چې هر چوکاټ ته یې غورځوي په هماغه یوه جولۍ کې به یې په راټولولو ځان اړ ګوري، چې دا ستا ټکي خبرې نه بلکې هغه څه دي چې تا لیدلي اورېدلي دي ... بیا هم له بده بخته چې زموږ پرون سبا شوی نه دی، د نن خبره ته او پته ده، زموږ ارزونه او قضاوت هله متوازن او ریښتینې راحتی شي چې پرون له ټولو کردارونو او کرکټرونو سره له هغسې عینکو وګورو چې د راتلونکي لپاره ترې د عبرت درسونه تر لاسه کړای شو - که نه د پرون د کړاړې او وینو ترې ډېښتې ستومانه سفر به مو کله هم دمه شوی نه وي.

له لوستونکو د هر ټکي او خبرې د منلو هیله نه شم پاللی چې دا کوم تاریخ نه دی، زما خپله مشاهده ده، د کمزوریو، تېروتنو اړخ یې جوت دی، له لیدلیو هغو پرته نورې زما خپلې اندازې او اټکلونه دي، ډېری سرچینې را نه هېرې دي، په تسلسل کې یې هم ستونزې ګورم ځینې پرمختیاوې له موضوع سره د اړیکي له مخې تکرار راغلې، چې دغه یاددښتونه ما په پاڼه پاڼه، لارو، موټرو - منډه او پټه کښلي دي.

بې کمپوزه نور یادښتونه مې پرېښودل، که ژوند و، هغه به بل ټوک کې را غونډ کړم - وګورو یوویشتمه پېړۍ کې د شلمې هغه خنګه لګي...؟

خکه خو له درنو لوستونکیو وار له مخه ښښنه غواړم.

یار زنده صحبت باقي

**یاد ماضی عـــــذاب ہے یا رب**

**چین لے مجھ سے حافظہ میرا**

۶/۲۰/۱۳۹۳

ننګیال

# نیمګړي رښتیا

رضا علي عابدي په دې اند دی چې ژورنالست ښايي زړه ونلري... ددې مانا دا نه ده چې بې زړه یا ډارن وي... مطلب د اچې د ده موخه رپوټېنګ او خبر دی، دا نه چې د غمونکو، بوږنوونکو پېښو په لیدو له خواشینۍ په اه، اوف لګیا اوسي.

زړه ونه لري، دا چې په چا بد نشي، دلته زړه هغه خنډ دی لکه سیاست کې سړی ورسره په جنجال اوښتی وي.

یوه نیمه لسیزه وړاندې د BBC فارسي څانګې لطف علي خنجي یو حیرانوونکی لیک لوست:... تاسې په مرګونو، زخمونو او بچاړیو کې موندلې.... پر همدې د خپلې روزۍ ګاډی چلوی، خدای(ج) به داسې ورځ را نه ولي چې کراره کراري وي او تاسې د خبر لپاره څه ونه لری....؟

خنجي ویل: پر موږ دغسې ورځ وار له مخه راغلې... هغه ورځ دومره په خیر او کرار تېره وه چې پروګرام خپراوي ته چمتو و، موږ خبر نه و موندلی...

یو بهرنی ژورنالستې ته مې افغانستان کې د زېږون پر وخت د میندو د مړینې کچه یو څه مبالغه ۴۵ سلنه ښوده... په لنډه یې راپرې کړه : بچي دې نه راوړي...

لکه ژورنالستان رښتیا زړه نه لري.

ځینې حقیقتونه افسانه وګرځي، خو ځینې افسانې حقیت خېژي...

زه چې له کابل وتم، کابل ناکرار و، خو کابل اباد و.... چې بېرته ورته راوګرځېدم کابل ویجاړ و... زما په مخ کې وران شو، ما په خپلو سترګو د کابل ورانی لیده، زما پر وړاندې کابل ورانېده... د کابل بربادي ما په خپلو سترګو لیدله...

کابل د خپلو فاتحانو د هوس قرباني و، دا د کوم پردي هېواد یرغلګر نه وو، چې پر کابل یې د توغندیو، لوټماریو او وحشت قیامت راتیټ کړی و. د خپل هېواد، خپلو خلکو د فتحې په هوس کابل کې د مرګونو او بربادیو هنګاه توده وه. زه خپله د مرګ په منظره او تجربه اوښتی وم... زه مړ وم، خو د بیا بیا مرګ لپاره ژوندی پاتې وم...

د کابل کیسې ډېرې دي، یو وخت د کابل کوتوال مشهور و، بیا یې ښاروال یادېده... کوتوال په زور، ونیسه وتړه... ښاروال په خدمت...

ښاروال کابل ورغاوه- له پامیر سینما تر حضوري چمن یې واټ ویوست دومره پراخ چې پامیر سینما سره به سړی ودرېد حضوري چمن یې لیدای شوای. د میوند واټ یې نوم شو.

له میوند واټ یې تر پښتونستان څلورلارې نادر پښتون واټ وغزاوه. ښاروال به کړی ورځ په دوړو خاورو کې له کارګروو سره لګیا و. غرمه به یې له ګندنې سره ډوډی تاووله... مرحوم غلام محمد فرهاد یادوم، د کابل لومړنی انتخابي ښاروال.... څکه خو کابل هر چا ته غېږه پرانیستې وه، ټول دغه غېږ کې بسیا وو. د هندو، مسلمان، پښتون هزاره، ازبک هتې څنګ په څنګ خوندي وې. د یو بل عقیدې او ژوند دومره درناوی چې د روژې غرمه کې هندوانو دوکانو ته پردې نیولې. هندو مسلمان پښتون، تاجک هزاره په ګډه په مینه د ژووند ارابې ته دیکه ورکوله- چا د بل سر کې مېخونه نه ټک وهل، د مړي رقص دود نه و، له چا غوړونه

پوزې نر پرې کېدې، په تازه مېوو کې يې زهر نه پيچکاري کول....

د کابل د وياړ او خوښيوو کيسې ډېرې دي، د ودان سمسور کابل خاطرې ژوندۍ دي، خو دا وخت کابل زخمي دی، د کابل ښايست شهيد دی کابل کنډاواله دی، هديره دی. ډار ، وېره، وحشت د کابل برخليک گرځېدلی، لکه د مغولو، چنگيز هلاکو لښکر پر کابل ورختلی...

د کابل فاتحانو نوم لگي، د هيبت او وحشت کيسې يې خپرې دي...

زه ظاهرا په وران ويجاړ کابل کې ژوندی گرځېدم، خو دننه مړ وم، لکه فلمو، ناولو کې چې يو مړی او لاش راپاځېدلی وي، گرځي... چې دلته «رقص مرده» دود و، ځکه خو زه تر اوسه مرم... کله په يو لاس کله په بل، نن د يوه په گولۍ سبا د بل، لکه د بيا بيا مرگ لپاره ژوندی پاتې وم... لکه هغه مجرم چې قاضي په يوار په شل ځلې اعدام محکوم کړی وي.

ما د کابل همد غسې مرگ او محکوميت ليدلی... د شېرپور مرگ، د ميوند واټ جنازه د چندولو تالان، د دارلامان لوټمار، د چهلستون بربادي.... هغه وخت چې شور بازار کې د ژوند مړی زيندی وه، يواځې د بارودو او گوليو انگولا گډه وه...

د ډاکتر صمد علي حکمت کتنځی کنډواله، د حسين حسرت معاينه خانه ويجاړه وه... خرابات نړېدلی،،، د استاد سراهنگ او استاد رحيم بخش مېنې ويجاړې دي.... بارانه کوڅه کې تيغلي بگلامي بگلامي چيغې نه وي، کافروشۍ کې د خليفه رازق دوکان دړه پرمخې پرته وه...

سرچوک کې د ملا ازبک دواخانه د موتي سېنگ مطب نړېدلی، د کرم چند د ټوکرانو دوکان لوټ دی...

د صدارت له څلور لارې د رام پرکاش عکاسخانه او د پانو څای ورک دی... د حضوري چمن سینه ټانکو  شودیاره اړولې- د جشن سیمه وحشت پر سر اخیستې، کابل ننداري، بهزاد،د فرخي سیمنا کنډواله ده.

پر حبیبه، غازي، رحمان بابا، خوشال خان لیسو د توغندیو خولې ښخې دي.

نادرشاه روغتون، ابن سینا.... کې د مرګ اتڼ ګډ دی، پر کابل پوهنتون د وحشت دیوانو ګونډه وهلې...

کابل له جګرو ویجاړو او له جګړمارو لوټ دی... د جنګیالیو، ملېشو، مجاهدینو، جګړه مارو هر یوه خپل قیامت دی... کابل زخمي دی، د کابل ښکلا پر هر ده.

فاتحان یو په بل پسې پر کابل، د کابل په واټونو، کوڅو راځغلي کابل برباد دی...

کلونه تېره شول، خو زما د وطن د وینو داغونه تازه دي، وینې بهېږي، زخمونه ناسور دي.... د پرهرونو خولې خلاصې دي.

د غمیزو، بربادیو او جنګیالیو یواځې بنې او څېرې بدلېږي، په نویو شعارو او څېرو د مرګ او وحشت لوبه توده ساتي....

د ازما د وطن تپلی برخلیک دی... خو زما ملت ژوندی دی، د نړۍ هر هېواد چې دومره اوږده موده له مرکزي حکومت، نظام او سیستم بې برخې پاتې شي، ژوندی او متحد نشي پاتېدای.

افغانستان د لوي هېواد او افغان د ستر ملت په توګه ژوندی، یو موټی هېواد او ملت دی....

زما په سینه کې زړه دی... یوازې د سیاست سینه له زړه تشه څېژي... څکه خو په ګرانه د زړه خبرو ته ورماتېدای شي... خو قلموال

د زړه له منلو نشي تېرېدای، د زړه اوري، له زړه وايي او د زړه مني، له زړه مجبور وي... چې قلمونه د زړو په وينو چلېږي... د قلم پر تقدس الله تعالی لوړه کړې. نه يوازې قلم بلکې د ټکو او لفظون پر حرمت هم...

پر دې جګړې همېشه له برې پرته غزېږي... د دغو جګړو برى هم ماتې راوځي هره غاړه ځان ګټونکی ګڼي، خو دواړو بايللې وي... دلته برى يوازې خوب پاتې شي، د حقيقت تعبير نشي ترلاسه کولای.

د بايللې جګړې نيمګړې رښتيا!

دا زما خپل رښتيا دي، زه منم دلته د هر چا خپل رښتيا دي. خو زما رښتيا د بل درواغو له پاره نه دي... قضاوت د لوستونکي حق دی.

د وخت جبر، مسلط اختناق، ترينګلي حالات او ډار زما هغه کمزوري او پړه ګرځېدلی چې ددغو يادښتونو په ليکلو راغونډولو کې يې زما پر وړاندې کومې شلولې... ځکه خو لوستونکی ښايي ((بين السطور)) خپله را وباسي... دا د لټون تجسس او جستجو هغه صلاحيت دی چې لوستونکي خپلو راپورته کړيو پوښتنو ته پر ځواب ارباسي... د ((بين السطور)) د لوستو لپاره د سر پر سترګو سربېره د زړه سترګو ته هم اړتيا ده... هيله ده د زړه په وينوو کښلې دغه پاڼې د زړه په سترګو وګورئ.

ښنه غواړم که د زړه خبرې پر مغزو ښې ونه لګي...

د بايللې جګړې نيمګړې رښتيا

**درميان قـــهر دريا تخته بندم کرده ای**

**باز ميگوی که دامن تر مکن هوشيار باش**

۱۳۷۴/۱/۲

# له پردي تيري تر تنظيمي جگړو

# (مذاکرات)

## ملګري ملتونه، سيمه ييز اړخونه

## کورني مرکچيان

د افغان ربړې اوارى لومړى پلا د ژېنو مذاکراتو تر سرليک لاندې ۱۹۹۲کې د ملگرو ملتو لخوا نژدې شپږ کاله وشاربل شو.

د خبرو پروسه د ملگرو ملتو سرمنشي خاوېر پيرېز دېکوېلار ځانگړي استازي کوردوويز پر مخ وړه، د ۱۹۸۸ د اپريل ۱۴مه يو تړون دريو سندو کې، څلورو تنو هر يوه د کابل له اړخه د بهرنيو چارو وزير عبدالوکيل، د پاکستان بهرنيو چارو وزير زين نوراني، د امريکا بهرنيو چارو وزير جورج شولتز او د شوروي اتحاد بهرنيو چارو وزير اېدوارد شېواردنادزې په لاسليک اعلان شو.

ژېنو خبرو افغانستان کې د سولې په پرتله د شوروي پوځيانو وتلو ته د لارې برابرېدو موخه لومړى گڼله، پاکستان د مداخلې مخنيوي د ((رسمي پولو)) تر منځ د دېورند تېلې کرښې د رسميت پېژندلو په نيت د ربړې يو لورى برمته کړى و.

کابل له دغو خبرو سره د خپل مشروعيت ثابتولو هيلې پېيلې وې، امريکا خپلو اوږدمهاله موخو او گټو ته لار، لوري او گودرونه کتل -

ځکه خو د ربړې اوارې ته سالم میکانېزم او د جګړې د پای ته رسېدو لومړیتوب ته له هماغه پیله نه دا چې په ټېټه وکتل شول بلکې له سره د خبرو اجنډا کې نه و نیول شوې.

ژېنو خبرو یوازې له افغانستان د شوروي لښکرو وتلو ته مخه ورکړې شوه، جګړه یې پای ته ونشوی رسولی، د دغه تړون په مټ د ۱۹۸۸ د می له پېنځلسمې د شوروي عسکرو وتل پیل او د ۱۹۸۹ د فبروری پر ۱۵مه بشپړ شول، خو جګړې دوام وموند، سوله را منځ ته نه شوه او یو ناپېیلی حکومت جوړ نکړی شو - د ژېنو مذاکراتو اجنډا کې د جګړې مخنیوي، د سولې ټینګښت او ناپېیلي حکومت جوړېدن ځای نه شوی لرلی، چې د خبرو اړخونو او بهرنیو ځواکونو خپلو ګټو او موخو ته د رسېدو هیلې پاللې، ځکه خو د شوروي عسکرو له وتلو سره نه دا چې جګړه پای ته ونه رسېده بلکې لا پسې وغځېده او خونړۍ شوه.

د ژېنو مذاکراتو بهیر کې کوردویز افغان ربړه ۹۵ سلنه اواره اعلان کړه، چې له امله یې د کډوالو تر منځ د ېړته ستنېدو تلوسه دومره وغوړېده چې دېرې کډوالو د خپل بار بسترې را غونډولو تابیا ښودله.

استاد پژواک له حقوقي او دېپلوماتیک پلوه له هماغه پیله دغه پروسې ته ګوته ونیوه، افغان مجاهد او مجاهد ولس کې یې په دې اړه په پاخه سیاسي منطق او ملي لیدلوري ولاړې لیکنې خپرې کړې چې د ولسمل په اهتمام هماغه وخت په کتابي بڼه چاپ شوې.

استاد پژواک په هر ډول منځګړیتوب او اوارې کې د افغانانو د ملي ارادې د درناوي غږ پورته کړ او د پاکستان له خوا یې د افغانانو استازیتوب مردود ګاڼه. له بده بخته تنظیمو د استاد پژواک له سیاسي بصیرت، دېپلوماتیک منطق او ملي درایت ګټه پورته نکړی شوه، په وچ

او شعاري مخالفت ودرېدل. لکه څنگه چې افغانستان د امریکا له لاسه د شوروي کومي ته ولوېد، دغسې د ملگرو ملتو کاواکيو د افغانستان ربړه د يوه بل شر غېږې ته وروغورځوله.

استاد پژواک تر نړیوال نظارت لاندې یوه ځانگړي کنفرانس چې لاندې اړخونه پکې برخوال وي وړانديز درلود...

۱- د ملگرو ملتو د امنيت شورا دايمي غړي.

۲- ټول افغاني گوندونه/ تنظيمونه د خلق، پرچم په گډون د گوند په توگه، نه د حکومت.

۳- د اسلامي کنفرانس استازي.

۴- د ايران، پاکستان استازي.

د وړاندیز له مخې ملگري ملتو ښايي د سولې لپاره د تکر د مخنیوي په موخه خپل ځواکونه چمتو او د آزادو ټاکنو د څار لپاره یو پلاوی ټاکلی وای په دې شرط چې د افغانستان گاونډيان د ملگرو ملتو ځواکونه او ټاکنو پلاوي کې برخه ونلري، د ټاکنو پایلې باید ملگرو ملتو تضمین کړې وای. عبوري حکومت ښايي د اساسي قانون مسوده رامنځ ته کړي او د لویې جرگې جوړېدو ته مخه پرانيستې وای...

د امریکا او پاکستان هوس د شوروي په ماتې نشوی خړوبېدی، ځکه خو پخپلو ژمنو نشوی درېدی.

سیمه کې د شوروي او امرېکا د موخو، گټو او غوښتنو توپير څه کېدی شوی...؟

سړی ویلی شي چې امریکا د بل پر اوږه د ټوپک ايښودو پالیسي پامور گوري...

لویدیز او امریکا وار له مخه د شوروي تیري پر ضد د افغانانو جگړه

د کمونېزم او اسلام جنګ ګرځولی، ځکه خو جګړه د افغانانو له ارادې دباندې وغځېده... امريکايي او لويديز سکالران- پروفيسوران د اسلام او جهاد په ليکچر بوخت وو.



له همدې ځایه وه چې د نړۍ له گوټ گوټ څخه جنگیالي دغه جهاد ته راوبهېدل. هېچا ددغو جنگیالیو سبا ته ونه کتل... که ددغو جنگیالیو اجندا د افغانانو له هغې سره په ټکر کې راوځي، امریکا به د خیر غونډۍ ته ختلې وي...؟

ضیاءالحق غوښتل تړون د مجاهدینو مشرتابه لاسلیک کړي، که نه وي لږ تر لږه د مجاهدینو پلاوی ژنیو کې وي، خو مولوی خالص د اتحاد د مشر په توگه نشوای چمتو کېدای ژینو ته ولاړ شي. جنرال ضیاء له ده وغوښتل د ژینو سفر او د سند لاسلیک ته غاړه کیږدي، خو خالص له ریاست استعفا وکړه.

حکمتیار د اتحاد موقت مشر شو، خو وړاندې له دې چې د مجاهدینو پلاوی ژېنو ته ولاړ شي جونیجو د ژېنو تړون لاسلیک کړ - ده د جنرال ضیاء الحق د خوښې پر خلاف په ټول گوندیز کنفرانس کې د ژېنو تړون د لاسلیک موافقه تر لاسه کړې وه - له همدې امله ضیاء الحق د ده حکومت ړنگ کړ. خو د ژنیو تړون لاسلیک شوی و ...

له دې دمخه د اوجړي کمپ «د افغان جهاد د وسلو او مهماتو ډیپو» د چاودنې پر پلټنو د جونیجو ټینگار، د ملکي حکومت او جنرالانو تر منځ ترینگلتیا غورولې وه... خو د ژېنو تړون پر لاسلیک بیړې د جونیجو حکومت تغر ور ټول کړ...

که ژېنو تړون کې د ناپېیلي-موقت حکومت ټینگښت پاموړ بلل شوی وای، ښایي د وروستیو جگړو او بدمرغیو مخه نیول شوې وی. والله اعلم

په دننه کې د پخلاینې او روغې جوړې هره هڅه د مقابل لوري پر حذف او تسلیمېدو را گرځېده. د کابل سوله د مجاهدینو د تسلیمېدو او واک کې د گډون په غوښتنه را ټوله وه، مجاهدینو کابل رژیم ایله د

ښښنې وړ ګڼلی شوی..

یوه غاړه هم په مناسب وخت د ناپیلي حکومت ټینګښت ته نشوی ورګرځېدی، هرې غاړې له سولې خپل ناسم تعریف او تصویر درلود، چې د سولې تولمنلی او ښتینی تعریف نشوای ګڼل کېدای.

مجاهدین او کابل رژیم دواړه داخلي اختلافاتو او ډلبندیو د پټو معاملو او توطیو په شر او د ملي ګټو او ارزښتونو پر سر د بې توپیری او سوداګری په هوس اړولي وو.



چـې خـبر پـه گمراهيـو د رڼـا شـوم
زه د سـتورو لـه کاروانـه را جـلا شـوم
د سـحر سـتوريه پرېوځـه چـې سبا شـو
زه پـه ټولـو رهبرانـو ناويسـا شـوم

«تقويم الحق کاکاخېل»

# بې منزله لارې

۱۳٦۵ لمريز کال د افغانانو د مقاومت د عروج کال و، روسانو زموږ پر هېواد د پوځي تيري اوم کال پوره کاوه، وخت د روسانو پر زيان و - هره شېبه چې تېرېده، له يوه نوي گوزار سره مخامخېدل، نړۍ د تيري کوونکيو په توگه محکوم کړي وو. له بلې خوا د جگړې د ډگر تاوانونو د روسانو پر اقتصاد ملا ماتوونکي گوزارونه کول.

د پخواني شوروي اتحاد د بهرنيو چارو وزير شېواردنادزي وويل: شوروي اتحاد کال کې لس مېليارده ډالر د افغانستان په جگړه کې تاوان گالي.

روسان د عصبانيت او غوسې په حال کې وو. هغوی خپلو اسلافو او په افغانستان کې خپلو اجنټانو ته په قهر وو او له هغوی يې له وضعې نه د وتلو ابتکار غوښت، د هغه وخت شوروي واکمن گورباچوپ په خپلو پوځونو فشار راوړ، د جگړې د چټکتيا او لا وحشي کولو قومانده يې ورکړه او د مقاومت خپلو لپاره يې د ټاکلې مودې کرښه ټېره کړه. د دې تر څنگ يې د خپلو گوډاگيانو په منځ کې بدلونونه هم پامور گڼل.

له همدې ځايه وه چې په کابل کې د کمونېست گوند مشرانو هم د قدرت لوبه توده کړه، هر مشر او د هغه گروپ غوښتل ځان گورباچف او د هغه نژدې ملگرو ته د نوې وضعې او حالاتو په غوښتنو او د روسيې د گټو په کاڼي پوره ثابت کړي. ډاکټر نجيب د خپل ځانگړي استعداد او مهارت له مخې د خاد شبکې له نژدې اړيکو په گټه پورته کولو د گورباچف مغزو ته د دغې خبرې په رسولو بريالی شو چې دی د راتلونکي پړاو لپاره له نورو زيات اغېزمن ثابتېدای شي. دا داسې وخت و چې په شمال کې د احمدشاه مسعود او روسانو د موافقې له مخې اوربند و او د جگړې تول لنگر د هېواد په ختيزو، جنوبي او جنوب لوېديزو سيمو پروت و.

ډاکټر نجيب په ډېره ځيرکتيا له دې گټه پورته کړه او گورباچف ته يې د يوې غونډې د وقفې په منځ کې په داسې حال کې ځان ورساوه چې هغه د تفريح لپاره قدم واهه.

نجيب الله گورباچف ته وويل: اوس ټوله جگړه او مقاومت د پښتنو په سيمو کې روان دی، دی (نجيب) له دې امله چې پښتون دی کولی شي د مقاومت شدت راکم کړي، په دې ډول نجيب له دغه فکتور د يوې مهمې نقطې په توگه د گورباچف د پام اړولو په برخه کې استفاده وکړه.

له بلې خوا د شوروي زوړ قيادت د ماضي برخه گرځېدلې وه، گورباچوف د خوان زعامت نوې خبرې راتولې کړې وې، افغانستان کې هم د دغسې تجربې له اړتيا سترگې نشوی پټېدی.

د ١٣٦٥ په پسرلي کې د خلق دموکراتيک گوند اتلسم پلينوم جوړ شو، د دغه پلينوم په پايله کې ببرک کارمل لېرې او ډاکټر نجيب د گوند عمومي منشي وټاکل شو. که څه هم دغه پرېکړه په مسکو کې شوې وه

خو د گوندي پلینوم د پرېکړې پرتوګ ورواغوستل شو. په راډیو ټلوېزیون کې د اشرارو نوم په اپوزیسیون واوښت. ډاکټر نجیب له اپوزېسیون سره د ډیالوګ شعار خپل کړ. د نوې اساسي قانون او ملي پخلاینې پروسه یې رامخې ته کړه او هغه ناپېیلي شخصیتونه چې دوی ته نژدې بلل کېدل په کابینه کې شامل کړل.

د ببرک کارمل پلویانو د نجیب دغه کړنې او تګلاره د ګوند له اساسي تګلارې انحراف او په اصطلاح د کارګرې طبقې له ایډیالوژۍ سره خیانت وباله او تر همدې نامه لاندې یې د خپلو افرادو او پلویانو سازماندهي پیل او د نجیب د پرځولو لپاره په لیکو جوړولو لاس پورې کړ.

له دې سره په کابل کې د کارمل پلویانو مظاهره وکړه، مظاهره کې د ظاهر طنین رول څرګند و، یو شمېر نجونو ارګ ته په ننوتلو د ګورباچف او ډاکټر نجیب پر ضد شعارونه ورکړل. په دې توګه د ډاکټر نجیب پر خلاف د کارمل ډلګی د څرګندې دښمنی لومړی ګام واخېستل شو.

نجیب له دې پرته بله لاره نه درلوده چې د روسي پوځیانو له وتلو سره موافقه وښیي، خو د ببرک کارمل ډلې له افغانستان نه د شوروي پوځیانو وتل د ثور انقلاب ماتې او یو تاریخي خیانت ګانه، سلیمان لایق بي بي سي ته په یوه مرکه کې وویل کله چې ګورباچف له افغانستان نه د خپلو پوځیانو د وتلو خبره رامخې ته کړه د کارمل څېره توره وایشېده، وارخطا شو، لړزه پرې ګډه شوه، ګورباچف ته یې وویل: اګر اکنون از افغانستان قطعات نظامي اتحاد شوري فراخونده شود، رهبری شوروي بار دیګر مجبور خواهد بود تا یک ملیون سرباز به افغانستان داخل کند - دې ته ورته خبره ډاکټر نجیب هم په خپله یوه مرکه کې یاده کړه. ببرک کارمل درې میاشتې په شوروي اتحاد کې وځنډول شو، ډاکټر

نجیب ته په پوځ او نورو دولتي ارگانونو کې میدان خالي و، دغه وخت ډاکټر نجیب لپاره ضروري وه په گوند او وسله والو ځواکونو کې خپله اتوریته پیاوړې او د هېواد د لومړني شخصیت په توگه ورته د تبارز زمینه برابروي، په دې توگه عملاً د گوند او حکومت لومړی درجه شخصیت وگڼل شو.

ببرک کارمل د شمال لپاره یو ځانگړي پوځي او سیاسي تشکیل منظور کړی و، د دغه تشکیل نوم "د شمال قوماندانی" و، "د شمال قوماندانی" مشر سلطان علي کشتمند و چې د ستم او پرچم د اهدافو پلي کولو ته یې نوې لارې په نښه کولې.

د شمال قوماندانی فوق العاده امکانات او امتیازات په واک کې لرل چې د شمال د ټولو فاشیستي کړیو د نښلولو پر پروسه یې کار کاوه.

مخکې تر دې چې په روسیه کې د گورباچف مرستیال "گینادي یانایف" په مشرۍ افراطي کمونېستان کودتا وکړي، د دې زمینه برابره شوه، چې کارمل بېرته هېواد ته ستون شي، چې کله افراطي کمونېستان په روسیه کې واک ترلاسه کړي د کابل واگې به کارمل ته سپارل کېږي.

ببرک له نجیب سره ژوره عقده درلوده، ده پوځ او گوند کې خپل پلویان تنظیمول او غوښتل یې که ممکن وي د تشکیلاتو له لارې او که نه د پوځي اقدام له لارې نجیب له قدرت لېرې کړي.

## "آیا نجیب را میشناسید؟" کتاب خپراوی:

په شوروي کې د یانایف د کودتا له خبر سره په کابل کې د پرچم او ببرک پلویانو دغه حرکت د خپل بري په توگه جشن ونیو، خو کله چې د

کودتا د ماتې خبر خپور شو، کارمل د شوروي کمونېستانو په مرسته د اقتدار له ترلاسه کولو نهیلی شو، خو واک ته د رسېدو له هڅو او یا لږ تر لږه له نجیب الله د غچ اخېستو له کوښښونو لاس په سر نشو.

کابل کې د واک شخړو د قومي او ژبنیو اختلافاتو بنه خپله کړه - چې د وخت په تېرېدو یې د پېښور تنظیمو باندې هم خپل سیوری وغوړاوه - عبدالحمید محتاط (۱۹۸۸دسمبر) فرخار کې له مسعود سره خپل درې ورځني ملاقات کې پر ډاکټر نجیب الله د قبیله سالارۍ د تورونو غوټه پرانیسته.

د دغو هڅو د ځنځیر یوه کړۍ د سمتي او ژبنیو تمایلاتو نه گټه پورته کول وو، په کابل او پېښور دواړو کې دغه تمایل او حساسیتونه وپارول شول چې په لومړي سر کې یې د ستم او پرچم یا په بله وینا د رباني - مسعود او کارمل د ډلو تر منځ د گډو کوښښونو مزي وغځول.

د ډاکټر نجیب الله ورور صدیق الله چې احمد شا مسعود له پنجشیره پاکستان ته ولېږداوه، I.S.I ته وسپارل شو، ای. اېس. ای د جمعیت په همکارۍ پر صدیق الله "آیا نجیب را میشناسید" تر سرلیک لاندې کتاب وکیښ چې لومړی پلا آی اېس آی او دویمه پلا د جمعیت فرهنگي دفتر په لوړ شمېر چاپ کړ. دغه کتاب ظاهراً د ډاکټر نجیب پر خلاف لیکل شوی خو ډېر ځایه تر پلاله لاندې اوبه تېرې شوې او دغسې مطالب پکې ځای شوي چې د پښتنو د کلتور، توهین او سپکاوی گڼل کېږي. په دې توگه د ستم، پرچم او جمعیت یوه بله گډه فلمي سناریو را منځ ته کړای شوه. ډاکټر نجیب الله، احمدشاه مسعود ته یوه لیک کې I.S.I ته د صدیق الله د سپارلو گیله او پېغور ورکړ. د ده په خبره صدیق الله به یې د ده پر خلاف کارولی و، خو د یوه افغان په توگه به

يې I.S.I ته د سپارلو ناخواني نه کوله.

د ډاکټر نجيب الله د ورور صديق الله له را تګ سره پېښور کې د احمد شاه مسعود ميرنی ورور ډګروال دين محمد تری تم شو- د ده ورکېدل ځينو پر حزب اړول، خو ډېری ورته د صديق الله له راتلو سره په اړيکه کتل.

صديق الله له پاکستان لويديز ته په کډه کېدو، د سياست او رسنيو له ياده ووت...

## د ډاکټر نجيب الله او روسيې تر منځ د بدګومانۍ واټن:

د شوروي پوځونو له وتلو، امريکا کابل کې په ځانګړو مراسمو د خپل سفارت په تړلو غوښتل د رژيم سقوط باوري کړي ... ځکه خو يې د سفارت له انګړ د خپل بيرغ په ډراماتيک کوزولو د ډاکټر نجيب الله نسکورېدل اعلان کړل... روسانو غوښتل د هېواد ختيز او جنوب سيمو د سولې تر نامه لاندې وسله وال ځواکونه کابل ته ولېږدول شي چې د کابل دفاع شونې شي که داسې ونشوه دغه ټول ځواکونه د هېواد په شمال کې ځای پر ځای او شمال د هېواد د پلازمېنې په توګه اعلان شي، په دې توګه به شمال د پوځي او ګوندي ځواکونو فعال مرکز او د جنوب د ازادولو غښتلی سنګر وګرځي.

ډاکټر نجيب د دغه پلان په وړاندې منفي دريځ درلود او هغه يې په يوه بله بڼه د هېواد د وېشنې هڅه ګڼله.

له همدې ځايه وه چې د ډاکټر نجيب او روسيې تر منځ د بدګومانۍ

واتن زیاتېده. ډاکټر د دلوې ۲٦ مه د ملي ژغورنې ورځ وګڼله او د ۱۳۷۰ لمریز کال د جدی په ۲۵مه یې خپله وینا کې وویل: د بهرني یرغل پر وړاندې د افغانانو ملي پاڅون د دلوې په ۲٦نېټه بریالی شو. په همدې مهال د روسیې سفیر له ډاکټر نجیب سره د ښېرنی لیدنې غوښتنه کړه او دی یې د روسیې پر ضد په لمسون تورن کړ.

ډاکټر د ډیپلوماتیکي پوستې له پلټنې چې د روسانو له خوا کېده ډډه وکړه او د دغه پوستې د لېږد کړښه یې د شوروي اتحاد پر ځای هندوستان وټاکه.

له بلې خوا د مسکو او ایران له نژدې کېدو ډاکټر نجیب ته داسې اطلاعات ورسېدل چې په روسیه کې له چاپېدونکو افغانیو یو شمېر په حیرتان کې ځینو دولتي او مخالفو قوماندانانو ته ورکول کېږي چې یو شمېر نورې پر ډالرو له بدلېدو وروسته زېرمه کېدلې. له دې پرته له قرارداد نه د باندې وسلې او مهمات هم حیرتان ته لېږدول شوي وو، له همدې ځایه وه چې ډاکټر نجیب په کابل کې د مسکو سفیر ته د مزار له قونسل شکایت وکړ...

## د ایران رول:

ایران د تېلو د ناپایه زېرمو په لرلو روسیې ته لکه سعودي د امریکا لپاره حیثیت درلود ځکه خو د افغانستان په رېړه کې د یوه ځواکمن لاس په لرلو فعال پاتې شو.

په دې لړ کې له امریکا سره د ایران دښمنې هم د شوروي اتحاد دریځ پیاوړی کاوه چې د ایران لپاره ښه چانس ګڼل کېده.

فرانسه هم له مسعود او ایران سره د ښو اړیکو له مخې پر دغه لیکه مله شوه، همدا فرانسه وه چې خمیني د شاهنشاه پر خلاف تري د انقلاب قومانده ورکوله. ایران یوه بله کړی کې ((د سلطانعلي کشتمند، عوض نبي زاده، خادم بیگ او جنرال غلام سخي په څایولو سربېره)) نصر، پاسداران، نهضت اسلامي، شورای اتفاق، دعوت اسلامي، جبهه متحد اسلامي... ډلې په وحدت گوند کې راټولې کړې، ایت الله محسني د ایران فشار ته غاړه کېښوه... دده په خبره د وحدت ځینې مشران له کابل دستور اخلي... څکه خو پېښور ته د خپلو تشکیلاتو په لېږد اړ کړل شو...

(۱۵ مارچ ۱۹۹۱ فرنتیر پوست)

د سلطانعلي کشتمند ورور اسدالله کشتمند چې په ایران کې د ډاکتر نجیب شارژدافیر و، بېله دې چې رژیم، سفیر او د بهرنیو چارو وزارت په جریان کې واچوي له ایراني لوري سره د سلطانعلي کشتمند څانگړي مراسم تاوده ساتل، پر دغه تکي له خبرېدو سره ډاکتر نجیب، کشتمند له صدارت نه گوښه او فضل حق خالقیار یې د هغه پر ځای صدراعظم وټاکه، کشتمند هم له گوند نه خپله استعفا اعلان او په یوه مرکه کې وویل: ((له فکري اړخه له وحدت گوند سره تراو لري خو تشکیلاتي اړیکي یې ورسره نه شته.))

په دې توگه یوې خوا ته امریکا، سعودي او پاکستان او بلې ته ایران، روسیه او فرانسه یوې نوې لوبې ته د خپلو لوبغاړو تر شا ودرېدل، مسعود او رباني له دواړو غاړو سره د تفاهم او اړیکو کانالونه پرانستي

## له څلوېښتم لښکر سره اوربند:

په ۱۹۸۰ کال کې احمدشاه مسعود له شوروي څلوېښتم لښکر سره اوربند وکړ - دا چې د اوربند زمینه د چا په هڅو را منځ ته شوه، منځګړي يې څوک وو، ډېري خولې ډېري خبري - څينې رپوټونه په دغه موخه کابل ته د احمدشاه مسعود راشه درشه په ګوتو کوي، چې د تأمل وړ ګڼل کېږي، خو د عبدالحمید محتاط، دستګیر پنجشیري رول او اغېز پاموړ حقيقت را ختلی شي.

د مجاهدينو تر منځ له حکمتيار پرته له شوروي لښکرو سره د احمدشاه مسعود اوربند کوم غبرګون را منځ ته نشوی کړی، حزب اوربند د جهاد او د مجاهدينو پر ضد توطئه وګڼله، چې په مټ يې مسعود د مجاهدينو څپلو فرصت تر لاسه کړ.

دلته وه چې شورويانو، جنوب، لويديز او ختيز کې د جګړې اور ژبغرانده او دغو سيمو کې د نويو او پراخه بريدونو ستراتيژي پلې کړه.

د اوربند ترون کې مسعود ژمنه کړې وه چې شوروي پوځي کتارونه به دده له واک لاندې سيمو څوندي تېرېږي، پر وړاندې يې شوروي اړخ مسعود ته د لوژستيکي او خوراکي توکيو مرستو ته څپله ژمنتيا څرګنده کړې وه.

لکه دمخه مو وويل له حزب اسلامي پرته جهادي تنظيمونه پته خوله پاتې شول - په داسې حال کې چې له رژيم سره د اړيکو شک نه ښنونکی جرم او ملي خيانت پېژندل کېده اودغسې يو تور د ژوند بيه او د رټلو او ترټلو نغد سند ګرځېدی شوای، خو احمدشاه مسعود د مجاهدينو، پاکستان او نړيوالو لخوا له کومې پرې، ګوتڅنډنې او ګوتنيونې سره

مخامخ نشو، له همدې فرصت په ګټه اخیستو مسعود د نظار شورا تشکیلاتو او جمعیت د برمته کولو مخه ومونده او د رژیم دننه یې د کودتاګانو زمینه تر لاسه کړه.



# د رژیم دننه ډلبندي

۱۹۸۸ د دسمبر په لومړیو کې عبدالحمید محتاط له کابل مزار او له هغې د دریو خرخکو په بدرګه تخار ته ولاړ، د تالقان - په خواجه غار کې له کېناستو وروسته چورلکې بېرته مزار ته ستنې شوې - دلته محتاط او داؤد د ارباب سکندر په ملتیا د احمدشاه مسعود له یوه قوماندان ګدا سره وکتل له یوې لنډې دمې وروسته یې د فرخار ورسج کې درې ورځې له احمدشاه مسعود سره تېرې کړې.

محتاط دنده لرله شوروي دکتورین احمدشاه مسعود ته تشریح کړي - ده احمدشاه مسعود ته پر دې ټینګار کاوه چې د ډاکټر نجیب الله پر ځای له شوروي اړخ او رژیم له ځانګړیو کړیو سره اړیکي او پوهاوی پامور ګڼي - ده مسعود دې ته ور مات کړ چې له شوروي لوري سره مخامخ لیده کاته وکړي - موافقه وشوه چې د ګورباچوف له ځانګړي استازي جنرال ورینیکوف او کابل کې شوروي سفیر یوري ورنتسوف سره وګوري.

محتاط ژمنه وکړه چې دوو اونیو کې به یې له شوروي لوري سره مخامخ ناستې ته زمینه برابره کړي، چې جنرال ورینیکوف او یولي ورنتسوف پنجشیر کې له مسعود سره کیني.

مسعود د کابل حیرتان لارې د پرانیستو ژمنه ورکړه - دغسې یې د تالقان ذخیره باغ کې د ځای پر ځای شوې پوځي قطعې کلابندي ماته کړه. جنرال ورینیکوف د یوه ماهر روسي نقاش په ګوتو د احمدشاه مسعود جوړ شوی انځور چې پر سپین اس سپور لیده کېده او د یوې ښکلې تابلو بڼه یې لرله د سوغات په توګه چمتو کړ - انځور دومره ښکلی او طبیعي ښکارېده لکه ژوندی مسعود د سړي په وړاندې دی.

عبدالحمید محتاط د مسعود پر وړاندې نجیب الله د ده پر قومي او قبیلوي ګرایشاتو تورن کړ - ده د مسعود پر وړاندې دا خبره راپورته کړه چې ګني «نجیب الله با مبتذل ترین نوع غرور ملي که در ساختار عقب مانده نظام اقتصادي و اجتماعي جامعه قبیلوي پشتونها نهفته است اغشته است - وی همیشه به این مباهات دارد که بگوید: تاسو د هغو ننګیالیو پښتنو بچیان یاست ...»

محتاط، احمدشاه مسعود ته د ده په وینا له هغو توطئو پرده پورته کړه چې ګني نجیب الله غواړي یو ځل بیا افغانستان کې د قبیلوي نظام پاینښت باوري کړي، ځکه خو دا اړینه ده چې له شوروي اړخ سره اړیکو او تفاهم ته ور وګرځو او د نجیب الله د قبیلوي نظام د پاینښت توطئه شنډه کړو.

۱۹۹۰کې چې احمدشاه مسعود له تخار، پنجشیر ته خپل هېډکوارټر ولېږداوه، بهرنیو چارو وزیر عبدالوکیل ته یې لیک ولېږه - د لیک را لیک فضا محتاط برابره کړې وه - دلته وه چې د ډاکټر نجیب الله پر خلاف په کور دننه توطئو خپې توپاني کړی شوې.

د شوروي او احمدشاه مسعود تر منځ پوهاوی او اړيکي نورې هم وغوړېدې - د شوروي د څلوېښتم لښکر قوماندان جنرال گروموف مني چې له افغانستان د عسکرو له وتلو دمخه له مسعود سره توافق ته رسيدلي، خو د توافق پر څرنگوالي څه نه وايي، يوازې دا ټکی را اخلي چې مسعود به نور پر شوروي پوځيانو برید نه کوي او شوروي به د ده لوژستيکي مرسته کوي.

څومره چې د مسعود څواکونو غوښتي وای له شوروي کتارونو خوراکي لوژستيکي... مواد پخپله خوښه ترلاسه کولای شوای... اړيکې دومره وغوړېدې چې شوري قرارگاه د نظار شورا قوماندانانو په لاسليک د ټولو اسنادو په مجرا ورکولو مکلفه گڼل کېده...

# بې تعبيره خوبونه

تنظيمونه د اقتدار په ناندريو او سياليو لگيا وو، ښاغلي سياف د جهادي تنظيمو دننه نويو انشعابونو ته په لمن وهلو د تنظيم زېږونې پروسه غښتلې کړه. د محمدي له حرکت انقلاب اسلامي، مولانا نصر الله منصور او رفيع الله مؤذن د ښاغلي سياف په مرسته د جلا جلا ډلو بنه خپله کړې وه. مولوي محمد مير د نجات ملي جبهې په نامه د ښاغلي مجددي له تنظيم نه د رابېلې شوې ډلې مشري کوله، په حقيقت کې دغه درې واړه ډلې د ښاغلي سياف پر محور څرخېدلې.

د شوروي يرغل په لومړيو کې چې استاد سياف له زندان ازاد او پېښور ته رسېدلی و، استاد رباني د جمعيت لومړی مرستيال اعلان او له خپله اړخه د افغانستان د ازادۍ لپاره اسلامي يووالي مشرتابه ته کانديد کړ - د ده په گټه يې د مجددي تنظيم يوه رايه رانيوه.

استاد سياف د اتحاد رياست په مټ د جلا تنظيم پلان له جمعيت د مخکښو کسانو په را بېلولو پيل کړ، دغسې يې د مجاهدينو پر دغه اتحاد هم چې په اووگوني مشهور و گوندېده ووهله.

((د افغانستان مجاهدينو اسلامي اتحاد)) په دوه نيم کلن ژوند کې ښاغلي سياف ته د منشعبو ډلو ډېر افراد په ميراث ورسېدل، مولوي محمد مير له خپلې ډلگۍ سره د اتحاد په تنظيم ورگډ شو، مولانا منصور او رفيع الله مؤذن د ښاغلي سياف له کړۍ نه په واتن نيولو دې ته اړ شول د ايران په مرستو خپل موجوديت ژوندی وساتي، دلته وه چې د اتحادونو او ائتلافونو تجربې يو پر بل پسې له ناکامۍ سره مخامخ

شوې، د روسي پوځونو له وتلو وروسته د نوي پړاو لپاره جهادي مشرانو او قوماندانانو د بېلا بېلو پلانونو او دريځونو په غوره کولو ځانونه د وروستی ګټې لپاره چمتو کول - له رژيم سره له پټو او ښکاره اړيکو راواخله له ډاکټر نجيب سره تر ليدنو کتنو پورې هڅې په تېزی روانې وې. حزب لومړی په عراق او دويم وار ليبيا کې د نجيب رژيم له استازو سره خبرې کړې وې، پير ګيلاني هم له نجيب سره بغداد او سويس کې کتلي وو. د صبغت الله مجددي ورور قدرت الله مجددي فرانسه کې له نجيب الله سره پټې ناستې لرلې... ددغو پټو اړيکو لړی په دې راتوله وه چې ډاکټر نجيب الله پخپله ګټه د واک پرېښودو جوړجاړي ته ور مات کړي. په بله وينا تنظيمي مشرانو د ځان په ګټه د واک لپاره له کابل سره د پټو اړيکو مسابقې ته دنګل، که وکړای شي له ډاکټر نجيب الله واک د ځان لپاره غصب کړي... په دې توګه د تنظيمونو مشران له ورانديې د اقتدار د خوبونو په تعبير پسې لالهانده وو.



# د واک لېوالتیا

د شوروي عسکرو د وتلو اعلان تنظیمونه د حکومت جوړولو په نوي هوس واړول ... په داسې حال کې چې تنظیمي اتحادونو پایښت نشوای کړی، د هر اتحاد له ګډېدو د نوي تنظیم پېښې راوتلې ... ځکه خو د حکومت جوړونې د تجربې تر شا هم د یوه پراخ ملي سیاست او لرلید پر ځای د انحصار منګول ټینګه وه ...

اټکل بلکې باور دا و چې د شوروي پوځیانو په وتلو د ډاکتر نجیب الله رژیم د څو اوونیو میلمه دی، له همدې ځایه وه چې تنظیمو وار له مخه د واک تر لاسه کولو بېلابېل تمرینونه پیل کړي وو ...

دغسې فرصتو ته په کتو تر ټولو اړینه هڅه د مجاهدینو موقت حکومت جوړول و. جلا وطن حکومت یې ځکه نشوای بللای چې د هېواد نوي سلنه خاوره یې خپل واک کې ګڼله ...

پېښور مېشتي تنظیمونه د خپل واک له احتمالي ننګونو هم اندېښمن وو، له همدې امله یې د تنظیمي انحصار او حاکمیت د خوندیتوب په موخه د موقت حکومت لپاره یوه کمزورې اډانه را منځ ته کړه ... د دغه کاواکه ګام له امله اعلان شوي حکومت نه د کډوالو، نه هیواد کې د ننه مجاهدینو او نه هم سیمه ییزه او نړیواله کچه کوم پرستیژ او باور تر لاسه کړای شو چې له امله یې حکومتي تشکیلات یواځې د کاغذ پر مخ او پېښور تر دوو دفترونو پورې محدود پاتې شول.

د ١٣٦٦ لمريز د جوزا په لومړيو کې د انجينر احمدشاه احمدزي په مشرۍ د مجاهدينو لومړۍ موقت حکومت اعلان شو ... انجينر صاحب د غبرګولي په ٢٩ مه خپله ١٢ کسيزه کابينه چې د دفاع، کورنيو، بهرنيو، ماليې، بيا مېشتېدنې او ودانولو، ښوونې روزنې، عدليې، پلان، دعوت او ارشاد، روغتيا وزارتونو راتوله وه، اعلان کړه ... د حکومت مشر پر دوو مرستيالانو سربېره ټولټال ٢١ وزارتونه او ٥٧ کسيزه شورا چې دوه دوه غړي يې له هر ولايت، ٩ تنه له کډوالو، ٩ تنه هېواد کې له قوماندانانو يا د هغوی له استازو او ١٩له علماوو پوهانو جوړه شوې وي پام کې نېولې وه...

د شوروي لښکرو د وتلو په درشل کې امريکا او پاکستان د يوه جدي سياسي ګام په توګه د مجاهدينو له دوارو اتحادونو د يوه پراخ موقت حکومت لپاره په ١٣٦٧/١١/٢١ نېټه د اسلام اباد مدينه الحجاج کې له هر تنظيم شپېته شپېته تنه د تنظيمي مشرانو په ګډون مشورتي شورا کې راټول کړل.

٦٠ تنه ايران ميشتو تنظيمو ته سهميه ټاکل شوه، خو هغوی ١٢٥چوکۍ غوښتې، تر هغې چې په ٨٠ سلا شول ...

د امريکا ځانګړی استازی ټامسن ... جنرال حميدګل او بېنظېربوټو په نژدې اړيکه کې وو ... تر دې چې د خپلو دفترونو ځانګې يې حاجي کمپ کې پرانيستې وې ... ماته يوه دوست په دې اړه د بېنظيربوټو د ځانګړيو يادښتونو ويلي چې خورا په زړه پورې دي، خو ما تر اوسه نه دي موندلي... د بېنظير چاپ شويو يادښتونو کې دغه پرمختيا ته مازې اشاره او سرسري يادونه شوې ...

# مشورتي شورا او د مولوي حقاني فارمول

حاجي کمپ (مدينة الحجاج) کې د سلواغې له ۲۱ مې د کب تر لومړۍ غونډو کومه پايله ورنکړه ...

استاد سياف ويل د انجينر احمدشاه احمدزي تر مشرۍ لاندې موقت حکومت شته بل ته اړتيا نه ليدل کيږي ... له اوږده بحث وروسته وپتيل شوه د انجينر احمدزي حکومت له مشورتي شورا د باور رايه واخلي، چې تر لاسه يې نه کړای شوه ...

يو ځل بيا دب را منځ ته شو ... مولوي جلال الدين حقاني د هلمند نسيم اخوندزاده ته وويل چې مشرانو ته اخطار ورکړي ... نسيم اخوندزاده خپله وينا د مشرانو په غندلو پيل کړه ... په هغسې ټکو چې يوه مشر هم پورته نشوای کتلی ... ده مشران په سخت غبرگون و گواښل. د نسيم اخوندزاده وينا د شورا په غړو کې هم نيوکو ته مخه ورکړه. د امريکا سفير، جنرال حميدگل او بېنظيربوټو ستومانه شوي وو، د شورا گډونوال هم بې حوصلې وو ... ځکه خو يې د کب پر دريمه مولوي حقاني ته د وروستي پرېکړې او اواري توی وړی واک ورکړ.

مولوي حقاني د کب پر څلورمه خپل فارمول وړاندې او پر همدغه ور ځ ټاکنې ترسره کړې ..

دب له دې امله غزېدلی و چې له هر تنظيم ( ٦٠) استازو د خپل

تنظیم مشر ته رایې ورکولې، ځکه خو اکثریت چا نشوای ګټلای ...

مولوي حقاني خپل فارمول کې د شورا غړو ته د دوو رایو حق ورکړ، طبعي وه چې یوه رایه یې د خپل تنظیم مشر او بله هر مشر ته چې غوښتي وای ورکولی شوی... په دې توګه هر مشر چې د دویمو رایو ډېرې تر لاسه کړې وې د حکومت مشرتابه او دویم هغه د صدراعظم چوکۍ ګټلی شوی ...

حضرت صبغت الله مجددی ۱۷۴، سیاف ۱۷۳، مولوي نبي ۱۳۹، حکمتیار ۱۲٦، خالص ۱۰۲، رباني ۹۹، ګیلاني ۸۹ رایې واخیستې ...

ملي جبهې ته له مشرتابه سربېره روغتیا وزارت او اتحاد ته له صدارت علاوه د مخابراتو وزارت ورسېد. د نورو تنظیمونو درې درې وزارتونه په پچه وختل...

دفاع، علمي تحقیقات او کرنې وزارتونه حرکت ته، سرحدات، خارجه او عدلیه حزب ته، داخله، حج او ملي امنیت خالص ته، بیا ودانولو، دعوت او ارشاد او معادن جمعیت ته، ستره محکمه، ښوونه روزنه او مالیه محاذ ته...

مولوي خالص پخپل وړاندیز سیاسي زلزله رامنځته کړه- ده د ښځو لپاره داسې وزارت وغوښت چې له A تر Z ټول کار کوونکي یې ښځینه وي.

د کب پر ۲٦د پکتیا شیوه کي کې ( دکرېښې ۱۳ کیلومترۍ کې ) کابینې خپله لومړۍ نمایشي غونډه وکړه ... خو حکومت داخل ته ونه شوای لېږدېدی، چې جلال آباد یې ونشوای نیولی، هماغسې د پېښور حویلیو کې پاتې شو...

د ۱۳٦۸ چنګاښ کې د تخار له پېښې سره چې د حزب سید جمال

ولید په کې د جمعیت یوه ډله قوماندانان یوه کمین کې ووژل، استاد رباني حکومت کې د حکمتیار تعلیق وغوښت. حکومت د تخار پېښې پلټنې ته له لاندې کسانو پلاوی وټاکی: مولوي قلندر، مولوي محمد سرور، مولوي محمد عمر، مولوي عبدالبصیر، مولوي عبدالرحیم چترالي او ډاکتر عبدالله عزام ...

ددغې پېښې وروستی پرېکره د پلاوي او پلټنو پر ځای د محمد یونس قانوني تر مشرۍ ځانګړو تحقیقاتو کې چې د سید جمال په اعدام منتج شوه پلې کړی شوه ...

حکمتیار په دې تکي چې ټاکلې موده کې ټاکنې ونکړی شوې له حکومته ووت ... قاضي نجی الله د عدلیې وزیر په توګه د حکومت انحلال اعلان کړ... خو حکومتي تشکیلات یې منحل نکړای شول ... حکومت راکد پاتې شو ... ادم نشته بوی یې شته ...

## د جنرال تني ناکامه کودتا:

د جنرال شهنواز تني او ډاکټر نجیب الله تر منځ اختلاف د دافع هوا قوماندان جنرال ولي شاه تني پر سر را پورته شو- ولي شاه له حکمتیار سره اړیکي ټینګې کړې وې، اړیکي د ډګروال سید نعیم شاه په مټ غزېدلې. ډګروال سید نعیم د ولي شاه یو لیک حکمتیار ته وړی و- څرنګه چې حکمتیار پاکستاني مقاماتو ته پوخ کې د خپل اغېز او نفوذ په مټ د کودتا تېر وهلی و، ځکه خو یې له I.S.I د ځانګړو شونتیاوو غوښتنه کوله- حکمتیار د جنرال ولي شاه لیک د خپلې مدعا د اثبات لپاره پاکستاني مقاماتو ته ورکړ- هغوی د خپلو چېنلونو له لارې د لیک

کاپي د ډاکټر نجیب استخباراتو ته ورسوله، خاد د دغه لیک له مخې جنرال ولي شاه او ۳٦ پوځي افسران ونیول- د مرغومي لومړیو کې کابل راډیو یوه اعلامیه خپره کړه چې د کودتا د هڅو په تور یې ۱۳۰ملکي او پوځي مامورین نیولي دي.

ډاکټر نجیب الله په دې اړه خپله وینا کې وویل: . .. دغه ډله له حکمتیار سره پیلې وه، غوښتل یې دفاع وزیر شهنواز تنی ووژني ....

د دوی په وینا دغو کسانو کې ۴۸ تنه گوندیان هم برخوال وو...

جنرال تني له دې وړاندې نیوکه لرله چې دفاع وزارت منسوبین هغسې امتیازات نه لري چې د خاد کارکوونکي او گارد خاص افراد پرې نازولي شي- په داسې حال کې چې د جگړې بار د پوځ پر اوږو پروت دی، ده د لوړپوړیو افسرانو له ټاکنې او ترفیعاتو هم گیله لرله چې خوښه یې پامور نشي گټل کېدی- دا ټول یې د خلقیانو پر ضد توطیه گڼله.

جنرال شهنواز تنی په ټوله معنا یو عسکر و، پوځ کې د زړور، مسلکي او له فساد پاک جنرال په توگه پېژندل کېده - چې ټوله موده یې قبلې یا د جگړې په لومړۍ کرښه کې تېره کړې وه، ده ځان د انقلاب ربښتینی مدافع گاڼه او ځان ته یې حق ورکاوه خپلې مسلکي چارې د چا له مداخلې پرته ترسره کړي شي.

د جنرال تني او ډاکټر نجیب الله اختلاف میاشتې میاشتې دوام درلود- شوروي سفارت ظاهراً دوه واره هڅه وکړه د دوی تر منځ روغه وکړي، خو ونه توانېد.

شاهنواز تني ټینگار کاوه چې نجیب الله بې ځایه دفاع وزارت چارو کې لاسوهنه کوي- ده د جنرال ولي شاه تني خوشي کېدو غوښتنه کوله، خو نجیب ته خاد کره اسناد وړاندې کړي و چې له حزب سره یې

د کودتا لپاره د جنرال ولي شاه پېيلتيا ثابتوله.

د خاد تر څنګ اصف دلاور، نبي عظيمي او له احمد شاه مسعود سره پېيلو جنرالانو هڅه کوله د جنرال تني او ډاکټر نجيب الله تر منځ ترينګلتيا وغزوي- له همدې ځايه وه چې ډاکټر نجيب ويل پښتانه جنرالان ورسره په مخالفت ولاړ دي- خو عظيمي، دلاور او بابه جان يې ننګې ته درېدلي- پښتانه مجاهدين ورسره په جګړه بوخت دي، دوستم او مؤمن يې دفاع کوي.

پر دې سربېره د جنرال تني او ډاکټر نجيب الله تر منځ د منځګړيتوب هڅو د دوی تر منځ اختلاف په دښمنۍ واړاوه - عبدالحميد محتاط ((د صدارت مرستيال)) ډاکټر نجيب الله ته ډاډ ورکړ چې کولی شي جنرال تنی سمې لارې ته را وګرځوي - نجيب الله ومنله - محتاط کور کې جنرال تنی مېلمه کړ، خو د روغې او پوهاوي پر ځای يې د اختلاف پر لمبو نور تېل وپاشل، دی وتوانېد جنرال تنی د نجيب الله او نجيب الله د تني پر خلاف ودروي او د پوهاوي دروازې کولپ کړي.

جنرال تنی اوس هم د دې خبرې منلو ته نه شي چمتو کېدی چې ګني د ده کودتا د نظار شورا او جمعيت پلان و، خو حقيقت دا دی چې د شاهنواز له کودتا پوخ کې د تصفيې پانه را واوښته او نظار شورا سره تړلي جنرالان د پوخ پر اعصابو واکمن شول...

له دې يو کال وراندې پاچاګل وفادار پېښور کې له حزب سره يو ځای شوی و- ده د حزب له شهادت جريدې سره مرکه کې ويلي: ((يا مرد باش، يا در پهلوی مرد...))

لکه دمخه مو نغوته وکړه د جنرال تني له کودتا وروسته پوخ کې د خلقيانو رول بيخي کمزوری کړی شو، د کابل ګارنيزيون سياسي امر

تورن جنرال امير محمد او جنرال عبداللطيف (د ډاکټر عبدالله عبدالله ورور) پوځ کې بارز رول تر لاسه کړ- جنرال تني له ناکامې کودتا وروسته په MU-17 چورلکه کې د برید جنرال غلام رسول په پېلوټۍ د ۱۳٦۸ لمريز کال د کب په ۱۷مه پاکستان ته واوښت- دی خپله د الوتکې دهشکې ته ناست و- کورنی، دوه یاوران ډګرمن احمدشاه (د جنرال تني باجه) ډګرمن احسان الله، نیازمحمد مومند او د کابل پوهنتون استاد جیلاني یفتلي په چورلکه کې ورسره سپاره وو- جیلاني يفتلي ددغې کودتا مغز متفکر ګڼل کېده، چورلکه د پښتونخوا جمرود کې کوزه شوه- د ده مخې ته د پاکستان لوی درستیز جنرال میرزا اسلم بیګ او د ISI مشر، متقاعد جنرال شمس الرحمن کالو ورغلي وو- له دوی د ملېشو یوه مېلمستون کې هرکلی وشو- لږ وروسته حکمتیار د مېلمستون پر وراندې له موټره کوز شو.

جمعیت د کودتا له مسئولیت غاړه غړوله، خو حکمتیار د کودتا مسوولیت ومانه. په یوه بله M.H-12 الوتکه کې د تني کودتا نور ملګري جنرال عبدالقادر اکا، برید جنرال میر حمزه، جنرال خواجه محمد، د جګړن ګلاب الدین په پېلوټۍ له کرښې واوښتل ددغې الوتکې کشاف محمد شفیع او انجنیر حاجي سیف الدین و.

پاکستاني رسنیو په هغسې تلوسه د کودتا خبرونه ورکول چې پر بري یې چا شک نه شوی کولی. د جنرال تني ملګري په دې اند دي چې بګرام هوايي ډګر شوروي الوتکو بمبار کړ- نجیب الله داسې انګېرله چې ګنې د تني کودتا کې د شوروي اتحاد لاس و.

فقیر محمد ودان ((دشنه های سرخ)) کې د نیازمحمد مومند له خولې کاږي: کابل کې شوروي سفیر زموږ غوښتنې او نېوکې معقولې او

پر ځای بللې- زموږ په کودتا کې د ده له ډاډ سترګې نه شي پټېدلی چې ورسره جوخت به د کارمل پلویان هم پر پوځي عمل لاس پورې کوي.

دواړه خبرې ښايي حقيقت ولري، شونې ده شوروي، جنرال تنی کودتا ته هڅولی یا لږ تر لږه شنه اشاره ورکړې وي- دغسې یې د کودتا ناکامۍ کې خپل اغېز کارولی وي، چې د کودتا له ناکامۍ پوځ کې تصفیې ته مخه خلاصه او له پلان او پروګرام سره سمې پرمختیاوې ګرندۍ کړی شي. که څه هم په ظاهره شوروي سفارت د جنرال تني او ډاکټر نجیب الله تر منځ د روغې په نیت دواړه سفارت کې مېلمانه کړل- خو د زړونو خیرې دې کچې ته رسېدلې وو چې دارالامان کې له دفاع وزارت تر شوروي سفارت لار د جنرال تني ګارډ نیولې وه، جنرال تنی له سفارته په ناوړه حالت راوړل شو- ډاکټر ولایت خان خوستی یې درملنې ته وغوښتل شو. ډاکټر نجیب الله ویل چې تني ته مې مېلمستیا وکړه- مېرمن مې سره له دې چې ناروغه وه اشک پاخه کړل - خو تني دې ته ونه کتل ... نجیب الله پر پرچم تکیې ته اړ شو- دا هغه څه و چې پرچم او ستم پر اسمان غوښتل خدای پر ځمکه ورکړل. د جنرال تني یاور ډګرمن احسان الله چې د خاد افسر ډګروال حبیب الله وراره دی، د خاد او جنرال تني د اړیکو په ترینګلتیا کې رول درلود- دا خبره ما ته ډګرمن احسان الله خپله وکړه.

دوی جنرال ته د خاد اجرأت د ده او ملګرو پر ضد توطیه ور پېژندل- دغسې یې د خاد له کړنو جنرال ته معلومات ورکول چې له امله یې د جنرال تني باور تر لاسه کړی و.

ډاکټر نجیب الله د امین پلویان ډاکټر محمود سوما، عبدالرشید جلیلي، جنرال محمد دوست او ... له زندان ازاد او یوه ملمستیا کې

جنرال تني په ناخوانۍ او پاکستان ته په تېښته پر او له دوی د همکارۍ په غوښتلو د تېر په هېر هیله وکړه ... خو دوی نېوکو ته وروګرځېدل، فضا ترېنګلې شوه ... چې د لسو کالو زندان کړاوونو هغوی همکارۍ ته نه شوای چمتو کولی ...

پاکستان ته د جنرال تني په اوښتو له جمعیت او نظار شورا سره احسان الله او احمد شاه نژدې اړیکي ساتلې د احسان الله مستعار نوم احمدضیا و- دوی دواړو ته استاد رباني لویدیز کې د سیاسي پنا لپاره پخپل لاسلیک مکتوبونه ورکړي و.

احمدشاه مسعود له یوې فرانسوۍ خپرونې سره مرکه کې منلې چې د جنرال تني له ناکامې کودتا وروسته یې پوځ کې د عملي او پراخ نفوذ او نفوس په موندلو نوي فرصتونه او چانسونه تر لاسه کړي شول.

جنرال تني د ۱۳۶۸ د کب پر ۲۳مه له ناکامې کودتا اته ورځې وروسته له پېښوره چورلکه کې ترې منګل او له هغې د لوګر دوبندۍ کې د حزب یوه قوماندان انجنیر احسان الله مرکز کې مطبوعاتي کنفرانس ورکړ- له ده سره جنرال عبدالقادر اکا، نیازمحمد مومند، برید جنرال غلام حضرت مله وو- ده وویل پاکستان ته نه دی تللی- ډاډ یې ورکړ چې عملیات یې روان دي او د هېواد دننه د دغو عملیاتو مشري پر غاړه لري...)

جنرال تني خبریالانو ته وویل: زموږ پاڅون په رښا ورځ د کب پنځلسمه یوه بجه د لوړ پوړیو ملکي او پوځي کدرونو په ملتیا پیل شو - د پلان له مخې ښايي پلازمېنه او لویو ښارونو کې ملي قیام پیل شوی وی، په دې توګه به زموږ پلویان له ځایي مجاهدینو سره واک تر لاسه کړی وی.

د ده په خبره له مجاهدینو سره یې د پاڅون ګډ پلان نه درلود، خو د حکمتیار له پیغام په ګټې اخیستو له هغو افسرانو سره چې له حزب سره پېیلي وو په اړیکه او تفاهم خپل پاڅون پیل کړ.

ښايي ووایو چې له میاشتو د جنرال تني د کودتا خبرې خوله په خوله ګرځېدې- نژدې دوې میاشتې دغه اوازې خپرې وې، تر دې چې جنرال تني وار له مخه د اضطراري حالت قومانداني ایجاد او کابل کې د سنګرونو په جوړولو کار کاوه. خو دا چې دغسې یوه افشا شوې کودتا وار له مخه څرنګه شنډه نه شوه د یوې پوښتنې په توګه پاتې ده.

بن بیلا د الجزایر ولسمشر و، ده ته یې د خپل ملګري حواري بومدین د کودتا راپور ورکړی و، د بن بیلا زړه نه شوای منلې چې انقلابي ملګري دې پرې ور وغورځي- د یوې غونډې پای کې یې له جنرال بومدین په ټوکه وپوښتل د کودتا چارې کوم ځای ته ورسېدې- بومدین په خندا ځواب ورکړ روانې دي...

څو ورځې وروسته بومدین کودتا وکړه، خو بن بیلا یې په درناوي له هېواده رخصت کړ. د جنرال تني کودتا اوازې په همدې کچه خپرې شوې وې په دومره توپیر چې د بومدین هغه بریالی را ووته او د جنرال تني ناکامه...

د دې لپاره چې جنرال تنی په حتمي توګه د کودتا پلان پلی کړي دوې ورځې وړاندې اوازه شوه چې ګنې نجیب الله د جنرال تني د ګوښه کېدو پرېکړه کړې- ویل کېدل نجیب الله غواړي ده ته د ستر جنرالی ترفیع په ورکولو د سیاسي بیرو پر اصلي غړیتوب د جمهوري ریاست مرستیالي هم ورکړي. لوستونکي ښايي دا پوښتنه پامور وګڼي چې که د جنرال تني کودتا د جمعیت د پلان له مخې غځېدلې بیا څرنګه د دغه ناکامې کودتا

مسئوولیت حکمتیار ومانه؟

د دغې پوښتنې په ځواب کې ویل کېدی شي چې حکمتیار پوخ کې د خپل نفوذ او اغېز ادعا په زبات رسولې شوای او له بلې خوا یې د خوست په نیولو کې د جنرال تني رول ته سترگې اوښتې.

حکمتیار د امریکا مخالفت د شوروي اتحاد لپاره ارین باله- ده داسې گڼله چې د امریکا شدید مخالفت به روسان دېته ور مات کړي چې واک لپاره یې پامور وگڼي.

د تني له ناکامې کودتا وروسته نجیب الله د پښتنو ټکولو ته ور وگرځېد - ده د شمالي له خلکو مننه وکړه، شمال یې وستایه په دې ټکو چې: ... شمال در سراسر تاریخ کشور ازین خاک مردانه دفاع کرده ... دغسې یې له پیرنگي سره دریو جگړو کې د شمالي مېړانه یاده کړه.

ددغې ناکامه کودتا له لارې پرچم او ستم وکړی شول نجیب الله ته د خوب گولیو په ورکولو خپلو موخو ته د رسېدو لار تېره کړي.

د جنرال تني له کودتا، د حکمتیار د ننگې او ملاتړ له امله حزب کې د لوړې کچې مخالفت رامنځته او د اجرائیه شورا یو شمېر غړو لکه قاضي نجي الله، ډاکتر انور، مزمل، فیضان، رحمانیار او ډاکتر حنیف... په دغه پلمه له حزب سره پرې کړه...

## د قوماندانانو سرتاسري شورا:

قوماندانانو هم چې د هېواد په پوځي او سیاسي حالاتو کې د نویو بدلونونو نښې لیدلې د نوښت په فکر کې وو، دوی داسې گڼله چې د جگړې زور او فشار پر دوی دی، خو لاسته راوړنې یې د جهادي مشرانو

د اقتدار غوښتنې له سیاستونو قربانېږي، مخکښو قوماندانانو د قاضي امین وردګ کور کې خپلې لومړنۍ ناستې پیل کړې - تر هغې چې ۱۳٦۹ لمریز کال د ثور په ۱۷مه د پکتیا سرحدي سیمه (ژوره) کې د مولوی جلال الدین حقاني جهادي مرکز کې د قوماندانانو غونډه جوړه شوه په دغه غونډه کې نژدې ۴۰ قوماندانانو برخه لرله او د قوماندانانو د سرتاسري شورا په نامه یې د خپلو فعالیتونو اعلان وکړ.

قوماندان عبدالحق خبریالانو ته وویل: موږ خپل کار له غرونو، سنګرو او میدانو کې له جګړې پیل کړ... له مشرانو مو هم هیله وه چې خپله دنده او مکلفیت تر سره کړي... خو اوس داسې ګڼو چې دا کار هم خپله وکړو... موږ خپلو مشرانو ته غاړه ایښې وه، خو دوی چې متحد نشول موږ مجبور یو خپله د ژغورنې لار ولټوو...

I.S.I له دغه پرمختیا هرکلی وکړ، خو شورا ته یې د سیاسي رول مخه ونیوله.

*تنظیمو د یوې نوې ننګونې په توګه د قوماندانانو شورا مخالفت وکړ...*

*مولوی خالص پیټر تامسن د قوماندانانو شورا په جوړېدو پړ او دغه شورا د جهاد د تجزیې هڅه وبلله... دده په خبره امریکا پر هغه رهبري چې جهاد یې پیل کړی غواړي سترګې پټې کړي...*

*شیخ آصف محسني کوټه کې مطبوعاتي کنفرانس کې وویل: مولوی جلال الدین حقاني د سرتاسري شورا تر نامه لاندې جلا ګوند هڅې پیل کړې دي.*

*د ده په خبره د امریکا سفیر رابرټ اوکلی وار له مخه کوټه کې ملا ملنګ سره کتلي او پر حقاني، عبدالحق، احمدشاه مسعود، قاضي*

*امین وردګ او... یې د جلا ګوند جوړولو لپاره ګوته اېښې...*

*(فرنټیر پوسټ ۲۴ فبروري ۱۹۹۱)*

*د قوماندانانو سرتاسري شورا خپل تشکیلات ورغول د سیاسي کمېسیون مشري یې احمدشاه مسعود ته ورکړه چې د ده په نیابت محمد یونس قانوني د کمېسیون چارې پر مخ وړي، د شورا سرپرست او د نظامي کمېسیون مشر مولوي حقاني وټاکل شو.*

د شورا عمده موخې پر یو وخت ټول هېواد کې پر ټاکلو پوځي تأسیساتو د ګډو عملیاتو لپاره همغږي وه.

قوماندان عبدالحق، انورخان جګدلک، اختر محمد ټولواک، امین وردګ او ګڼ د سرسر قوماندانانو په غونډه کې برخه لرله.

د قوماندانانو شورا دویمه غونډه چې د حکمتیار له تنظیم پرته د ټولو تنظیمونو ۳۰۰ مشهورو قوماندانانو برخه پکې لرله د ۱۳۶۹ لمریز کال د چنګاښ پر دویمه بیا هم په نوموړي مرکز کې جوړه شوه، غونډې درې ورځې دوام درلود، قوماندانانو هر اړخیزه په سیاسي او پوځي پرمختګونو خبرې وکړې او د یوې ټاکلې ستراتېژۍ په جوړولو یې اتفاق راغی.

شورا پېښور کې دفترونه پرانیستل، مخابروي چېنلونه یې فعال کړل او د چارو پرمختګ لپاره یې د فعالیت هسته کېښوده، په ټول هېواد کې د پوځي پرمختګونو د همغږۍ لپاره ضرور وه له احمد شاه مسعود سره مخامخ خبرې وشي. هغه دې ته چمتو شو د پاکستان چترال ته نژدې په شاه سلیم کې د شورا د کمېسیون غونډه کې برخه واخلي. د دغه کمېسیون مشر مولوي جلال الدین حقاني و، له ده سره په کمېسیون کې قوماندان عبدالحق، قاري بابا، انور خان جګدلک، سید جګرن،

قاضي امین وردگ، اخترمحمد ټولواک او ګڼ نور قوماندانان شاه شلیم ته ولاړل. د پاکستان آی ایس آی په څار کې و، په دغه غونډه کې د هېواد په څینو برخو کې د ګډو عملیاتو خبره وشوه، چې پر یوه وخت به د هېواد په څو برخو کې همغږې بریدونه ترسره کېږي.

احمد شاه مسعود باوري و چې د قوماندانانو شورا به د خپلو پلانونو او اهدافو لپاره استعمال کړي، ده ظاهراً پاکستان ته له تلو څان غړاوه، ګویا پر آی ایس آی یې خپل قیمت زیاتاوه. د ده دغه ډول نازونو وزن پیدا کړ، مسعود، د مولوي حقاني او نورو قوماندانانو د ټینګار او احترام په ښوولو اسلام اباد او پېښور ته ولاړ، اسلام آباد کې یې له پاکستاني مقاماتو سره د پوځ دننه د خپل رول او نفوذ خبرې شریکې او هغوی د دغه راز په شریکولو دده ممنون شول.

د پوځ دننه د رول لوبولو او نفوذ پر سر مسعود له ای ایس ای، درانه امتیازونه او امکانات تر لاسه کړل.

مولوي حقاني په حیات اباد کې احمدشاه مسعود او د ده ۲۰۰ ملګرو ته درنه مېلمستیا کې یو زغروال لنډکروزر سوغات ورکړ.

د باخبره ذریعو په وینا احمد شاه مسعود په اسلام اباد کې له امریکایي مقاماتو سره هم د خولې او تر یوه بریده د زړه خبرې شریکې کړې، ده په اسلام اباد کې د نورو غربي او عربي هېوادو له سفیرانو او رسنیو سره هم د هغوی د مزاج او طبعې بنداروونه ترسره کړل.

مسعود پاکستان ته په تلو دوې نه بلکې درې ګټې وکړې:

ملنګه دوې ګټې دې وکړې

یو دې خیر تول کړ بل دې وکړل دیدنونه

ده له پاکستان نه د پرېمانه امکاناتو او امتیازاتو په تر لاسه کولو سره د ډېرو نورو اړخونو پام هم ځان ته واړاوه.

مسعود په لومړي سر کې دقوماندانانو شورا تائید او ټینګ ملاتړ وکړ، تر دې چې په یوه مرکه کې یې وویل: د قوماندانانو سرتاسري شورا په جوړېدو د نظار شورا فعالیت او تشکیلاتو ته اړتیا نه لیدل کېږي.

## خوست د ټولو تنده:

په شمال کې کارمل او ځینو نورو فاشیستي کړیو پوره کار کړی و، هلته د دوستم ملیشه د پرسونل او تجهیزاتو له مخې خورا ځواکمنه او عملاً د یوې فرقې تشکیلاتي پولو ته رسېدلې وه.

نجیب چې په اوبو کې په لوټه اېښودو او تېرېدو عادت و، داسې تلقین شو چې په جنوب او ختیځ کې پښتانه د ده پر خلاف جنګېږي خو د شمال ازبک او تاجک یې دفاع کوي، له همدې ځایه وه چې د دوستم او شمال نورو ملېشو ته یې زیات امتیازات منظور کړل.

د ببرک کارمل پلویانو لا پخوا دا خبره کوله چې شرق، جنوب او جنوب غرب جنرالان زېړوي او شمال عسکر، دوی د خوست له سقوط وروسته دغه تبلیغات تاوده کړل چې له خوست پښتانه جنرالان ژوندي او سلامت راغلل خو د دوستم د ملېشو افراد مړه یا بندیان شول.

په خوست کې ۱۷۰۰ تنه پوځیان ژوندي نیول شوي وو، په دوی کې ۲٦۰ تنه پوځي افسران اوه جنرالان هر یو د دفاع وزارت مرستیال ډګر جنرال محمد ظاهر سوله مل، د خوست ۲۵ فرقې قوماندان برید جنرال ګل اقا، د دفاع وزارت سیاسي چارو مرستیال برید جنرال مصطفی، د

N۳۲ الوتکو د غونډ قوماندان برید جنرال محمد عظیم، د ملي گارد د توپچي رئیس ارکان برید جنرال محمد قاسم، په خوست کې د دوستمي ملیشو قوماندان برید جنرال عبدالحبیب او د خوست د ملي امنیت مرستیال برید جنرال جلبل شامل وو.

موږ له فرهنگي کمېټې خوست کې د نیول شویو پوځي افسرانو، عسکرو او ملیشو نوملړ له تصویرونو سره چاپ او کابل ته په لېږلو د دوی کورنی داډه کړې... له همدې ځایه وه چې کورنیو یې د لیدو مخه وموندای شوای.

له دغو اسیرانو گڼ یې د بېلابېلو مناسبتونو له مخې پرېښودل شول، پاتې ۱۰۰۰تنه د ۱۳۷۰ لمریز کال د جدی پر ۳۰مه ژوره کې د خانگړو مراسمو ترځ کې په داسې حال کې چې یو جوړ جامې، څپلې، څادر او ۲۰۰ کلدارې هم ورکړای شوې ازاد شول: مولوي حقاني په هغه غونډه کې چې په دې اړه جوړه شوې وه وویل: په تېرو لسو میاشتو کې دغو افرادو د زده کړې په څنگ کې د مجاهدینو خدمت هم کړی، موږ دغه تکي په هغو مکتوبونو کې لیکلي چې دوی ته مو ورکړي دي. مولوي حقاني زیاته کړه، مجاهدینو په خوست کې د نیول شویو پوځیانو او ملېشو پر وړاندې له مهربانی او مرحمت کار واخیست، حقاني دغو ملېشو، عسکرو ته په خطاب کې وویل، زموږ ستاسې مخالفت د رژیم له امله و چې هغه دلته ړنگ شو زموږ تاسې دښمنی ته نور ځای نه لیدل کېږي- موږ او تاسې د یوه وطن او گډ کور غړي یوو. ښایي ووایو چې زخمیان په هماغو لومړیو کې د ارماکورا په لاس سره صلیب ته سپارل شوي وو.

۱۹۵تنه افسران او جنرالان د نجیب رژیم له نسکورېدو وروسته ازاد شول په دې توگه هېڅ نیول شوی پوځي او ملیشه نه دی وژل شوی او

په دې اړه د ازبک، تاجک او پښتون توپير او امتياز نه دی شوی.

حقيقت دا دی چې خوست له سختې کلابندۍ او څو کلنو درنو جګړو وروسته فتحه شو. د شوروي پوځونو سرلښکر جنرال ګروموف په دې اړه خپل کتاب کې کاږي: ((د ۱۹۸۷ په مني کې د پکتيا، خوست حالاتو افغاني او شوروي پوځي قوماندانان ډېر اندېښمن کړل، مخالفينو د خوست کلابندي بشپړېدو ته نژدې کړې وه يوازې ترانسپورتي الوتکو هغه هم د شپې له خوا خوست ته خوراکي مواد رسولی شول، د دغه سيمې د مخالفې وسله والې ډلې اصلي برخه د ځدرانو قبيلې له پوځي ډوله ځواکونو جوړه وه، دا ډېر مغرور قام دی او د خپل تاريخ په ټوله موده کې يې هېڅ حکومت ته غاړه نه ده اېښې او څنګه يې چې زړه غوښتي همغسې يې عمل کړی دی. د دوی ستر قوماندان جلال الدين حقاني دی چې خپله هم په قام ځدران دی، څلوېښتم لښکر د خوست محاصرې ماتولو ته تياري نيوله چې دغه کلابندي په سوله ييزه طريقه ماته شي، ان چې زه د لښکر د قوماندان او راتلونکو عملياتو د لارښوونکي په توګه اړ شوم د تفاهم او خبرو لپاره خپل امکانات په کار واچوم، سره د دې چې زه د هغه غاښي سر ته چې جلال الدين حقاني د واکمنۍ سيمه د افغانستان له نورې خاورې بېلوي وختلم خو له هغه سره مې مخامخ کتنه ممکنه نه شوه، هغه له شورويانو نفرت درلود، له ده سره زموږ مراوده د څو ليکونو له لارې وه خو د ده ځواب منفي او هغه يو نه پخلا کېدونکی قوماندان و. د جلال الدين حقاني پر ضد د شوروي د څلوېښتم لښکر له خوا په دغو عملياتو کې ۱۰۸ او ۲۰۱ موټرېزه فرقې، ۱۰۳ نومره هوايي کوماندويي فرقه، د پرغليز ديسانت٥٦ نومره مستقله لوا د ۳۴۵ نومره مستقل کوماندويي

پراشوټي غونډ او يو شمېر نورو قطعو او جزوتامونو گډون کړی و. د افغانستان له وسله وال پوځ د اتمې، يوولسمې، دوولسمې، څوارلسمې او پنځه ويشتمې فرقې، د ټانګ پنځلسمې لوا، يو شمېر ګوزاريزه قطعو او همدارنګه د څارندوی او ملي امنيت له ارګانو څه د پاسه لسو کنډکونو برخه درلوده، مونږ د عملياتو لپاره له تيارۍ سره دا تمه درلوده چې له جلال الدين حقاني او نورو مشرانو سره د خبرو له لارې کلابند خوست ته په سوله ييزو بارونو ډک موټر بې له کوم خنډ نه د تګ امکان ومومي، خو څرنګه چې له مخالفينو سره زمونږ د سوله ييز تېرېدو پر سر موافقه ونه شوه، نو له پلان سره سم د نومبر پر ۲۳مه مو خپل جګړه ييز عمليات پيل کړل. خبره دومره جدي او خطرناکه شوه چې له کابل نه د سرحدونو وزير سليمان لايق هم سيمې ته راغی، ده هم د خپلو ټولو امکاناتو او هڅو له مخې له جلال الدين حقاني وغوښتل خوست ته د تلونکي کاروان مخه پرانيزي مونږ د حقاني خلاف په څو جبهو کې جنګېدو، دا ځل مو د ده پر ضد تبليغاتي او سياسي جبهه هم پرانېستې وه مونږ د *پوځي استخباراتو له لارې په پاکستان کې يو داسې ليک خپور کړ چې ګنې جلال الدين حقاني د لانجې د حل لپاره له شوروي قوماندان سره توافق ته رسېږي او له خپلو نژدې پلويانو سره د جګړې له ډګر نه د خپلو ځواکونو د ايستلو لار لټوي، مونږ غوښتل د جلال الدين حقاني پرستيژ ته زيان ورسېږي او که ممکن وي له منځه يووړل شي، بله دا چې لږ تر لږه به هغه د دغو تبليغاتو سره د مقابلې لپاره د جګړې له لومړيو کرښو ليرې شي، د دې لپاره چې څوک د دغه ليک پر صحت شک ونه کړي په هغه کې مو د ده د ځواکونو د په شا کېدو دقيقه نېټه هم ښودلې وه.))*

د دغو جګړو سختوالی له دې ټکي څرګندېږي چې کلابند خوست ته د اکمالاتو په اوږدو کې څلور څلوېښت N ۷-۳۲ N ٢٦ ((ټولې ۵۱)) الوتکې له منځه تللې دي.

د خوست فتحه د یو بریالي تاکتیک پایله وه چې د دښمن د کمزورۍ ټکي په پېژندنې تر برید لاندې ونیول شو، د خوست د ۲۵مې فرقې قوماندان جنرال ګل اقا ما ته وویل: کله مې چې د فارم باغ په استقامت په دوربین کې د مجاهدینو پک اپ موټران ولیدل چې له ټانکونو سره یو ځای اکمالات کوي پوه شوم چې نوره د خوست دفاع ناشونې ده. له بلې خوا مولوي حقاني د خوست له فتحې درې ورځې مخکې د دې لپاره چې له خوست نه کډې او ولسي خلک ووتلی شي دوه ورځینی اوربند اعلان کړ، دغه مهال له یوې مخې له خوست نه کډې او ولسي خلک ووتل او په هغه لاریو کې میرانشا او ګوربزو ته لېږدېدل چې مولوي حقاني له خوا ورته برابرې شوې وې، حربي ښوونځي، منبع العلوم مدرسه او یو شمېر نور ښوونځي مدرسې او دفترونه وار له مخه د دوی استوګنې لپاره تخلیه شوي وو. د دوو ورځو په تېرېدو خوست له خلکو خالي شو، د سیمې پوځي افسران او ملېشه له خپلو کورنیو سره ووتل، په دې توګه د پوځ په لیکو کې نامرئي ماتې ګډه شوه.

کابل رژیم د ملګرو ملتونو د سرمنشي په نامه لیکونه واستول او په خوست کې یې د جګړې د مخنیوي په اړه د مداخلې غوښتنه وکړه، د دې په څنګ کې رژیم تبلیغات کول چې له مجاهدینو سره پاکستاني ځواکونه مرسته کوي، خو مولوي حقاني د جګړې له لومړی کرښې په یوه مخابروي پیغام کې وویل: ((موږ اعلان کوو چې د ملګرو ملتونو هیئت دې راشي د روسانو او نجیب رژیم هیئت دې هم ورسره وي، زموږ

سنگرونه دې وګوري، په هر ځای او هره برخه کې چې غواړي ګرځېدلی شي که د خارجي هېوادو د ځواکونو کومه نښه یې ومونده بیا موږ خپله پره منو، ټولو ته په ډاګه وایو چې هر څوک کولی شي زموږ سنګرونه، تاکتیک او وسلې وګوري په دې اړه هر ډول نړیوالو قوانینو او مقرراتو منلو ته تیار یو.))

د حمل پر لسمه کله چې مجاهدینو د دواړو هوایي ډګرونو شاوخوا پوستې فتحه کړې مولوي حقاني په یوه اعلامیه کې څرګنده کړه چې پر خوست د جګړې اهداف تر لاسه شوي، د حمل پر ۱۱مه د مازدیګر په څلورو بجو او پنځلس دقیقو د فارم باغ له استقامت نه د حاجي محمد ابراهیم او حاجي خلیل الرحمن زغروال ځواکونه خوست ته ننوتل دغه ځواکونه بې له دې چې په نیولو شویو ځایونو کې خپل قوتونه ځای پر ځای کړي، مخ پر وړاندې روان وو.

برقيـــة

[illegible]

المكرم الشيخ جلال الدين حقاني

[illegible]

السلام عليكم ورحمة الله وبركاته وبعد،

[illegible]

خادم الحرمين الشريفين

فهد بن عبدالعزيز آل سعود

ملك المملكة العربية السعودية

Jamiat-e-Islami Afghanistan



جمعیت اسلامی افغانستان

No
Date

تاریخ ۹۳-۱۱-۴/

محترم مولوی صاحب حقانی حفظه الله

السلام علیکم و رحمة الله و برکاته وبعد!

فتح خوست را به شما و عموم قوماندانان
ولایت پکتیا تقدیم نموده و از بارگاه
اقدس الهی بدست دعا و نیاز میبرم که
این فتح را مقدمه فتح جبین و سرنگونی رژیم
ملحد کابل قرار بدهد، و ما ذلک علی الله بعزیز

برادرتان

برهان الدین ربانی

د هغو پوځي افسرانو په وینا چې د خوست په فتحه کې نیول شوي، د جمهور رئیس مرستیال نظرمحمد او دفاع وزارت مرستیال ډگرجنرال سوله مل ارزښتناک اسناد له منځه یوورل د زاس مخابرې دستگاه چې لوی درستیز سره یې محرمانه اړیکي درلودې، ویجاړه کړه، نظرمحمد او جنرال فاروق یوې او سوله مل بلې خوا ته روان شول، ډگر جنرال سوله مل د مجاهدینو له خوا تر پېژندنې وروسته ونیول شو، خو نظرمحمد او جنرال فاروق پاکستان او له هغه ځایه کابل ته په تلو بریالي شول، ډگر جنرال سوله مل چې کابل ته د مجاهدینو له نټوتو وروسته خوشي شو د ښاغلي مسعود د دفاع وزارت مرستیال وټاکل شو، وروسته نظرمحمد په کوټه او سوله مل هلمند کې د نامعلومو کسانو له خوا ووژل شول. د خوست سقوط ډاکټر نجیب، ملي ماتم وګاڼه، نوموړي دوې ورځې بې درکه و، ده خو ځله دا غوره کړې وه که خوست سقوط وکړي نو واک به پرېږدي. د حمل پر ۱۹مه نېټه په نیولې خبره د وسله والو ځواکونو د اعلی سرقوماندانی قرارگاه ته ورغی، په یوه غونډه کې یې د خوست سقوط په اړه وویل: ((خوست په یوه نا انډوله جګړه کې سقوط وکړ، موږ له خپله اړخه په هېڅ اقدام دریغه ونه کړه، د هوا حالات هم زموږ په زیان و، په سوق او اداره کې هماهنګي او ګډه مرسته نه وه، مورال کمزوری و خو له دې ټولو سره موږ باید دا ومنو چې خوست نور زموږ په واک کې نه دی.

خو موږ خوست داسې نه شو پرېښودی، پر خوست ښایي داسې ګوزارونه وکړو چې هلته هېڅوک ژوند ونشي کړای دا ډول چې که خوست زموږ نه دی د بل چا هم نه شي.

د ژوره او ځدرانو سیمې چې حقاني پکې اوسي تر سختو ګوزارونو لاندې ونیول شي هوایي عکسبرداري وشي او په ستو کندو کې ژر تر ژره

گارنیزیون جوړ شي.)) ډاکټر نجیب په یوه اعلامیه کې د الجزایر، سوریې، مصر، لیبیا او څو نورو عربي هېوادو له مشرانو وغوښتل چې د افغانستان د حالاتو په اړه سیاسي او ډیپلوماتیک گام پورته کړي.

د خوست جگړه او فتحه د مقاومت په تاریخ کې یو بل باب را واراوه، د جلال اباد د جگړو له امله را منځته شوی ډب یې مات او مجاهدین یوه فاتحانه دریځ ته وخېژول. موږ د خوست جگړې له پیله جهاد هېنداره اوونیزه په اوونۍ کې دوه ځله خپروله، کټونکو د خوست د جگړو جریان دومره دقیق څاره چې د امریکې قونسل به د معلوماتو لپاره زموږ دفتر ته راتی، ما به چې هغه ته د نویو پرمختگونو په اړه معلومات ورکړل لکه د ده سوال نیمگړی پاتې وي، ویل دا هغه معلومات دي چې اژانسونه او خپرونې یې هم په واک کې لري، زه هغه څه غواړم چې د اژانسونو او خپرونو لاس ورته نه وي رسېدلی...؟ خوست د مجاهدینو تر منځ هم تنده او رقابت رامنځته کړی و... شهادت اونیزې د حکمتیار صاحب یو مضمون چاپ کړ چې گنې مولوي حقاني د خوست سقوط مخه ډب کړې، دده په خبره خوست حقاني ته لنگه غوا گرځېدلې، چې په تینگه کلابندی یې څانته خوندي کړی دی... حکمتیار صاحب خپله لیکنه کې نورې نیوکې هم کتار کړې، دا چې حقاني ځان پسې په درنو وسلو سمبال د موټرو کتار لگولی... مجهول الهویه کسان یې را ټول کړي غوري مجلې- کتابونه، اخبار ورته راباسي... ما د شهادت دغه گنه له یوه لیک سره حقاني صاحب ته ولېږله چې خپلو نشراتو کې ځواب ورکړو... حقاني صاحب خپل لیک کې د شهادت پر لیکنه د اغماض او سترگو پټولو کښلي...

په دې توگه زموږ تر منځ د مطبوعاتي ناندرۍ مخه چې جهادي خپرونې ورسره مخامخ وې ونیول شوه...

٦٥/٦٦

Hezb-e-Islami Afghanistan
Shk Jalaludin Haqani Office
for Afghan Al Mujahidin Affairs
Internal Affairs
U.P.O.Box 1033 Peshawar Pakistan
Tel 810482 42204
Date ____________



الجهاد ماض الی یوم القیامة

حزب اسلامی افغانستان
مکتب الشیخ جلال الدین حقانی
لشئون المجاهدین الافغان
شئون الداخلیة
ص . ب : ۱۰۳۳ U.P.O.Box
تلیفون: ۸۱۰۴۸۲، ۴۲۲۰۱
پشاور ، پاکستان
التاریخ ............

محترم شنیال صاحب السلام علیکم
ورحمة الله وبرکاته!

قدرمنه عزت او کامیابي درته غواړم
محترم صاحب ستاسو د نیکو او ښو احساساتو څخه ډېر
منندوی یم کومې بدۍ او بې ځایه خبرې چې په شهادت
د رضا په ټکي نشر شوي دي په دغه باندې باید صحیح
ځان پوهه نکړو او بې پروایي وکړو ځکه چې که موږ
جواب ورکړو موږ هم ځکه او ځانونه ته سپک
معلومیږو نو باید د اخبارو څخه تغافل وکړو.
نوره په پښتو کې متل دی کاروان چې تېرېږي = = =

الحاج مولوي جلال الدین حقاني

[signature]

۱۳۷۰/۵/۳۱



مولوي حقاني او استاد رباني د خوست له فتحې وروسته



انجنیر حکمتیار او مولوي حقاني په بري کې



مولوي حقاني، جنرال عبدالرحیم وردک او قوماندان عبدالحق د خوست له فتحې وروسته



حضرت صبغت الله مجددي، مولوي حقاني، حاجي نعیم کوچی، د خوست له فتحې وروسته



د بي بي سي خبریاله لیزدویست، حامد علمي، شهرت ننګیال په بري کې له مولوي حقاني سره (د خوست د فتحې دویمه ورځ)

## ناکام بری:

د خوست فتحې په پوځي او سیاسي برخو کې نویو پرمختګونو ته لار پرانیستله. د کارمل ګروپ او د شمال نورو فاشیستي کړیو د خوست سقوط یو ملي سازش او د نجیب له خوا پښتنو مجاهدینو ته یو امتیاز وړکول وګڼل، دوی دغه موضوع ډېره زیاته وشاربله چې مطبوعاتو ته هم را ووتله، محبوب الله کوشاني او د ګروه کار ډلې لکه هاشم پیکار، فضل احمد طغیان، عبدالوکیل د دغو تبلیغاتو مخکښان وو، ((سازا)) او ((سفرا)) دوې نورې کوچنۍ فاشیستي ډلې وې چې د شمال ملېشو، کارملیانو او احمد شاه مسعود تر منځ یې د پله رول درلود. دوی داسې تبلیغات هم کول چې سلېمان لایق له حکمتیار سره ننګرهار ته څېرمه کتلي او د حزب اسلامي په زرګونو کارتونه یې ورکړي چې ګوند کې یې پر پښتنو وویشي، څکه خو ښایي دوی هم په جدي او ورته اقدام لاس پورې کړي، دغه تکی د جمعیت نشراتي ارګان مجاهد هم یوه ګڼه کې خپور کړی. د دغو کړیو د ګډ تفاهم په نتیجه کې تخار ولایت احمد شاه مسعود ته وسپارل شو او دا کار یې د خوست د سوبې ځواب وګاڼه خو نجیب الله د جنرال جمعه اڅک تر قوماندانۍ لاندې تخار ته نوي قطعات ولېږل په دې توګه تخار بېرته له احمد شاه مسعود ونیول شو.

اڅک د عبدالرؤف بیګي تر مشرۍ لاندې پوځونه په تخار کې ځای پر ځای کړل خو هغه بېرته د تخار د تسلیمۍ زمینه برابره او تخار یو ځل بیا احمد شاه مسعود ته وسپارل شو. دغو کړیو په داسې تبلیغاتو لاس پورې کړ چې ګواکي حکمتیار غواړي د ډاکټر نجیب په مرسته د یوه کودتایي اقدام له لارې واک تر لاسه او د پښتنو واکمني وساتي.

ددغه منفي او ناوړه روحیې د خپرولو اهداف پر نورو برسېره دا و چې د ببرک کارمل ګروپ او د رژیم هغه عناصر چې د شمال دي پر نجیب الله بې باوره کړي.

کارمل ډلې له افغانستان د روسي پوځونو وتل د ثور انقلاب ماتې او یو تاریخي خیانت باله- روسي لښکرې باید ونه وځي د انقلاب ګټې او پایلې له پامه ونه غورځي- او د څلوېښت زرو ګوندیانو د وینو ضایع کېدو غلطي ونه کړي.

کارمل ګروپ له افغانستان د روسي لښکرو د وتلو په غلطی نجیب الله پړ باله او دا تکی یې د نجیب الله خلاف د واک په اخ او ډب کې تبلیغاوه، د قدرت دغه سیالي به کله تته شوه کله ښکاره- چې د نجیب له څارګرې اداري پټه نشوای پاتې کېدی.

کارمل روسیه کې د یانایف کودتا پر ناکامی د واک له تر لاسه کولو نهیلی شو. څکه خو یې تولې هڅې له نجیب الله غچ او انتقام ته را تولې کړې. کارمل ډلې د خوست له سقوط د نجیب الله د اتوریتي په کمزوری کولو کې ګټه واخیسته- په دې توګه یې په شمال کې د تشکیل او سازماندهی مخه پرانېسته.

میهن جریدې ولیکل: په خوست کې پښتانه جنرالان ژوندي وسائل شول خو د دوستم ملیشې ووژل شوې.

پوښتنه دا ده چې ډاکټر نجیب الله څرنګه له دې جریان ناخبره و؟

خبره داسې وه چې خاد دغه ټول انکشافات له نژدې څارل او خپل معلومات یې لوړو ادارو ته لېږل خو یعقوبي او نجیب ته نه رسېدل، د دولتي امنیت وزارت اووم اداري ریاست د مرکزي نظریاتي ریاست په

توګه دنده درلوده د هېواد د پوځي او سیاسي وضعې په اړه د ټولو رپوټونو له تر لاسه کولو، څېړنې او تحلیل وروسته جمهور رئیس ته ولېږي.

*لکــه دمخــه مــو وویــل، د دولتــي امنیــت ریاســت چــې د شــمال پــه اړه کــوم راپورونــه تــر لاســه کــول- یعقــوبي او نجیــب الله تــه نــه رسېدل.*

*د دغې ادارې رئیس (نصیر) چې د دولتي امنیت لومړی مرستیال یارمحمد له خوا ټاکل شوی و- دغسې رپوټونه یارمحمد ته سپارل، خو یارمحمد هغه راپورونه چې د شمال په اړه و، جمهور رئیس ته نه لېږل.*

*دغه راپورونه به د یارمحمد او فرید مزدک تر منځ له تبادلې وروسته ساتل کېدل.*

*یو کال وړاندې دغه ادارې ته شک پیدا شو چې له دې مخکې به پر رپوټونو د یعقوبي او نجیب الله یادښتونه و، چې ګني هغوی کتلي- دلته وه چې پوه شول راپورونه یې پټ ساتل کېږي له همدې ځایه یې له یعقوبي سره د اړیکو مخه ولټوله.*

پر یارمحمد، یعقوبي باور درلود- خو له دې وروسته یې له ادارې نېغ په نېغه راپورونه تر لاسه کول- خو دا هغه وخت و چې پر یعقوبي ناوخته شوې وه- نه یې د تصمیم وخت درلود او نه یې د اساسي چارې وس- هڅه یې وکړه په شمال کې د قطعاتو قومانده کې بدلون راولي.

دلته وه چې په حیرتان کې یې د اویایمې لوا قوماندان جنرال مؤمن

تبدیل کړ- د دولتي امنیت د کدري چارو مرستیال زمان ارزو ته دنده ورکړل شوه جنرال مؤمن مرکز ته را وغواړي.

یارمحمد، رشید دوستم او جنرال مؤمن ته خبرداری ورکړ که کابل ته راشي نجیب الله به یې د خیانت په تور بندي او محاکمه کړي. نجیب الله د رسول قهرمان په نامه یو جنرال د اتلسمې فرقې قوماندان او بشیر پیوستون د بلخ والي وټاکل- خو دوی ونشو کړی د شمال سرکښه پرمختیاوې ایل او یا یې د خپرېدو مخه ډب کړي، جنرال مؤمن هم کابل ته له تلو مخ واړاوه.

د دولتي امنیت وزارت کې یوه ستره دوسیه د ازاد بیگ په نامه ترتیب شوې وه، ازاد بیگ د شمال اتحاد روحاني بنسټگر گڼل کېده، ده په پېښور کې د خراسان په نامه د شمال مهاجرو ته ځانگړی کمپ جوړ کړ، هغه وخت داسې اوازې خپرېدې چې ازاد بیگ له جنرال اسلم بیگ سره نژدې اړیکي لري.

احمد شاه مسعود چې د قوماندانانو شورا په برمته کولو ونه توانېده، د شورا د دریېمې غونډې په جوړېدن کې ناغېړی ته مخه کړه. چې له امله یې غونډه وځنډېده.

په ۱۳۷۰ لمریز کال کې چې جنرال رحمت الله ساپی د مولوي جلال الدین حقاني له خوا د قوماندانانو سرتاسري شورا د دریېمې غونډې د جوړېدو لپاره د شمال له قوماندانانو سره د تفاهم لپاره ولېږل شو د ازاد بیگ، مسعود، دوستم او نورو فاشیستي ډلو تر منځ له گډ او خطرناک سازش پرده پورته کړه، جنرال ساپي په شمال کې د یوې خطرناکې لوبې گواښ په گوته کړ چې څه وړ هلته د تعصب، پرچم او ستم تر منځ د اړیکو مخابروي کانالونه او چینلونه په فعالیت بوخت دي.

په وروستیو کې ولي خان د ډاکټر نجیب یو پیغام حکمتیار ته ورساوه چې له را روان گوابنه یې پرده پورته کوله، په پام کې وه د حکمتیار استازی ((ښاغلی...)) د هندوستان له لارې کابل ته ولاړ شي- خو ښاغلي نه غوښتل د هند له لارې کابل ته ولاړ شي.

دی د ازرې لوگر له لارې کابل ته ولاړ، له ډاکټر نجیب الله او یعقوبي سره یې وکتل- خو وروسته د ده پر ځای د حزب د مخابرې یو مامور ته د دغو خبرو لړی وسپارل شوه- چې ددغسې یوه ماموریت ظرفیت یې نشوای لرلی.

شمال د روسانو له خوا وار له مخه د هېواد د دویم پایتخت لپاره پام کې نیول شوی و، له همدې ځایه وه چې د صدارت یو مرستیال د هېواد شمال کې خپل دفتر پرانیستی و. روسان په دې فکر وو چې که ټول افغانستان یې ونشو خوړلی لږ تر لږه خو یې څه برخه د شمال په نامه لاندې کړی شي.

گورباچوف ډاکټر حسن شرق ته په ډاگه کړې وه چې که احمدشاه مسعود په شمال کې د خودمختارۍ پراخه سیمې په ورکولو جنگ پرېږدي او له تاسې سره همکاري وکړي تاسې په دې اړه څه فکر کوئ؟

ډاکټر نجیب الله د دفاع وزارت چوکۍ درې کاله تشه پرې ایښې وه، په دغه موده کې جنرال رفیع د وسله والو ځواکونو د اعلی قوماندانی د رئیس ارکان په توگه ټاکل شوی و. ویل کېږي د یوه ځانگړي چینل او شبکې په وینا نجیب الله درې کاله دغه څوکۍ د احمدشاه مسعود لپاره ساتلې وه.

په افغانستان کې د ((شمال حکومت)) جوړولو او احمدشاه مسعود د رول په هکله ډاکټر محمد حسن شرق ځینې نورې څرگندونې هم

کړې: د ۱۹۸۸ په لومړيو کې ډاکټر نجيب الله دې ته وهڅول شو چې د افغانستان شمال حکومت جوړ کړي، ډاکټر شرق په دې اړه کاږي: ((با آنهم مشاورين شوروي با تلاش های اخرين همزمان با بر امدن عساکر خويش از افغانستان تحت زعامت دوکتور نجيب الله رئيس جمهور و سلطان علي کشتمند صدراعظم طرح افغانستان شمالي و جنوبي را بميان گذاشت و ۹ ولايت سمت شمال: ميمنه، شبرغان، بلخ، بغلان، کندوز، تخار، بدخشان، سرپل و باميان را بنام حکومت واحد مرکزي افغانستان در کابل جدا نموده و آقای نجيب الله مسير عضو کمېټه مرکزي ح.د.خ را در حوت ۱۳٦٦ به حيث کفيل صدراعظم شمال با ۱٦نفر معاونين وزارت های کابينه او مقرر و در مزارشريف شروع به کار نمودند...))

ښاغلی رباني چې د صبغت الله مجددي په موقت حکومت کې د بيا ودانولو وزير و د ۱۳۷۰لمريز ليندۍ کې، له مسکو نه له راستنېدو وروسته ايران ته ولاړ او د فارسي ويونکو په ټولنه کې يې پر برخې اخيستو د ايران او تاجکستان د بهرنيو چارو له وزيرانو سره ګډسند لاسليک کړ.

په همدغه کال ښاغلي رباني د چترال له لارې افغانستان ته ولاړ، دده له چترال نه بدخشان ته ختلې لار ((کافر کوتل)) باندې د اسلام کوتل نوم کېښود. له دې مخکې ښاغلي حکمتيار هم هڅه کړې وه چې د خپل سفر په ترځ کې ((سرخ پارسا)) پر سبز پارسا اړولی و.

استعمار چې کله هم په کومه سيمه کې د مقاومت څپې په مخه کړي داسې ربړې په ميراث پرېږدي چې کلونه د ولسونو په منځ کې ناکراريو ته لمن وهي، د شوروي پوځيانو د وتلو پر مهال يوه روسي

جنرال ویلي و: موږ له افغانستان څخه وځو، خو زموږ له وتلو وروسته به له افغانانو سره خپله خاوره په جګړه اخته وي.

کتونکو داسې ګڼله چې د جنرال مطلب هغه ماینونه دي چې شوروي لښکرو په دغه هېواد کې کرلي، خو د جنرال هدف انساني ماینونه وو چې د جګړو او وینو تویولو د دوام لپاره يې په یو شمېر څېرو کې تعبیه کړي وو.

د جنرال جمعه اخک او جنرال مؤمن اړیکي له وړاندې ښه نه و، د دې یو لامل دا و چې جنرال اخک له احمدشاه مسعود نه تخار بېرته ونیو، جنرال مؤمن له احمدشاه مسعود سره اړیکي لرل. احمدشاه مسعود، مولوي جلال الدین حقاني ته هماغه وخت مخابره کې له جنرال مؤمن سره په اړیکو اعتراف درلود.

د دولت اباد د بېرته نیولو پروسه اوږده شوه، له جمعه اخک سره د دوستم ځواکونو همکاري نه کوله، اصف دلاور شبرغان ته ولاړ، دوستم دې ته چمتو شو په عملیاتو کې برخه واخلي، په دې توګه د کلفت بندر له لارې د دوستم ځواکونه بې له کوم مقاومت نه دولت اباد ته ورسېدل او جنرال دوستم یو بل امتیاز هم تر لاسه کړ، جنرال دوستم وړاندیز وکړ چې د یوې ځانګړې قطعې منظوري ورکړي چې په دولت اباد کې يې ځای پر ځای کړي، اصف دلاور يې د وړاندیز ملاتړ وکړ، مانوکي منګل او جمعه اخک مخالف وو، دوی استدلال کاوه که هره ورځ د نویو قطعو د منظورۍ په اړه د دوستم وړاندیزونه منل کېږي ډېر ژر به دغه سیمې د دوستم د ځواکونو تر ولکې لاندې شي، بیا لیرې نه ده چې له مرکز نه هم سرغړونه پیل کړي.

له بلې خوا په شمال کې عملاً د ملکي او پوځي ادارو واک د کارمل د

پلویانو په منګولو کې و، جنرال مؤمن، جنرال جمعه نظیمي، جنرال بلال، جنرال احمدیار د پرچم په اشاره د جمعه اڅک اوامر نه عملي کول، له همدې ځایه وه چې مانوکي منګل او جمعه اڅک په شمال کې د یوې خطرناکې لوبې د مخنیوي لپاره دا ضروري ګڼله چې د شمال په پوځي او ملکي ادارو کې تغیرات راشي.

د نورو بدلونونو په لړ کې جنرال ستار د جنرال مؤمن په ځای ټاکل شوی و، جمعه نظیمي، احمدیار او هلال نویو بدلونونو ته غاړه کېښوده خو جنرال مؤمن، جنرال ستار بندي او د مرکز له امر نه سرغړونه وکړه، په دې توګه د تغیر او تبدیل عادي اقدام داسې لوری غوره کړ چې د ستم او پرچم  د اهدافو پلي کولو ته یې بشپړه مخه پرانیستله، په دې ټولو هڅو کې د پلان جوړولو نقش د ببرک کارمل و، که څه هم کارمل د کوم نوښت وړتیا نشوای ښودلای - ده پر خلکو د اغېز څه نه لرل، د شوروي او برېژنېف دکتورین پلي کولو ته یې کار وایه - خو نجیب الله د ارادې، وینا او عمل په ډګر کې د نویو تجربو وړاندې کولو ابتکار له ځان سره خوندي ساته. د کارمل ګروپ لومړی په دې کار وکړ چې د شمال دولتي قوماندانان له ځان سره همغږي او په دویم ګام کې نظار شورا د ځان په ګټه د نجیب الله په نسکورولو کې وکاروي.

د ژبنیو اختلافونو له راپورته کولو د ببرک کارمل هدف دا و چې د ځان لپاره یوه تکیه پیدا کړي، له دې پرته یې بله داسې وسیله او کارت نه درلود چې د دغسې اهدافو په لار کې یې وکاروي، په دې توګه یې د شمال د دولتي قوماندانانو او مجاهدینو په نامه د ځینو فاشیستي ډلو تر منځ یو ګډ شعار او موخه را مخې ته کړه.

د شمال له پېښو درې میاشتې دمخه د ببرک کارمل ګروپ غوښتل

په کابل کې د يوه پوځي اقدام له لارې د نجيب رژيم نسکور کړي، څکه خو يې داسې اوازې خپرې کړې چې حکمتيار د جنرال وطنجار، راز محمد پکتين، سليمان لايق او مانوکي منګل په مرسته د کودتا پلان لري، د کابل ګارنيزيون قوماندان نبي عظيمي چې د کارمل له نژدې انډيوالانو و.

د ښار په کمربندونو باندې د دښمن د احتمالي بريد د خطر په پلمه لومړۍ درجه احضارات اعلان کړل، خو د ډاکټر نجيب الله پلويانو يې مخه ونيوله، د دغه پلان تر ماتېدو وروسته کارمل پر خپله دربيمه نقشه چې سناريو يې بشپړه شوې وه جدي کار پيل کړ، هغه دا چې خپل افراد د نظار شورا او جمعيت تر پوښ لاندې په يوه بل چينل کې فعال وساتي.

ډاکټر محمد داوٗد جنبش کاږي: د ۱۹۹۵ کال په اګست کې ((د روسيې پارلمان د مشرانو جرګې (فدراسيون شورا) يو پلاوي د احمدشاه مسعود او دوستم د پخلا کولو لپاره په شبرغان کې د دوستم مېلمه و- د روسيې قونسل مرستيال شف چنګه د دوستم يوه جنرال محمد يوسف ته له پښتنو سره د مخالفت پارولو په روحيه ويلې: ... د ظاهرشاه وخت کې مو پر شمال د پښتنو ظلم هېر کړی چې بيا له هغو سره نژدې کېږئ- او بيا يې د هوښيار اوسئ په لهجه زياته کړه: په اوسني پړاو کې د ناپښتنو ګټې د پښتنو پر وړاندې د هغوی يووالی غواړي... )) له دې څرګندېږي چې روسانو د پښتنو پر خلاف د دښمنۍ څومره اوږد جال او د ډلبنديو لومې غځولې وې.

د جنرال جمعه اڅک، مانوکي منګل او جنرال مؤمن اختلافاتو ته نوی رنګ او مخه ورکړل شوه، جنرال مؤمن مرکز ته د خپلې بې اطاعتۍ

پیغام ولېږه، دا وخت د سید کیان زوی چې د حکومتي ملېشو له تشکیل او امتیازاتو سره یې د مجاهدینو پر ضد له عملیاتو ځان لېرې ساته، د ببرک کارمل او سفزا د هڅو په نتیجه کې پر دغه جریان ورګډ شو.

نبي عظیمي او فرید مزدک په مسکو کې له ډاکټر نجیب نه ناراضي کړی راغونډې کړې، څکه خو په شمال کې د جنرال مؤمن، دوستم او حسام الدین ملیشو نجیب الله ته ګډه کربښه تیره کړه، له همدې ځایه وه چې فرید مزدک د مسکو په یوه مېلمستیا کې ویل: بچه اختر ((اختر محمد د ډاکټر نجیب د پلار نوم دی)) کور خوانده بود، در مزار چنان آتشی بر پا کنم که خشک و تر را بسوزاند بچه اختر را چنان درسی بدهم که تاریخ آنرا فراموش نکند و دیگر این گستاخي را مرتکب نشود که نامی از تفوق طلبی پشتون را بگیرد.

نجیب الله د جنرال مؤمن د پخلا کولو لپاره بېلابېل هیئتونه ولېږل خو نتیجه یې ور نه کړه، مانوکي منګل ډاکټر نجیب ته د شمال وضعه له کنټرول نه بهر او د انفجار په حال کې وبلله، لوی درستیز اصف دلاور چې نجیب الله د شمال د ناراضي جنرالانو د پخلا کولو لپاره په یوه بیړني سفر لېږلی و، ناراضي جنرالان نور هم تشویق کړل او نجیب یې د دوی لپاره د نورو او نویو امتیازونو ورکولو ته هڅاوه.

نجیب الله د دوی پخلا کولو ته جنرال رفیع او د خاد پوځي رئیس په جرګه ولېږل- خو پایله یې ور نه کړه.

دویمه پلا یې نبي عظیمي او سید اکرم پیکر ورولېږل- خو دوی په بل اور نور تېل ور تویې کړل.

جنرال نبي عظیمي د نظار شورا څواکونو سره په اړیکه کې هڅوی

ته وویل: چې ځانونه د بلخ لویې لارې او کمربندونو ته ورنژدې کړي. د ده په وینا بلخ کې د دولت ځواکونه په څپلمنځي سیالۍ کېوتي له مزاره د دفاع ورتیا نه لري.

جنرال نبي عظیمي نجیب الله ته وویل: که جمعه اڅک او د بلخ دولتي امنیت رئیس تاج محمد او نور نوي لېږل شوي کسان کابل ته ور وغواړي کېدای شي جنرال دوستم خپل ځواکونه له جوزجان د بلخ د دفاع لپاره ولېږي. نجیب الله د عظیمي وراندیز ومانه، اڅک، رسول قهرمان او تاج محمد یې مرکز ته وغوښتل.

له جوزجان نه بلخ ته د ملېشو په رسېدو جنرال دوستم، نظار شورا او حزب وحدت وسله والو ته هم د ننوتو اجازه ورکړه، شمال کې د رژیم قوماندانانو د ښار دواړه لویې دروازې نظار شورا ته پرانیستې.

دوستم ته د جنرال نبي عظیمي او اکرام پیګیر په ورتګ وضعه لا هم پېچلې شوه د دوستم شرایط نورهم زیات شول، نجیب الله د جمعه اڅک او ملګرو را غوښتو ته غاړه ایښې وه خو دوستم دوه نور شرطونه وړاندې کړل، ده د شمال د اوپراتیفي ګروپ د قوماندانۍ د غوښتنې تر څنګ دا شرط هم کېښود چې پوځي کدرونه د دوستم او ملکي د کاویاني، مزدک، پیګیر، او محمود بریالي پر وړاندیز منظور شي، ستم او پرچم د دوستم په خوله دا هم وغوښتل چې د شمال سیمې د افغانستان په جمهوریت کې د فدراسیون په توګه ومني، داکتر نجیب الله له دې غوښتنې سره پرېکړه وکړه چې د زور له لارې لانجه حل کړي خو ځینو کړیو ډاکتر نجیب د ازبکستان د دغه ګواښ له امله چې پخپله پوله کې به پوځي تحرکات او مانورې ونه زغمي له دغه کار نه ډډې کولو ته اړ کړ.

نبي عظيمي کابل ته په رسېدو ډاکټر نجيب ته وړانديز وکړ څرنګه چې د مجاهدينو ځواکونو ځانونه د بلخ لويې لارې او کمربندو ته نژدې کړي په بلخ کې دولتي ځواکونه په خپل منځي اختلاف اخته او له مزار نه د دفاع وړتيا نه لري ما ((عظيمي)) جنرال دوستم چمتو کړی له جوزجان نه خپل ځواکونه مزار ته ولېږي او د مجاهدينو د بريدونو پر وړاندې له هغه ځای نه دفاع وکړي، ډاکټر نجيب يو ځل بيا تېر ايستل شو، ده سملاسي د عظيمي وړانديز ومانه، جنرال جمعه اڅک، جنرال رسول او تاج محمد يې مرکز ته وغوښتل او له دې سره جوخت د دوستم ځواکونو له شبرغان نه د مزارشريف پر لور حرکت وکړ، د دوستم د ځواکونو قوماندانې د جنرال عبدالمجيدروزي پر غاړه وه چې مزار ته په ننوتلو يې د تيمورک په سيمه کې د څارندوی قطعه بې وسلې او په دويم ګام کې يې د ۱۸مې فرقې ګڼې پوستې هم بې وسلې او افراد يې رخصت کړل.

جنرال عظيمي ډاکټر نجيب ته يو بل وړانديز هم وکړ چې جنرال دوستم د شمال د اوپراتيفي ګروپ قوماندان وټاکل شي، دغه پوست د جمعه اڅک و، نجيب الله دې ته غاړه کېښوده چې دوستم د اوپراتيفي ګروپ سرپرست وټاکل شي.

لکه وړاندې وويل شول جنرال دوستم چې مزار کې خپل ځواکونه ځای پر ځای کړل، حزب وحدت او نظار شورا ته يې هم ښار ته د ننوتو مخه ورکړه، د ببرک کارمل له خوا د دغې روحيې او تګلارې پر خپرېدو چې که نظار شورا ته لاس ورنکړو او د هغوی په کارولو او د شمال د نورو کړيو په مرسته ګام وا نخلو، پښتانه به يو ځل بيا د حکمتيار، نجيب او... په څېرو کې په واکمنۍ کې پاتې وي،څکه خو پرچم او ستم

ان له پخوا احمد شاه مسعود د یوه منځلاري او لیبرال شخصیت په توګه تبلیغاوه او داسې یې ښودله چې پر مسعود ډېر کار شوی او هغه یو مجاهد مسعود نه بلکې د اقلیتونو د حقونو بیرغ وړونکی او زموږ د اهدافو پلی کوونکی ګرځېدلی دی.

تر دې دمه په وطن ګوند کې دوه متضاد جهتونه را منځته شوي وو، د یوې ډلې مشري چې د اقلیتونو د استازیتوب ادعا یې لرله د نجم الدین کاوياني، فرید احمد مزدک، محمد نبي عظیمي، ډاکټر عبدالکریم بها پر غاړه وه چې ببرک کارمل یې لارښوونه کوله، د دغې ډلې پر وړاندې سلېمان لایق، محمد اسلم وطنجار، مانوکی منګل، جنرال رفیع او څو تنه نور ولاړ وو چې ونه توانېدل د لومړۍ ډلې د ستمي فعالیتونو او اهدافو پر وړاندې بریالیتوب تر لاسه کړي، دوی ونه شوی کولی د مقاومت له پښتنو مشرانو او قوماندانانو سره د خبرو او تفاهم مناسب او په وخت کانال ومومي.

د مقاومت پښتنو مشرانو او قوماندانانو هم له وخت او فرصت نه لازمه ګټه پورته نشوی کړی- حکمتیار او مولوي حقاني ته داسې فرصتونه برابرېدی شوای خو له هغو نه د پر وخت استفادې لپاره یې نوښت ونشوی ښودلی. حکمتیار که څه هم له رژیم او حتی روسانو سره د اړیکو کانالونه تر لاسه کړي وو، خو هر څه ترې په نیمايي لار کې پاتې کېدل چې بیا احمدشاه مسعود ترې بشپړه پایله تر لاسه کړه.

ما حقاني صاحب ته د نجیب الله لیکونو کې د اړیکو او پوهاوي د وړاندیز یادونه وکړه په دې ټکو چې څیني دوستان نیوکه کوی چې حقاني صاحب یو ور فرصت او چانس چې ښايي هېواد او خلک یې له وروستیو مصیبتونو ژغورلي وای له لاسه ورکړ...

حقاني صاحب وويل، که ما له ډاکټر نجيب الله سره په دغسې بنيادونو جوړ جاړي ته هوکړه کړې وی، کېدی شوای د احمدشاه مسعود په څېر جګړو ورګډ شوی وی.

ما په يو څه جدي لهجه ورته وويل: داسې نشوای کېدای د احمدشاه مسعود ائتلاف د تشکيلاتو او موخو له اړخه پر منحرف او کاږه نيت را منځته شوی و - بله دا چې ستا او ډاکټر نجيب الله تر شا د اکثريت تکيه او ځواک ولاړ و...

حقاني صاحب هېڅ ونه ويل دواړه پټه خوله له ځايه ولاړ شوو.

کله برياليتوب د غاړې غوړ وګرځي... پر ځينو د برې بار دومره درونږ پرېوځي چې اوچتول او پورته کېدل يې ګران شي... د ځينو لپاره برياليتوب ناکامي بلکې رسوايي ګرځېدلې وي... کله برې له هماغه پيله ناکامي او رسوايي راپورته کړې وي... ناکامي يې تقدير ګرځېدلې وي...

له تګې، بدبينۍ، دوکې رامنځته شوی برې ناکامي ده، رسوايي ده... د جګړو برې تلپاتې نشي پاتېدای... کومه امپراتوري، بنګېلاک، زورواک په لاندې کړيو سيمو او ولسونو واکمن پاتې دی...؟

کابل کې پر يوه وخت د ډاکټر نجيب الله او ملګرو ملتو پر ضد رامنځته شوې کودتا که څه هم برياله شوه، خو په حقيقت کې يې د ناکاميو او رسواييو خونړی تاريخ رامنځته کړ...

**هر احمق چې په دنيا خاوند د جاه شي**

**نور وتلی ځنې نشي جـاه يې ځاه شي**

❋❋❋

# بې پایلې اړیکي

۱۳٦٦ لمریز کې ډاکټر نجیب الله له مولوي جلال الدین حقاني سره لیکنۍ اړیکه نیولې، د دوی تر منځ څو لیکونه تبادله شوي، خو دا چې دغه اړیکې څرنگه پرې شوې، د اختلاف کومو ټکو دغه لړۍ تر یوه توافق ونه شوی غځولې څرگنده نه ده - لړ تر لږه ما داسې کوم درک ونشوی لگولی. عابد خان، حاجي غلام حسن او حاجي گلبت خان چې دغه لیکونه یې په منځگریتوب یو بل ته رسېدلي ما ونشوی موندای، ځه کوښښ کوم له دوی سره وگورم او خپلو پوښتنو ته ځوابونه تر لاسه کړم.

حقاني صاحب په دې اړه په لنډو هغه ځواب راکړ چې ما یې وراندې یادونه وکړه.

البته ډاکټر نجیب الله بهر کې یو شمېر یادو افغانانو ته هم لیکونه استولي، خو رابرسېره شوي نه دي...

خو د لیکونو د تبادلې دغسې یوه لړۍ ښایي په دغه بڼه نه وي غځېدلې، د ډاکټر او حقاني صاحب تر منځ تبادله شوي لیکونه په زړه پورې دي - د یو بل موقف او موقعیت نه دا چې پامور بلل شوی بلکې دروند تلل شوی، که څه هم کله نا کله خبره ستوغه شوې او د گواښ بڼه یې خپله کړې، خوله چوکاټ نه ده وتلې، د ډیپلوماسۍ رنگ یې څرگند دی.

د حقاني صاحب لیک کې دسولې لپاره د یوې سیمې غوراوی، چې

دواړه خواوې ترې ځېل جنګي ماشین وباسي د سولې پر وړاندې د هڅو د عملي اړخ برېا او ژمنتيا په ډاګه کوي.

د خوست، ګرديز، ارګون يا بلې سيمې نومونه د سولې لپاره د عملي نوښت لومړی خو پوخ او درووند ګام ختلی شواى. په هر صورت پر ليکونو د حذف او نفيې دريځ سيوری نه دی غوړلی، چاپېريال او فضا يې دوستانه يا لږ تر لږه د دښمنۍ پالو نه ده.

ليکونو کې له ناندريو، تورونو پېغورونو ډېره شوې، پر مطلب راګرځي، لنډون د دغو ليکونو بله ځانګړتيا ده. د ډاکتر نجيب الله ليکونه له دې امله پاموړ ګڼل کېدی شي چې په بشپړو دوستانه ټکو او درنښت ليکل شوي، حقاني صاحب موعظې، پند او نصيحت پسې نه دی تللی، د کفر ټاپه يې نه ده وهلې بلکې په روښانه ټکو يې خپل وړانديزونه او غوښتنې مخې ته کړې دي.

بله دا چې ليکونه په پټو اريکو، مادي غوښتنو، وړانديزونو او مخفي کارۍ نه راګرځي، بلکې د معقولو وړانديزونو، عملي طرحو او څرګند دريځ نمايندګي کوي.

ليکونه د خبرو او پوهاوي شونتيا او اړتيا را مخې ته کوي، زغم او د يو بل منلو ظرفيت د ليکونو بله ځانګړتيا ده، جرګې، نرخ او کاني ته ژمنتيا د ليکونو محتوا ګرځېدلې، د اواري مونډلو ټکي يې څرګند دي. د دښمن يا مخالف درناوی د ليکونو تر ټولو بارز خصوصيت دی، چې له دواړو خواوو ځليدلي دي

د سولې لپاره د يوې سيمې يا زون ځانګړي کول او غوراوی د جرګې د برياليتوب او خبرو په رښتينتوب د بشپړ باور څرګندوی بلل کېږي.

ليکونه يو په بل پسې له کنګال شوې فضا او ترينګلتيا راوځي -

حقاني لومړی لیک په السلام علی من التبع الهدی پیلوي. په را وروسته لیکونو کې جناب ډاکټر نجیب الله خطاب کوي، ده او ملګرو ته احترام وراندې کولو ته ورګرځي. ډاکټر نجیب الله، حقاني صاحب ته درنښت وراندې کوي، د ده سلامتیا غواړي، او د میړني او اسلامي مشر په نامه یې یادوي. لیکونه د متن او محتوا له اړخه خپلې ځانګړتیاوې لري، چې د دوو مخالفو بلکې دښمنو مشرانو له خوا ملي او قومي ارزښتونو ته د دوی ژمنتیا ثابتوي.

د یادولو دا چې لیکونو کې د معاملې او سازش خوا ته کومه نغوته نه تر سترګو کېږي. بلکې له دواړو اړخونو پر سوله ټینګار، له جګړو وتل او ملي اواري ته تعهد او پوهاوی اړین ګڼل کېږي.

لیکونو کې د یو باور د زرغونېدا ځرک هم لیدل کېږي - ډاکټر نجیب الله د ۲۰ وزیرانو او لویانو د برمته ورکولو وراندیز لري، حقاني صاحب له ډاکټر سره د لیدو هوکړه کړې، ګویا جرګه، نرخ او ولسي کودونه، نه یوازې پامور بلل شوي، بلکې ډاډ پرې ځرګند شوی او تکیه پرې شوې ده.

دواړو غاړو خپل لیکونه په لېتر پېډ نه دي کښلي، ډاکټر نجیب الله د رسمي مکتوب پاڼې نه دي کارولي - دری لیکونه ټیپ او نور په قلم کښل شوي دي، حقاني صاحب هم خپل لیکونه پر رسمي پاڼو نه دي کښلي - ځان لپاره یې کوم القاب نه دي کارولي - جلال الدین حقاني یې لیکلي دي.

ډاکټر نجیب الله لومړني لیک کې له خپل نامه سره د ا. خ. د. ک سکرتر جنرال او نورو کې د افغانستان جمهور رئیس نجیب الله کښلي.

حقاني صاحب د ډاکټر نجیب الله پر وراندې د تسلیمۍ پر ځای له جهاد سره د ملګرتیا خبره ایښې، دومره د روند یې تللی چې خپله یې

دفاع ته د دربدو تېر وهلی دی.

د حقاني صاحب لومړني لیک کې چې ما نه دی تر لاسه کړی، ښایي د شوروي پوځونو په وتلو تېرنگار شوی وي، چې ډاکټر نجیب الله پخپل لیک کې هغه ټکي را غبرگ کړي دي. د ډاکټر نجیب الله له لومړي لیک داسې برېښي چې له شوروي اړخ او خپلو ملگر سره یې په احتیاط کښلی وي، خو نورو هغو کې یې د خپلې مدعا په وړاندې کولو کې سړی آزاد گوري ...

د مودو لټون سره مې دغسې یو څواب تر لاسه نه کړی شو چې د دغو اړیکو په شلون ما قانع کړی شي، په داسې حال کې چې لیکونه د اړیکو د شلون کومه نغوته نشي وړاندې کولی. د دغې پروسې ناکامي گنې پوښتنې را ولاړولی شي، دا چې د سولې دغه هڅې چا څرنگه له بري را گرځولي دي؟

د دغې لړۍ ټول لیکونه ما نه دي تر لاسه کړي زه کوښښ کوم هغه ووم- د حقاني صاحب او ډاکټر لومړني دوه لیکونه نشته د ډاکټر یو لیک چې د پرمختگ وروستی پړاو پکې په گوتو شوی له ما بې درکه دی، کیدی شي نور لیکونه هم تبادله شوي وي، چې د حقاني صاحب له خوا د دغې لړۍ لومړي لیک کې د ((لیکونو)) خبره شوې، خو هغه چې موندلي د مهمو تاریخي اسنادو په توگه یې دلته وړاندې کوم.

۱۳۶۶ د حوت ۲۵مه

**محترم مولوي جلال الدین حقاني!**

السلام علیکم ورحمه الله و برکاته

ستاسې لیک را ورسېد، د ملي سولې په هکله ستاسې له نظریاتو څخه ستاسې په نیت پوه شوم - ستا او زما په روان جنگ کې بېگناه

مسلمانان وژل کېږي، د پښتنو کلي او کورونه ړنګېږي او زموږ وطن ته سخت زیانونه اوړي، د وطن او ملت له بربادۍ څخه د زغورنې په خاطر زه د خپل ګوند له پلوه له تا سره د روغې جوړې ذمه پر غاړه اخلم - ته د اسلام د مقدس دین په هکله ډاډه اوسه، زما انقلابي حکومت العیاذ بالله بې دینه نه دی او د اسلام د مقدس دین د بې ارزښته ګڼلو او له نظر څخه غورځولو بیخي اراده نلري - د قانون په دویمه ماده کې راغلي چې د دین په حیث د اسلام احترام او درنښت پر ټولو واجب دی او اوس خو د حکومت په نافذ کړی شویو قوانینو کې اسلام ته په زره پورې مقام ورکړ شوی دی - پر دې سربېره حکومت د ینې شعائرو ته د ترجیح ورکولو په چارو لګیا دی.

پاتې شول روسي پوځونه - کله چې د سولې باوري امکانات څرګند شي نو زموږ له سلا مشورې ورکولو به د شوروي اتحاد محدود قطعات بېرته ولاړ شي - باید ووایو چې روسي پوځونه په افغانستان کې د بهرنیو لاسوهنو د ختمولو لپاره راغلي څو ژر تر ژره افغانستان یو خپلواکه او ناپېیلی هېواد شي.

څکه خو هغه ورځ لېرې نه ده چې دغه حقیقت د رڼا ورځې په څېر څرګند او دروغجن پروپاګندچیان پخپلو کړو شرمنده شي.

زما له خوا ښاغلی استاد سلېمان لایق زما استازی دی ما هغو ته له تاسې سره د لیدلو دنده سپارلې ده، هغوی به تاسې له نور تفصیل او زما له ښه نیت نه خبر کړي - تاسې مهرباني وکړئ په بشپر ډاډ او اعتماد له ما سره د ملاقات لپاره تشریف را وړئ.

تاسې ته به دا خبره هغه وخت ثابته شي، چې تاسې له موږ سره د خبرو اترو په نتیجه کې کوم حل ته ورسېږئ او کله چې دغه کار وشي نو

بیا دغه جنګ هم بندېدلی شي او بیا به موږ او تاسې په ګډه د وطن د تعمیر او پرمختګ لپاره سلا مشورې کوو، موږ ستاسې د شخصي حیثیت او عزت د خوندي ساتلو ډاډ درکوو، د الله تعلی په فضل سره موږ هوډ لرو یو داسې اسلامي حکومت جوړ کړو چې هوسا او سپېڅلی وي داسې هېواد چې په هغه کې د بشري حقونو، ناموس او شرافت د ساتنې حاکمیت وي.

درناوی

د ا. خ. د. ګ. سکرتر جنرال

ډاکټر نجیب الله

*

**ښاغلی ډاکټر نجیب الله!**

السلام علی من تبع الهدی

ستاسې لیک له تفصیلي تکو سره را ورسېد - زه باور لرم چې زما له اړخه د درلېږل شویو لیکونو په ذریعه به تاسې زموږ پر اصلي اهدافو پوهېدلي یاست.

بیا هم ستاسې د لیک په ځواب کې خپل دریځ په لاندې توګه په ډاګه کوم:

تاسې په کمونېستی ګوند کې د شمولیت اوږده سابقه لرئ - په تېره د خاد د مشر په توګه مو ماضي ټولو ته معلوم دي.

ستاسې د مفکورې او ګوندي کړنلارې له امله په هېواد کې د جګړې اور بل دی - او په زرګونو بېګناه هېوادوال، بوډاګان، تورسرې او ماشومان پکې سوځېږي - چې تر اوسه نژدې یو ملیون افغانان په دغو

جگړو کې شهیدان شوي او په ملیونو نور مهاجرت ته اړ شوي دي - ستاسې د ژمنو پر خلاف افغانان د کور پر ځای گور - د کالیو پر ځای کفن او د ډوډۍ پر ځای د خاورو خپلو ته اړ شوي دي.

دا یوازې زما او ستا کړکېچ نه دی چې په دومره اسانۍ حل شي دا به خوب او خیال وي چې له عملي گامونو پر ته یوازې د خولې په خبرو او دعاگانو هوار شي.

موږ پوهېږو پر هغه ورځ چې خدای مه کړه د سره ښکېلاک منگول پر هېواد ټینگه شي نو روسي پوځونه به خود بېرته ستنېږي.

له دې دمخه ما د هغو هڅو یادونه وکړه چې په افغانستان کې د کمونېزم د حاکمیت لپاره ترسره شوي دي - که هر څو یې تېر په هېر وگڼو نو اوس ستا لپاره اسلام او وطن ته د خدمت لارې چا نه دي تړلې، لارې دېرې دي خو په دې شرط چې تاسې په رښتیا سره د هغې په لټه کې شئ. یوازې د قانون یوه ماده نشي کولی له دین سره د ضدیت او دښمنۍ ماضي او روحیه له منځه یوسي او د روسانو د تېري، وحشت او بربریت کیسه پټه کړي.

روسان د خپل وحشیانه تېري له امله د ټول ملت او نړۍ د کرکې وړ دي - که چېرې تاسې هم د خپل وطن پېښو او حالاتو ته په غړېدلو سترگو وگورئ - ښايي په همداسې کرکه ورته وگورئ - که داسې نه وي نو بیا ستا سې نظر علاج ته ضرورت لري.

له هېچا پټه نه ده چې روسانو پر افغانستان د څه لپاره یرغل کړی او څه نیت لري؟ - د روسانو په سیاست، پالیسۍ او نیت هېڅ باور نه دی په کار - چې ستا د اسلافو برخلیک یې ژوندی مثال دی.

څکه خو تاسې ښايي د خبرو اترو اصلي ټکو ته پام وکړئ که چېرې

په ربښتیا هم اسلام او وطن ته د خدمت او کمونېستي افکارو دپرېښودلو هوډ لرئ، نو زما دغه لاندیني وړاندیزونه ومنه!

۱ - بې قیده او شرطه د روسي یرغلگرو د فوري او یو مخیز وتلو اعلان وکړه.

۲- یوه سیمه لکه خوست، گردیز، ارگون یا بل ځای د مرکز په توگه وټاکه، هلته به پوځي فعالیتونه بند کړو چې له هماغه ځایه د سولې پروسې عملیه پیل شي.

۳- پر خپلو تېروتنو او ماضي اعتراف وکړه او د جهاد ملگرتیا ته را وگرځه - مجاهدین به ستا د ژوند ضمانت وکړي.

په دې اړه چې په مورړ هر څه کېږي هغه نه در څخه سپموو.

زه د وزارتونو او واکمنۍ وړی نه یم خو د وطن په خاطر تاسې ته ډاډ در کوم چې په دې صورت کې به زه شخصاً ستا دفاع کوم.

جلال الدین حقاني

۱۳٦۷

د حمل لسمه

*

**محترم مولوي جلال الدین حقاني سلام!**

خبره دا ده چې ما تر اوسه له بل هېڅ فرد سره قلمي اړیکه نه ده نیولې، ما د وطن، اسلام او غیرت په خاطر تا ته ستاښنلیک درلېږلی دی.

قدرمنه!

خبره دا ده چې له دې وروسته د وینو هغه لمبې باید مړې کړای شي

چې تر اوسه زموږ په هېواد کې بلبدې - د دې کار لپاره زما او ستا لیده که هر ځای وي خورا ضروري دي - دغه لیده کاته به ستا لپاره هم زښت زيات ګټور وي - ته چې هر څه غواړې زه هغو ته چمتو يم زه نه غواړم چې ستاسې د څدرانو د پګړۍ شمله ټيټه شي.

موږ د نويو سيمو لپاره يو لړ تصميمونه نيولي، غواړو چې د ستو کنډو، وازه خوا، بهرام خېل او سپېرې سيمې بېرته ابادې کړو - البته کله چې زه او ته پر يو تغر سره کېنو، د دې په باره کې به هم خبرې اترې وکړو - زما د ليدو کتو په دغه غوښتنه کې هېڅ راز دوکه او چل نه شته خو بيا هم ستاسې د انديښنې په خاطر له ملاقات دمخه د خپل حکومت شل تنه وزيران او لوړ رتبه افسران تا ته د يرغمل په توګه درلېږلو ته چمتو يم - دا هر څه به تاسې پخپلو سترګو وګورئ، دغه ليک د پکتيا والي د ټينګار له امله په بيړه سره ليکم.

زموږ پوځونه د ستو کنډو پر سر ځای پر ځای شوي دي د ۱۳٦٦ کال د ليندۍ مياشتې له پنځلسمې څخه موږ جګړه او بمباري درولې، ځکه موږ غواړو دغه مسئله د خبرو له لارې حل کړو، که داسې وشوه نو موږ به خپل پوځونه له ستو کنډو څخه بېرته را وغواړو.

پردې هم پوه شه چې حکومت ډېرې زياتې او ډول ډول وسلې لري چې تر اوسه ما د هغو د استعمال اجازه نه ده ورکړې.

هيله ده د دغه ليک ځواب ژر تر ژره را ولېږې - ليک ټايپ نه کړی شو ځکه وخت نه و، تاسې هم څومره چې ژر کيدی شي ځواب يې را ولېږئ.

له دې وروسته به د حالاتو د خرابتيا د سيمې د کونډو او يتيمانو ذمه واري زما پر ځای ستا پر اوږو وي.

بله خبره دا چې د کومو بنديانو خوشي کول غواړئ د هغوی تول

کوایف را ته ولیکه زه به ټول خوشي کړم.

۱۵/۳/۱۳٦۷

*

جناب ډاکتر نجیب الله او ملګرو ته یې

**احترامونه!**

ستاسې لیک را ورسېد زه یې په مطلب پوه شوم.

تاسې چې زما په باره کې د ۱۳٦۵کال د غبرګولي په لومړۍ نېټه (۱۹۸٦ جولای) د اعدام د تنسیخ حکم د یوه فرمان له لارې د ۱۳٦٦کال د لیندۍ په ۱۱مه (۱۹۸۷کال د دسمبر۲مه) د قانون د دویم ټوک د ۷۵مادې له مخې صادر کړی او د هغه یوه کاپي مو ما ته هم را لېږلې ده - ما ته د اسلام او وطن په مقابل کې کوم ارزښت نه لري. ځکه چې د اسلام او وطن په لار کې شهادت د مسلمان ستر ویاړ دی. همدارنګه د روسي ښکېلاک تر واک او سیوري لاندې ژوند که څه هم د مادي اسانتیاوو او اقتدار له مخې بیساری وي خو زما پر وراندې سپک او طوق لعنت دی.

تاسې لیکلي چې په هېواد کې د وینو د اوچتو شویو لمبو سرول په کار دي - دا ښه خبره ده، پوښتنه دا ده چې د وینو دغه سېلاب د روسانو د تیري او کمونېستانو د ظلمونو له امله روان دی، که تاسې دومره صلاحیت او ځواک لرئ چې د روسانو د تېري مخه ونیسئ او کمونېزم ته خاتمه ورکړئ په دې صورت کې د وینو دغه بلې کړی شوې لمبې سړېدی شي.

تاسې دا هم لیکلي چې نه غواړئ د ځدرانو د پګړۍ شمله ټیټه شي، په داسې حال کې چې له سلګونو زیاتو روسي الوتکو، توپونو او ټوغندیو

په ځدرانو د اور باران اورولی او په سلگونو تنه یې شهیدان کړي دي.

د بندیانو په اړه زه دومره ویلی شم چې د افغانستان ټول بندیان زما ورونه دي که ستا مطلب د پکتیا یا ځدرانو بندیان وي نو یوازې د هغوی خلاصون گټور نشم گڼلی.

د لاندېنیو شرطونو د منلو په صورت کې زما او ستا په لیدو کتو خبرې کیدی شي:

۱- د ځدرانو له سیمې د روسانو او رژیم ټول پوځونه سملاسي وباسئ.

۲- هغه کسان چې موږ یې لازم بولو او فهرست یې در استوو د یرغمل په توگه موږ ته وسپارئ.

اوس هم ستا لپاره حالات مساعد دي د بېهوښۍ او خوب نه ځان وباسه او د سره ښکېلاک له سحر نه ځان ازاد کړه.

جلال الدین حقاني

۱۱/۴/۱۳٦۷

*

۱۳۷۰/۰۷/۲۴

بسم الله الرحمن الرحیم

**محترم او عزتمند ورور حاجي صاحب!**

السلام علیکم ورحمه الله و برکاته!

د تاسې لیک چې د حاجي گلبت، عابدخان او حاجي غلام حسن په لاس مو را لېږلی و په ۱۳۷۰/۰۷/۲۳ را ورسېده او ومې لوست، دا چې تاسې سلامتي لرئ خوښ شوو او د خدای ﷻ څخه تاسې ته د قوم، وطن او د خدای د بنده گانو د خدمت کولو لپاره لا نوره سلامتي غوارو.

تاسې ته معلومه ده چې زموږ په سیاسي پېشنهادونو کې د داخلي قوماندانانو ونډه او دا چې هغوی (د جهادي قوماندانانو شورا) د جنګ لوی پېتي پر غاړه وړي او هغوی وطن ته د سولې په را وستلو کې لویه ونډه لري، طرحه شوي او د اول وار لپاره هم موږ د قوماندانانو شورا سولې ته د رسېدو لپاره مذاکرې ته رابللې او اوس هم د موږ دریځ هماغه دی چې یوازې افغانان پخپل منځ کې په کېناستو سره سوله راوستی شي، دا چې خدای تعالیﷻ زموږ او ستاسې په زړونو کې د تګ او راتګ او یو بل ته د خط لیکلو خواهش پیدا کړ دا د حق سبحانه و تعالی د رحم نښې دي، خدای د زړونو مالک دی او یوازې دی کولای شي چې په زړونو کې مینه یا کرکه پیدا کړي، د مینې نه وروري، اخلاص او اعتماد پیدا کېږي لېکن له کرکې نه دښمني، بدګوماني او شرارت پیدا کېږي باور لرم چې خدای تعالی به په موږ او تاسې رحم وکړي او موږ به د حرب او ضرب له غضب نه خلاص شو وَما ذلکَ عَلَی اللّٰه بعزیز

موږ خو له پخوا له تاسې سره د ملاقات کولو خواهش درلود لېکن له بده مرغه تر اوسه دا ملاقات نه دی شوی. اوس یو وار بیا د ټولو غښتو او وړو خبرو د حل لپاره تاسې مېړني او اسلامي مشر ملاقات ته دعوت کوم تر څو له نژدې سره خبرې وکړو دا د یوه پښتانه او مسلمان خبره ده په هر څه مطمئن اوسئ، نورې خبرې به حاجي ګلبت، عابد او حاجي غلام حسن درته وکړي.

ومن اللّٰه توفیق

نجیب اللّٰه

د افغانستان جمهور رئیس

# ستو کنډو

## د جګړې له لیکو:

## خپله ژبه هم کلا ده هم بلا:

له دوو میاشتو ستو کنډو کې یم ...

حقاني صاحب د ستو کنډو د غره پر سر د قوماندې مرکز جوړ کړی...

کرۍ ورځ له یوه دوربین چې قیچي دوربین یې بولي د عملیاتو څارنه قوماندانانو او سرګروپانو ته قومانده ...

...دې له هغه اړخه وروګرځي ... لس متره وړاندې یې ونیسه ... د شمال له اړخه ګلاب کوچي سره یو ځای شي ... خلیل دې د غرب پوستې تر اور لاندې ونیسي...

په قیچي دوربین کې له پاسه ګوري - خو زه چې ورته کسم څه نشم لیدی ... د پرمختګ شیبو کې چې عبدالعزیز جامو کې نه ځایېږي،

له داد او شاباس سره لګیا وي ... هغه دی ... پوستې اور واخیست، له ټانګ لمبې خېژي ... په منځ کې ولګېد، ما بیا هم دوربین کې څه نه شواى لیدى ... دلته به نو له شرمه په درواغو ار شوم ... بالکل، بالکل ... لمبې خېژي... اوهوو...

کله کله بمبار دومره زيات شي چې سری سر نشي پورته کولی - اکمالات ګرد سره کېدی نشي، د خوشه يي بمونو له امله په ګز او پل مردکي، پارچې موښلي - دا داسې بمونه دي چې پر ځمکه له غورځېدا په لسګونو واره بمونه چوي، پنځوس په پنځوس متری کې اور پورې کړي...

زما دنده پر ريپورتينګ سربېره لومړی ليکې او د قوماندې مرکز ته د بهرنيو خبريالانو د رسولو ده ...

د اسماني غوند په مخه کې مو کوټه ده ... پيرصاحب، فوتوګرافر احمد سينا او هدايت الله را سره ملګري دي...

د ورځې له ژورنالېستانو سره د قوماندې مرکز او کله کله لومړی کرښې ته ځغلو... پر کومه ورځ چې خبريالان نه وي، ورځ د قوماندې مرکز کې له حقاني صاحب سره اروم... جنرال رحمت الله ساپی هم د قوماندې مرکز کې دی ... جنرال سوله مل، جنرال مصطفی، جنرال قاسم او ... هم کله کله پېښه کوي.

له لومړی ليکې د دغو جنرالانو په راګرځېدو له حيرانی خولې خلاصې پاتې وې... جنرال قاسم په وارخطايی لګيا دی ... د مجاهدينو پر جنګي تاکتيکونو او ستراتيژی زموږ سر نه شي خلاصېدی ... هغه څه چې موږ لوستي او تجربه يې لرو دغه تکتيکونه ستراتيژي ورسره ارخ نه شي لګولی... د خدای تعالی مرسته ده که نه د عسکري اصولو کوم

درک سري نشي لګولی، توکلي روان دي...

دلته مې داسې بهرني ژورنالېستان هم ولیدل چې پر نصوارو روږدي دي - امریکایي ژورنالېست راب شولتایز کپ، کپ نصوار اچول...

د بېلابېلو هېوادو ... برتانیې، امریکا، فرانسې، جرمني، ایټالیا او ... خبریالان رامات دي... هدایت وایي د دوی هغسې دغسې ټول جاسوسان دي ... زه ورته وایم د څه شي جاسوسان .... زموږ څه له چا پټ دي چې تر دغو غرو او خطرو یې را واړوي...؟

ما ته له ژورنالستانو د دوی افغان ژباړن مشکوک بلکې مرموز ښکاري... دوی د ژباړونکي په پرتله د نوکر څېره خپله کړې وي... ځینې په ناسمه ژباړه لګیا وي - یو شمېر له ناپوهی، ځینې کیدی شي قصدي...؟

له یو ځوان فرانسوي ژورنالېست سره یو فعال او خندنی ځوان یوازینی ژباړن دی چې پخپل ځانګړي کریکټر یې پر هماغه لومړی ورځ له موږ سره اشنایي ټینګه کړه ... دی د فرانسوي خبریال په پرتله له موږ سره نژدې شو... ځان یې میرویس جلیل معرفي کړ - لغمانی، خو د کابل اوسېدونکی...

میرویس جلیل دوی به چې سهار له موږ سره کلکه مخه ښه وکړه - ماښام به بېرته راګرځېدلی وو، له خندا ډکه خوله به د کوټې دروازه کې ولاړ وو... ورته وایم میرویسه! دا نېک دې را ته خطرناک ښکاري...؟ وایي له تاسې زړه نشي راتولولی...

سهار چې له لمانځه وروسته پر بستره وغځېدم، دوی بیا د تلو تابیا لرله... ما ویل پرېږده یې، ماښام به بیا دره کې ولاړ وي ...

سترګه مې سره ورغلې وه... که ګورم فرانسوی لاس په سینه ولاړ

دی - په ملا قات شي - بیا ودرېږي، ببرته لاس په سینه په ملا کوږ شي ... دری وارې یې دا کار وکړ او له کوټې ووتل ... ماښام را ونه گرځېدل...

د ستو کندو ساره په نامه دي، منی یې د کابل له ژمي سوړ... له ماسپښين وروسته سخته سیلی لگېږي...

مازیگر چې پتو کې غونج شم حقاني صاحب را ته خیر شي، یوه شېبه ژور را ته گوري... وايي: ... ته ولوېږه...

زه هم د ده له خولې دغو دوو تکو ته انتظار وم...

د حقاني صاحب څېرې له ساره پوست اچولی...

نیم ساعت د ستو کندو سرک ته په راکوزېدو او یو ساعت پک اپ کې د اسماني غونډ کوټې ته تر رسېدو...

ژوند ښه دی، اسانتیاوې شته... خو د ورځې له حقاني صاحب سره خورا سخته تېرېږي... دلته دودی پر تبی چې تبغنه یې بولي پخوي... لکه ربړ ... پیتره او منځ کې خام اوره ... شکنه او کله کله بېخونده ښوروا...

جنرال ساپي وچې شیدې او کافي ورسره راوړي... یو کوټی یې یکې یوازې په پته وهلی... د خالي دبي په لیدو په لته کې شوم، تر هغې چې لاس په لستوني مې ونیو... ورته وایم ملگرتیا داسې وي....؟ په خندا را ته وايي: راسره شریک یې، خو چا ته به وایې نه...

د بیگا کتوی مور خپله پخوو... زیاتره غوښه وي... احمد سینا د وچ چای بدل کې له شا و خوا کورو مستې او هگی تر لاسه کړې وي... له تازه مېوې اوونی کې یو کرېټ انگور رارسیږي...

موږ ته د حقاني صاحب په سپارښتنه غوره رارسېږي چې د غونډ

مسوولينو ته يې وار له مخه زموږ د ناز اخيستو ټينگار کړی...

د غونډ مسوولين د زړه د پاسه ځان په دغسې لورينه اړ گڼي... وايي له مرگ سره دوی مخامخ دي مزې دفتريان کوي...

د دوی په خبره دفتريانو ته يې پر زړه نه اوارېږي- زموږ په اړه خو بيا هم لږ ډېره حوصله او زغم لرلی شي... خو خوست کې چې د نيول شويو جنرالانو ناز اخيستو ته گوري تر بدو ردو او کنځلو يې خوله خلاصه کړې وي.

د حقاني صاحب يو گروپ د طالبانو دی - لکه هغه چت طالبان، خپله ډله يې ده، خپله خوښه...

حقاني صاحب موټر ته خېژي... له سترې مشې او پوښتنې سره يې يو بد تميزه وايي حاجي صاحب جنرالان خو دې پر سر خېژولي، چې ښه بوت دي د دوی په پښو وي، چې ښه جمپرونه وي دوی اغوستي وي..

د مجاهدينو په پيسو سگرټ وهي... اوس دې له ځان پسې روان کړي وي... دا بنديان دي که قوماندانان ...؟

د دوی جرأت ما ته يو ډول گستاخي ښکاره شوه... حقاني صاحب يې خبرو ته داسې غوږ نيولی، چې پر څېره يې د ناخوښۍ هېڅ نښه نښوی څرگندېدی...

ورته وايي ستاسې څه شی کم دي... وايي زموږ هېڅ کم نه دي... خو پر دوی ستا مهرباني زياته ده ...

له منځه يې يو ژبی را وړاندې شو... ته خو يې درسره گرځوې... موږ مين ورته ږدو بيا که ستا موټر پرې ورپيښ شو له موږ نه...!

لومړني ژبي په لاس وروسته تېله کړ...

حقاني صاحب ورته وايي چېرې ځې...؟ وايي تا ته درتلو... دا خبره مو درته کوله...

.... خبره نه خبرې مو وکړې... اوس ولاړ شئ - غونډ کې به چاى وڅښئ دمه به جوړه کړئ... په مخه ښه، خداى پامان...

علي جان ته وايي... شريف ته ووايه چې دوى څه شى غواړي ور برابر يې کړئ....

د ستو کنډو په سپېرو غرو کې زموږ له دغسې مزو او اسانتياوو سره سرې د بلا خوله کې هم غورځېدى شوى...

يو ماسپښين حقاني صاحب خداى خبر څرنگه يو په يو د لومړي ليکې د ليدو پرېکړه وکړه، که څوک ورته وايي: ... حاجي صاحب مه ځه... لنډه وروړې کړې: ته راسره مه ځه.... زه پټه خوله ولاړ يم... زما دې خبرو کې څه کار دى....؟ خپله ژبه هم کلا ده هم بلا... ما ته خپله ژبه بلا شوه ... ما داسې گڼله چې هرو مرو به وايي نه.... خو ما ته خپله ژبه بلا گرځېدلې وه ... حقاني صاحب را ته کړه: هو!

لکه پر ځمکه ميخ شوم، شا و خوا مې وکتل د تېښتې لاره، لوری نشواى موندل کېداى... پر ځمکه د ننوتو شونتيا نه وه...

بس غاړه مې کېره کړه... خداى چې چا ته پېښه کا... ځان دې ورته مېښه کا....

علي جان پک اپ چالان کړ.... حقاني صاحب مخکني سيټ کې کېناست... دويم سيټ کې زه يوازې ناست يم....

له کنډو په اوښتو د هاوان تر بريد لاندې راغلو... ډز - غورمب د پک اپ مخ، څنگ او شاته هاوان لگېږي... شگې خاورې پر موټر موښلي... له علي جان موټر يوه بله خوا شي، پښه يې پر بريک ښخه شي، خو بېرته يې

پر اکسلتر ورتینگه کري، نه پوهېږې ودرېږي که څه وکري...؟ لکه زړه یې دی ېړته راوگرځي... حقاني صاحب ته وگوري، یک اپ مخ پر وراندې ځغلي...

زما سترگو لکه کار پرېښی - تپه تیاره ده ... روند شوم که څه بلا... ما سترگې پټې نیولې... مرگ مې سترگو کې په گډا دی... د مرگ کومې کې په خورا سختی سا اخیستل کېدی شي... خو زه مرگ خپل کومې کې ژوندی ساتلم... مننه مرگه...؟

د قوماندې مرکز کې د حقاني صاحب له خوا لیکونه هم زما پر غاړه دي... یو ماسپښین حقاني صاحب له جیبه د کاغذونو د بنډلونو په را ایستو را ته کره: ... دا ولوله، که د کار کومه خبره یې لرله را ته ووایه... نور لېرې کړه...

لکه پر یوه خزانه اوښتی یم - په زړه پورې او عجیبه لیکونه مې موندل... د لیډرانو، قوماندانانو، سرگروپانو او زموږ روباندو ... حیرانوونکې غوښتنې، نظرونه، شیطاني او چوغلي...

⁂⁂⁂

مازیگر دی... سیلی هماغسې انگولي... بربوکی چورلي... ما خپل پتو کې ځان نغښتی، د حقاني صاحب له خوا دوو ټکو ته په دوو پښو ناست یم... چې اوس به وایي... ته ولوېږه! د مازیگر لمر په غرغرو دی... ته ولوېږه ته مې غوږونه څک نیولي... خو... ای بسا ارزو که خاک شد...

یو پنډ سړی چې چته ږیره یې خرېیلې، کوراخ شناوي برېتو یې شونډې لاندې کړي، له یوه ځوان سره را وخوت... له گرېوان یې لویشت سپین وښته راوتلي... پر سرو سترگو یې ببرې وروځې را پرتې دي...

له شخې رنګې بنګې لونګی یې د شنو ځنو کلوختې را وتلي... پند سري په درانه او لرزانده غږ ستري مشې وکړل... هر یوه ته په ځیر ګوري...

ما کې یې تر ډېره سترګې ښخې کړې... زه بل خوا ګورم... د ده کتل ځورووونکي دي، ځکه خو له ځایه ولاړ شوم...

حقاني صاحب ورسره تود روغبړ وکړ... خوان پاتې شو... پند سري له حقاني صاحب سره د یوه کمر ډډ ته کېناست...

نیم ساعت پس حقاني صاحب را غږ کړ... زه ورغلم... له سلام وروسته کېناستم...

پند سري یو ځل بیا د خپلو مرموزو، زوروړو کتو تر ګوزار لاندې را وستم... پته خوله دی... خو د سرو سترګو کتو یې لکه قیامت را ټیټ کړی... چې یو ځل یې سري کې ښخې کړي ته به وایې له زړه دې پورې وورې خیژي...

حقاني صاحب را ته کړه: ... ته یو خط ولیکه... !

ما له خپلې اوږې بکسه را کوزه کړه... قلم کاغذ مې را ویستل...

... حقاني صاحب را ته وایي... زه یې لیکم...

نحمده و نستعینه...

د ګردیز قول اردو قوماندان جنرال عبدالقادر میاخیل او لوړ رتبه صاحبمنصبانو، مامورینو او مشرانو!

دیارلس کال وراندې افغانستان کې ځینو له ولس خپله لار جلا کړه - د روسانو لمن کې یې ځانونه واچول، یو شمېر فهمیده یا نافهمیده د هغوی ځنګ کې ودرېدل، په مقابل کې یې ملت قیام وکړ، جهاد پیل شو، اوس باید په دغو دوارو لارو قضاوت وکړو چې د چا لار صحیح

ده؟

ستاسې بېځايه مقاومت د بېګناه خلکو تلفات زياتوي، ابادي ورانوي، طبعي ده چې زموږ انساني عاطفه هم په قهر او غوسه اړوي.

د ګرديز په نيولو کې زموږ تصميم قاطع دی. د مقاومت په صورت کې به د ټولو عواقبو مسئوليت ستاسې پر غاړه وي، خو که تاسې د مجاهدينو طرف غوره کړ، نو موږ د افغانانو په صفت تاسې ته داډ درکوو چې که ستاسې منځ کې، خلقيان، پرچميان هر څوک وي- زموږ له طرفه عفوه دي.

له دغه ليک سره موږ تاسې ته د وروری پيغام درلېږو او ډاډ درکوو، راځئ د تشو احساساتو څخه تېر شئ، د ورونو په څېر له موږ سره ودرېږئ - په دې کار به د مرګ ژوبلې مخنيوی وشي، الله تعالی به راضي او زموږ تاسې ټولو عزت او ابرو به پر ځای وي.

د خدای په لحاظ او د ګرديز د مظلوم ولس په خاطر فکر او سوچ وکړئ، تصميم ونيسئ او موږ ته ژر تر ژره اطمينان راکړئ.

موږ د دغه اعلان په وسيله خپل مسئوليت د خدای په حضور او د ګرديز اوسېدونکو په مقابل کې رفع کړ.

احترام

مولوي جلال الدين حقاني



مولوي جلال الدين حقاني- شهرت ننگيال- ستو کندو





مولوي حقاني، جنرال ساپی او شهرت ننګيال- ستو کنډو

## د قوماندان عبدالحق ستراتیژي:

قوماندان عبدالحق د کابل نیولو ته خپل پلان په کتابي بڼه وار د مخه چاپ کړی و، چې د تیوری له اړخه د کابل نیولو بنه نقشه ګڼل کېدای شوی.

((کابل د ازادۍ پر لور)) کتاب په ۱۳٦۸لمریز کې خپور شو. کتاب کې، کابل د افغانستان زړه او د تحرک مرکز ګڼل شوی - د کابل پر تاریخي او ستراتیژیک موقعیت له لنډو خبرو دا ړتیا راپورته شوې چې کابل نیول هم غواړي او ودان ساتل هم.

کتاب په جوته را اخیستې چې کابل باید له ورانېدو او تباهۍ پرته د رژیم له منګولو ازاد شي - د دې لپاره یې د یوه ګډ پلان او پروګرام په جوړېدو د ټینګار تر څنګ دا په ډاګه کړې چې په یوازیتوب دغسې پلان نشي پلی کېدی. قوماندان عبدالحق کابلیانو ته دغه ډاډ اړین ګڼې چې د دغسې پلان او عملیاتو موخه دوی نه بلکې د رژیم پوځي ماشین دی.

قوماندان عبدالحق جګړه یوازې پوځې اهدافو ته را ټوله کړه- د کابل د ننه یې پر پوځي اډو او تاسیساتو خپل عملیات و غځول، د دښمن د کړنې تر شا یې خپل ځواکونه ځای پر ځای کړل ...

ده پر وخت او ځای د دغسې پلان د جوړېدا اړتیا را مخې ته کړه - چې د قوماندان عبدالحق ملي لرلید او څرګندې ستراتېژۍ څرګندویي کوي. پر سازش او توطیې د تکیې پر ځای یې په ښکاره د کابل نیولو پلان او پروګرام را پورته کړ، دا چې یوازې د کابل نیول هدف نه بلکې ودان ساتل یې هم د مجاهدینو مکلفیت وګڼل شي، ده د همدغسې ژمنتیا لپاره دا کتاب چاپ کړ - خو له بده بخته د سازش او توطیو خونړي

توپان کابل داسې ويجاړ کړ چې تر ننه يې لمبې ژبغړانده دي.

قوماندان عبدالحق پر کابل د عملياتو دقيق پلان او ستراتيژي لرله چې په مټ يې ۱۹۸٦کال کې د روسانو د پوځي مهماتو ډيپو قرغه کې له دننه ويجاړه کړه.

حاجي عبدالحق د پوځي عملياتو موخې له دقيقې مطالعې وروسته په خورا څيرکتيا ټاکلې، څکه خو يې ډرامايي برياليتونه تر لاسه کولای او په فلمي بڼه پای ته رسولی شوای...

له همدې ځايه وه چې لويديز ژورنالستانو د هاليووډ حق په نامه ياداوه...

له بده بخته قوماندان عبدالحق هم د کډوالو او افغانانو تر منځ سياست ته پام نشوای اړولی... د افغان فرهنگيانو او ځوانانو تر منځ يې د اړيکو او سياست کانالونه ونشوای غځولی... د بهرنۍ ميډيا او اړيکو يرغمال پاتې شو...

څکه خو د افغانانو د آزادۍ غوښتنې داعيه يوازې تر جنگ او جگړه‌ييزو پرمختياوو محدوده کړای شوه... چې له امله يې زموږ دويم هم نسل د جگړې هغه وگرځېد...

# جبل السراج ائتلاف

## شورای عالی جهادی:

دا چې د پرچم خانګري فرکسیون نظار شورا خپل څنګ ته ودروله، که امر مسعود هغوئ د ځان مله ګرل، خو د ((شورای عالي جهادي)) په نامه یو داسې حرکت رامنځ ته شو چې مشر یې احمدشاه مسعود او مرستیالان یې جنرال عبدالرشید دوستم او عبدالعلي مزاري وټاکل شول، د خبرو لپاره جنرال دوستم یو پلاوی دریو څرخکو کې پنجشیر ته ولیږه جنرال مؤمن، جنرال حسام الدین، سید منصور نادري، فضل احمد طغیان او نجیب الله مسیر دری ورځې له مسعود سره د ائتلاف پر سر خبرو تېرې کړې. شورا کې د ((سازا او کجا)) استازو هم برخه لرله، ددغو ډلګیو ګډ دریځ پر هماغه سمتي او ستمي اهدافو راګرځېد، په حقیقت کې د کابل تول واک له جنرال نبي عظیمي سره و، چې کابل ته یې د نظار شورا او دوستم د ځواکونو مخه پرانیستې وه.

جنرال ابراهیم خان چې د حزب وحدت له لوړ رتبه مسوولینو دی په ۱۳۷۱/۳/۸ نېټه د یوې پوښتنې په ځواب کې وایي: در ماه دلو ۱۳۷۰ بعد از نصب جنرال رسول بیخدا که از طایفه پشتون بود بجای جنرال مؤمن که سید منصور نادري، رشید دوستم و جنرال مؤمن، سید جعفر بچه سید کیان، غفور پهلوان و غفار و غلام حسین خان و خودم مخالفت خود را اعلان نمودیم و نامه عنواني جمعیت اسلامي و حزب وحدت نوشتم.))

په دې اړه د هغې رسالې ځينې برخې دلته را نقلوم چې د ((اسناد و فيصله های نخستين مجمع عمومي مؤسسان جنبش ملي اسلامي افغانستان)) تر سرليک لاندې په ۱۳۷۱/۳/۱۰ د کابل د دولتي چاپخونې کې چاپ شوې.

په دغه رساله کې د ډاکتر نجيب رژيم د قبيلوي او فاشيستي، قبيله سالار حاکميت په نامه ياد شوی، په دويمه ماده کې د فدرالي دولت جوړېدل عنوان شوي او په نهمه ماده کې کاږي: ((افغانستان کشوريست کثير المليت، بنابرين جهت تأمين حقوق انان سيستم فدرالي برای اداره کشور لازم ديده ميشود. کله چې سړی د جنبش اساسنامه او سياسي اهداف مطالعه کوي فکر کوي ببرک کارمل په زرنگار پارک کې له ستيج نه د کارگر او عقرب د دريمې په ورځ وينا کوي.

احمدشاه مسعود جنرال دوستم ته په مخابره کې ويلي وو: ... ديگه اگه ما طبق فيصله به عمل امده حکومت نجيب را سقوط و حاکميت دولتي را خود بدست بگيريم به مقاومت احزاب جهادي خارج از تشکيل خود مواجه خواهيم شد، بناً ديگه جهت دفع خطر ايشان بايد اعلان نمايم که رهبران احزاب هفت گانه مستقر در پاکستان به خاطر به وجود اوردن حاکميت اسلامي در کشور ترکيب دولتي يې را در ظرف ۴۸ساعت به وجود اورده، اداره امور را بدست گيرند، درين صورت ديگه مه يقين دارم که تضادهای موجود در ميان ايشان سبب مي شود تا جهت ايجاد چنان هسته يې به توافق نرسند انگاه ديگه ما خود اعلان خواهيم داشت که رهبران موصوف استعداد اداره کشور و تأمين صلح در وطن را نداشته و اينک شورای عالي جهادي وظيفه مذکور را بدوش ميکشد و اگر احياناً

آنها موفق به تشکیل دولت شوند اتحاد میکانیکي ایشان در مدت کوتاهي از هم پاشیده و اسباب بروز چنان حالتي را تهیه میدارد که در اثر ان مردم عادي کشور جبراً به شوراي ما مراجعه نموده و خواهان بدست گیري قدرت توسط خود مان مي شود. آنگاه ما میتوانیم با منطق مؤجه سیاسي وارد پروسه گردیده و با برخورداري از حمایت مردم خویش به پیش برویم.))

بسم الله الرحمن الرحیم

شورای عالی جهاد اسلامی

تقرر محترم دگرجنرال عبدالرشید دوستم بحیث معاون نظامی
شورای عالی جهاد اسلامی منظور است. از خداوند ج
برایشان توفیق خدمت می طلبم.

رئیس شورای عالی جهاد اسلامی
احمد شاه مسعود
[illegible]

# گام په گام سقوط

کابل وارخطا او تلولی و، نجیب الله تصمیم ونیو مرکز ته د جبار قهرمان ملېشې را ولېږدوي- خو د هوايي دگر قوماندان د کندهار پر ځای الوتکې بلخ ته واستولې او له هغې ځای يې د جنرال دوستم نور افراد خواجه رواش او بگرام ته شېوه کړل...

لکه وړاندې مو وويل، احمدشاه مسعود د رژيم له ځانگړيو کړيو سره پخه کړې وه - د جنرال تني له ناکامې کودتا وروسته يې د مخې دېرې خندونه ليرې شوي وو، د شمال لړزوونکو پرمختياوو د کابل رژيم د پايښت ستنې لړزولې وې...

شمال کې د رژيم قوتونه يو په بل پسې د شوي ائتلاف په چوکاټ کې يو ځای کېدل، خو د جنوب او ختيز حالات دغسې نه وو - که څه هم له حکمتيار سره د رژيم يوه اړخ څه نا څه د پوهاوي مخه موندلې وه خو هغسې انگيزه لکه شمال کې چې را منځته شوې وه جنوب او ختيز کې ايجاد شوې نه وه.

حکمتيار کابل ته نږدې لوگر کې و، د جنوب، لوېديز او ختيز له جهادي ځواکونو او رژيم له قوتونو سره يې پخېل وخت او ځای همغږي او اړيکي را منځته نشوی کړی.

## گډه نماينده شورا:

مولوی حقاني د ((نماينده شورا)) په مټ له رژيم د واک پر لېږد کار

کړی و. خو د شمال چټکو پرمختیاوو هر څه په بل مخ واړول او پر قومي، سمتي، ژبنیو تمایلاتو ولاړ ائتلاف نویو غمیزو ته لار پرانیسته، د ملګرو ملتو د سولې پلان یې په اوبو لاهو کړ.

د تېر کال (۱۳۷۰) په مني کې پر ګردیز درانه عملیات وشول- ګردیز د مجاهدینو تر ټینګې کلابندۍ لاندې و- د ګردیز والي محمد انور حاصل او یو شمېر پوځي افسران په دغو عملیاتو کې ووژل شول.

د مولوي حقاني ځواکونو له ستو کنډو او مېلن سره پرمختګ وکړ.

د رژیم پښې د ګردیز په دفاع کې لړزېدې - د میزان په اتمه یې صحرایي محکمه کې د ګردیز له پوستو او موقعیتونو په شا شوي افسران محاکمه کړل.

د ګردیز جګړو کې پر یوه ورځ د رژیم د ټانګ کنډک قوماندن ډګرمن محمد اعظم، ډګرمن سلطان محمد له ۲۹پوځي افسرانو سره ووژل شول په همدغه ورځ د وسلو دوه ډیپوګان وسوځېدل.

جنرال نبي عظیمي پخپلو یادښتونو کې کاږي:

((... تمام پوسته ها بدست حقاني می افتد، جنرال صیفور که زخم کوچکی برداشته بود به مرکز جهت تداوي انتقال میابد. حقاني بعد از ګرفتن و اشغال تمام پوسته های دفاعي تعرض خود را توقف میدهد. معلوم نیست برای چه منظور؟ زیرا اګر در همان موقع آنرا انکشاف میداد بدون شک ګردیز را تصاحب میکرد.))

## د ګردېز وضعیت:

مولوي حقاني بیا هم ګردیز ته د ننوتو بیړه ونه کړه، بلکې د ګډې او

نماينده شورا پلان ته يې لومړيتوب ورکړ - په دې اړه يې دوې اعلامیې چې د وراندیزونو بنه یې لرله خپرې کړې، یوه د *قوماندانانو او مجاهدینو او بله* د جهادي مشرانو په نامه وه. د مجاهدینو او قوماندانانو اعلامیه کې راغلي: ... مجاهدین ښایي پر ګردیز، غزني، لوګر، وردګو... د پوځي برید او یرغل پر ځای د جهادي قوتونو د بشپړ تفاهم او یووالي له مخې د ګډ شورایي سیستم له لارې له پوځي قطعاتو واک واخلي - داسې چې پوځ منحل نشي او تر هغې چې کابل کې مرکزي حکومت جوړېږي دغه ګډې او نماینده شوراګانې د باصلاحیته مراجعو په توګه کار وکړي.

د جهادي قیادتونو اعلامیه کې مولوي حقاني له مشرانو غوښتي چې مشران څومره ژر کېدی شي پر یوه واحده اداره او موقت حکومت سلا شي - که نه، د دوی له اختلاف به هېواد د کورنیو شخړو، قومي او ژبنیو تربګنیو کومې ته ولوېږي.

په اعلامیه کې راغلي: د ګډو شوراګانو له جوړېدو وراندې مجاهدین ښارونو ته له ننوتو ډډه وکړي.

اعلامیه کې پر پوځي قطعاتو غږ شوی چې بېلابېلو قوماندانانو او اړخونو ته د تسلیمېدو پر ځای د مجاهدو ګډو او متحدو نماینده شوراګانو سره خپل پیوستون اعلان کړي - یوې ډلې او تنظیم ته له تسلیمېدو را وګرځي.

د دغو شوراګانو د تشکیل او جوړښت په موخه یې ۲۱ مادو کې د نماینده شورا طرحه مشرانو ته ولېږله.

حقاني صاحب د جنرال اسلم وطنجار یو پیغام تر لاسه کړی و چې که بې وسلې مجاهدین کابل ته ننباسي دوی به یې مسلح او ستراتېژیک

موقعیتونه ور وسپاري، خو حقاني صاحب دا کار ونکړ، چې بېلا بېلو تنظیمو، ډلو او قوماندانانو ته یې د رژیم د ځواکونو تسلیمېدل کورنۍ جګړې ته مخه ورکول ګڼل.

د حمل پر ۳۱مه یې د سیمې قوماندانانو شورا کې ګردیز ته په ننوتو کې د بیړې عواقب څرګند کړل.

ده په ډاګه کړه چې غنیمت په هغسې مفهوم لکه دمخه چې تفسیر کېده جواز نه لري- ټول دولتي تأسیسات که ملکي دي که عسکري تر بیت المال اړه لري او ملي شتمني بلل کېږي.

په همدغې ورځ یې له ستو کندو، جهادي مشرانو سره مخابروي اړیکه کې غږ وکړ چې د یوې ملي شورا په ترکیب خپل توافق څرګند کړي او ټولو جهادي ځواکونو ته د هغوی د قناعت او تناسب له مخې غړیتوب ورکړي - چې تر واحد مشرتابه لاندې ګډه نماینده شورا له ملګرو ملتو سره په تفاهم کابل کې د مرکزي حکومت واګې تر لاسه کړي.

حقاني له احمدشاه مسعود سره هم په اړیکه کې و - مسعود غوښتل حقاني د غزني له لارې کابل ته د ننوتو پروګرام پلی کړي - خو د غزني له لارې کابل ته د ننوتو لار اوږده وه - چې نشوای عملي کېدای - له همدې ځایه یې حقاني ته وویل: دی به د ګردیز ځواکونو ته ووایي کابل ته د ننوتو لار ورکړي...

د ګردېز ځواکونو ته د ویلو خبره خپله یوه اندېښنه وه... ځکه خو مولوي حقاني کابل ته ننوتل وځنډول...

# د ماضي له تروږمۍ د مستقبل تيارو ته

شاوخوا سپينو خېمو نيولی... د دوو دريو خېمو پر سر يوه شصت لاری ولاړه ده... له څو ورځو خلک له پريو سره انتظار دي...

پر گرديز د ورختو انتظار...

د ځمکې مخ واورې نيولی... خو پل يې نشوای پټولی... د ونو بوتو پر څانگو، ښاخونو لکه سپين گلان راختلی...

د سر سترگو ته په زړه پورې منظره، خو د زړه پر سترگو تپه تياره...

ساړه دی خو چيچلی هغه نه... له ماښام وروسته يخني زور اخلي. دلته نو د ستو کنډو ساړه کومی شلولی وي... زما ډېری شپې موټر کې وي... دا زما کور، خونه، بستره هرڅه دي. د موټر سيټ مې نور هم شاته هوار کړ...

په تک تک راکښناستم... هنداره مې کوزه کړه... سيلۍ لکه څپېړې په مخ لگي... علي جان پټو کې نغښتی خوله راوايسته... ځو! کوم خای، چېرې...؟ د پوښتنې وخت نه و.... ډېری همداسې وې، ببله دې چې سره پوه شو منده...

که گورم پير صاحب راوخوت.

چېرته..؟

په لنډو په خندا کې خوده...

گاډي له ستو کنډو واوښتل، لاندې يې د کين لاس شېلې ونېوې...

له نيم ساعت مزل وروسته ښي ارخ ته وگرځېدل... وراندې تته رڼا ليدل

کېده... موټران ورو او بیا تم شول... باډیګارډان یو یو له موټرو الوتل خه پته نشوای لګېدای...

هېڅا څه نه ویل.... د خوست جنرالان هم پته خوله وو.

هر یوه ته ځیر ځیر ګورم لکه خولې یې ګنډلې... له دوی سره مې اړیکې د اشنایی هغه ګرځېدلې... داده یو بل سره د راز خبرې راسپړو.... خو دلته یې لکه خولو ته کولپ اچولی.

جنرال سوله مل مې په کراره وپوښت... ایله یې د جنرال امام الدین په نامه خوله چوله شوه. په خبره ورسېدم...

دوه مخالف بلکې دښمن یو بل ته مخامخ وو... خولې بیا هم ګنډلې، خوله پوزو براس لکه لوګی خوت... ما د خپلې دمې راکښلو غږ اورېدای شوای...

سپوږمی پر واوره نقریي وړانګې غوړولې، اسمان تک شین او له ستوریو ډک دی... سړی داسې ګڼي لکه خپله سایې هم سینه کې کولپ کړې وي...

حیرانوونکی ناڅرګنده چوپتیا د څو شېبو لپاره پر ونو بوټو د سیلی د څپو په لګېدو ماته شوه... سړي ته به احساس شو چې ژوندی دی...

د جنرال امام الدین دنګه ونه دوړین جمپر لاندې له لیرې جوته وه، دواړه لاسونه یې د خړ عسکري پتلون جیبو کې هغسې نغښتي چې کین اړخ ته یې د ځړېدلې تفنګچې خوکه بربنده کړې وه.

ده خپلو پلو ته کتل، لکه خپل ګامونه شماري، تر غټو عسکري بوټان لاندې د واورې زېږوي ختل...

حقاني صاحب او جنرال امام الدین یو بل ته مخامخ ودرېدل، جنرال د پتلون له جیب لاسونه راوایستل... د ده لاسونه رېږدېدل.

ستړي مشي او له هغې وروسته د جوړپخير لنډه پوښتنه...

حاجي خليل پر واوره خپل پټو وغوړاوه... حقاني صاحب او جنرال کېناستل... د خوست جنرالان هم د پټو څنډو ته تکيه شول، په ترخه موسکا يې د يو بل لنډه پوښتنه وکړه.

زه ظاهرا د ستو کنډو يوه خوړ په ژۍ چوپ او هک حيران ولاړ يم، پر کېمره پوري مې گوتې نښتې... ايله مې د يوه تصوير لپاره تنې کېکاږل شوه، چې زړه او ذهن مې ډېر وړاندې د ماضي تيارو کې ورک دی.... د پنجشنبې له غرمې وروسته ..... هغه بدمرغه ورځ چې کابل کې ټانکو او ماشينگنو له خولو اور غورځاوه، د الوتکو غوړمبی و، پر ارگ د بمباريو لوگي ختل...

امام الدين ددغه بدمرغی هغه کردار چې پر ولسمشر سردار محمد داود خان يې د گولی چلولو په وياړ د کودتا او انقلاب د بري تيکه خپله گڼله...

امام الدين پر سردار د تسلېمدو امر کړی و، خو د تسليمی لغت سردار د خپل ژوند ډکشنرۍ کې نښوای موندلی.

سردار ددغسې غوښتنې ځواب د تومانچې له خولې پرته نشوای ليدای...

سردار شهيد شو... امام الدين زخمي... سملاسي يې څلور سويزه روغتون ته ورساوه... او بيا شوروي ته....

امام الدين ژوندی پاتې شو، جنرال شو، د قول اردو قوماندان دی... د ثور کودتا د اغاز او انجام يو بدمرغ کرېکتر... چې نن يې د ملگرو په خبره د ثور پرتمين او په شا نه تلونکي انقلاب جنازه خاورو ته سپارله...

## د ګردېز وروستۍ پرمختیا

مولوي حقاني د ثور پر لومړۍ (سه شنبه ماښام) د جنرال رحمت الله ساپي، ډګر جنرال محمد ظاهر سوله مل، برید جنرال مصطفی، حاجي خلیل الرحمن په ملتیا له ډګر جنرال امام الدین او تورنجنرال نبي جان سره مخامخ خبرې وکړې.

حقاني دوی ته ډاډ ورکړ چې نه غواړي د چیغې په صورت کې ګردیز ته ننوځي - بلکې غواړي د تفاهم او همکارۍ له مخې د یوې نماینده شورا له لارې ګډه اداره را منځته کړای شي - چې امنیت ټینګ او د بې نظمۍ او ګډوډۍ مخه ونیسي.

د دې لپاره یې دوی ته یوه یوه تاکي واکي مخابره ورکړه - خو ډګر جنرال امام الدین له نماینده شورا سره پیوستون وځنډاوه...

د ثور پر دویمه د ګلم جم ملېشې له ګردیز، کابل ته ولېږدېدې - جنرال امام الدین د سبا وعده پوره نه کړه.

تــــا چې سبا وکړ، سبا نه راځي
راشي په هر چا خو په ما نه راځي

ده له حقاني سره اړیکه ټینګه نه کړه - په دې توګه د ثور پر درېیمه د ګردیز قطعاتو امنیتي کمربندونه پرېښودل او د مجاهدینو او ولسي خلکو بېلا بېلې ډلې ښار ته ننوتې ...

یوازې د ګارد قوماندان تورنجنرال احمد علي اقتاش مقاومت وکړ - دغه قطعات چې د ګردیز د رباط سیمې پر یوه غونډۍ ځای پر ځای شوي وو - د مجاهدینو پر وړاندې ودرېدل، تورن جنرال احمد علي

اقتاش په ډاګه کړه چې له حقاني پرته بل چا ته وسله نه شي اېښودی.

له همدې ځایه حقاني له خپلو ملګرو سره د ګارډ قوماندانی ته ولاړ - جنرال اقتاش د وسلو، مهماتو او وسایلو لست ورکړ. مولوي حقاني پوځي افسرانو او عسکرو ته لنډه وینا وکړه چې غټ ټکي یې دلته را اخلم:

## زما عزتمندو!

تاسې ګورئ لوی ښارونه فتحه شوي، څکه خو پخواني بدی او دښمنی له منځه ولاړې، الحمد لله د هغې ځای دوستی او وروری ونیو - څکه خو موږ تاسې یوه صف کې ودرېدو...

... زموږ دا نظر و چې نور وسله وال پوځونه څوک له مجاهدینو سره جګړې ته نشي اړ کولی - څکه خو دا وسلې، مهمات او وسایل غنیمت نشي بلل کېدی - ستاسې صاحب منصابانو او عسکرو تکلیف، مجاهدین خپل تکلیف ګڼي...

... موږ ګردیز ته په ننوتو کې څکه له عجلې کار وانخیست چې څوک د چیغې په صورت کې ښار ته د داخلېدو مخه ونه ویني - چې ملي شتمني خوندي پاتې شي او دولتي تأسیساتو ته زیان ونه رسېږي، څکه خو موږ د قول اردو قوماندان جنرال امام الدین او د ده ملګرو ته وویل چې اول خط مه ړنګوئ، باید د ګډ اقدام او تفاهم په نتیجه کې مجاهدین ښار ته داخل شي، موږ داد ورکړ چې مجاهدین ستاسې د عزت او ناموس دفاع کوي، داسې دفاع لکه له خپل عزت او ناموس چې دفاع کوي - موږ د نماینده شورا د طرحې یو نقل هم ورکړ - چې د وسلو ډیپوګانو، دولتي تأسیساتو حفاظت او ساتنه وکړی شي.

موږ دوی ته وویل: هغه څه چې په موږ حل کېږي، موږ به یې حل

کړو او هغه چې په تاسې حل کېږي، تاسې به اقدام کوئ او هغه چې په ګډه حل کېدای شي، ټول به یې په حل و فصل کې برخه اخلو، متأسفانه چې هغوی په خپله وعده وفا ونه کړه او خبره یې تعویق کې واچوله.

کله چې خلک ښار ته داخل شول - موږ بیا هم خپل ملګري وڅنډول - خپلو مجاهدینو ته مو وویل: موږ له هغوی سره خبرې کړي. باید ارتباط ورسره ونیسو خو چې خبر شو دوی له ګردیز وتلي وو...

موږ خپلو مجاهدینو ته وویل: چې پوځي قطعاتو ته هېڅ دول تکلیف او زیان ونه رسوي، قطعات ټول سلامت پرېږدي، د بیت المال او ملي شتمنیوساتنه وکړي.

زما عزتمندو!...

... تاسې ته به معلومه وي له موږ سره داسې اشخاص هم شته چې له رژیم سره یې ډېر کار کړی - بیا یې له موږ سره لکه تاسې اسلامي اخوت پیل کړی. موږ د خوست فتحې پر وخت هم دا کار وکړ چې هېڅا ته تکلیف ونه رسېږي، موږ د خوست ۴۰۰زخمیان روغتون ته انتقال کړل - شخصي داکتران مو ورته ونیول، سره صلیب ته مو ورکړل که څه هم مجاهدینو دغه پوځیان په سخت او خونړي جنګ کې نیولي وو - د دوی له لاسه د مجاهدینو شهیدان لا دفن شوي نه وو - خو موږ دوی په عزت له ځان سره وساتل او له څه مودې وروسته مو خوشې کړل.

خو تاسې چې بې جګړې موږ سره یو ځای شوي یاست، حتی زه دا وایم تاسې خدمت کړی او یوه قرارګاه مو حفاظت کړې، څکه خو زه تاسې ته زنده باد وایم او ډېر درڅخه خوشاله یم موږ او تاسې به خپله وروري پالو، دعا کوم چې الله تعالی د دنیا او اخرت نېکبختي در په

برخه کړي...

دلته مولوي حقاني د سنډې ټايمز او واشنگټن پوست د خبريالانو پوښتنو ته لنډ ځوابونه ورکړل.

سنډې ټايمز: د کابل شاوخوا ځينې قوتونه پراته دي، غواړي پر کابل حمله وکړي، تاسې په دې هکله څه نظر لرئ؟

حقاني: کابل رژيم له سقوط سره مخامخ دی - اوس دغه رژيم د جنگ لپاره هدف نشي گرځېدی - که اوس جگړه کېږي دا به د قدرت لپاره وي.

واشنگټن پوست: هغه پوځيان چې گرديز کې مجاهدينو سره يو ځای شوي د افغانستان پوځ کې به ځای ولري؟

حقاني: راتلونکې اردو کې د دوی له نقش سترگې نه شي پټېدای.

علی احمد اقتاش ريښتينی او با کرکتره جنرال بريښېده، د ده روحيات لوړ، هېواد پالنه او ملي غرور ځرگند و ... خپل غوند او تأسيسات يې وساتل ... کله چې عرب خبريال احمدزيدان ده ته کامره مخامخ کړه، لاس يې ورته ونيو ... ما ته يې وويل : ننگياله ! دوئ ته ووايه دا دعکسونو وخت نه دی ... ما زيدان له عکسونو منع کړ، جنرال اقتاش زما څنگ ته راغی ... ويې ويل: د دوی هغسې دغسې د وحشي عربو ... زما عکسونه اخلي ... ما ته د ده غبرگون او خبرو خوند راکړ، غېږ مې ترې تاو کړه ... ده پر تندي ښکل کړم...

د شمال له پرمختياوو سره مولوي جلال الدين حقاني ستو کندو کې څو ځلې له مسعود سره په مخابره کې خبرې وکړې خو مسعود ده ته د زړه خبره ونه کړه، مسعود له مولوي حقاني غوښتل له گرديز واوړي او کابل ته نژدې خپل ځواکونه ځای پر ځای کړي، مسعود مولوي حقاني

ته ویل: چې دی به د گردیز څواکونو (جنرال امام الدین) ته ووایي چې لار در کړي.

مسعود په دې فکر و، چې که وتوانېږي حکمتیار او حقاني پخپلو کې ولوېږي او یا لږ تر لږه د مولوي حقاني څواکونه د هغه په مخه کې خنډ وگرځي. همدغسې یو پلان ائتلاف په ننگرهار کې هم درلود چې سلفیان خپل څواکونه له کونړ نه جلال کوټ ته را وړاندې او د حزب قوماندان انجنیر غفار له څواکونو سره چې د کونړ په مخه (ښېوه) کې خای پر ځای وو په جگړه بوخت شي.

سرې نیوهېږي جنرال امام الدین څرنگه ونه غوښتل په گردیز کې موجود امکانات او مهمات یوې گډې ادارې یا په بله وینا د مولوي حقاني د پلان او پروگرام له مخې نماینده شورا ته وسپاري، امام الدین د ښار کمربندونه پورته کړل او پر گردیز د مجاهدینو او ولسي خلکو لښکر چې همدې گړی ته منتظر وو ور مات شو.

د احمد شاه مسعود لخوا گردېز ته د لارې ورکولو خبره دغه راز رابرسېره کولی شي...؟

بسم الله الرحمن الرحیم

د افغانستان د جهادي قوماندانانو د سرتاسري شورا اعلامیه

**د محترم الحاج جلال الدین ((حقاني))**

**پیغام**

د دوو هفتو را پدېخوا د پکتیا ولایت مرکز د مسلحو قواوو سره اخري او مخامخ ملاقات کې د جنوب د سمت عمومي قوماندان الحاج مولوي جلال الدین ((حقاني)) ډگر جنرال رحمت الله ((ساپي)) ډگر جنرال محمد ظاهر ((سوله مل)) برید جنرال مصطفی او د مسلحو

قواوو له طرفه د قول اردو قوماندان ډگر جنرال امام الدین د څارندوی قوماندان تورن جنرال نبي جان او د هغوی د نورو ملگرو په موجودیت پرون شپه ۱۳۷۱/۲/۱ اخري مجلس وشو او څلور ساعته یې دوام وکړ د هرج و مرج او گډوډۍ د مخنیوي او ملي شتمنیو د ساتنې په غرض د سیمه ییزې نماینده اسلامي شورا طرحه ورته قرأت او تسلیم شوه خو مقابل لوري د گډې ادارې اعلان سبا ته پرېښود او په دغه وعده یې وروستۍ فیصله وځنډوله- له بده بخته د ۱۳۷۱/۲/۲ په شپه کابل ته د جنرال امام الدین او یو شمېر نورو جنرالانو په لېږد د ښار امنیتي کمربند مات او پر سهار یې نا منظم مجاهدین پر ښار ور وختل.

همدارنگه د جنوب تولو ولایاتو په گډه فیصله وکړه چې د امنیت له تأمین وروسته خپلې قواووې چې د مجاهدینو سابقه قوت او نوي فتحه شوې سلاح او وسایط په کې موجود دي کابل کې د سولې لپاره د الحاج مولوي جلال الدین ((حقاني)) تر مستقیمې قوماندې لاندې د کابل په لور حرکت وکړي.

والسلام

د افغانستان د جنوبي سمت عمومي قوماندان

او د قوماندانانو سرتاسري شورا رئیس

الحاج مولوي جلال الدین ((حقاني))

# له جنرالانو سره شپه

شپه مو د جنرال اقتاش بلنداژ کې شوه، دا یوه وسپنیزه کوټه ده له باندې لکه جونگړه، دننه په چپرکټونو، بسترو، بریښنا او نورو وسایلو سمبال- ځان مې د جنرالانو تر منځ کلابند لیده لکه یوې جلا نړۍ ته ننوتی وم، یا کومه نوې وچه مې موندلې... ډېرې ځیزونه راته نوي وو، له رازونو او اسرارو ډک...

غوښتل مې د زړو خبرې واورم، خو اوس یې هم پرانیستې خبرې نه کولې - یوازې د جنرال ساپي ټوکو د مجلس مالگه برابرولې شوای... پر جنرال اقتاش او جنرال ساپي سربېره، جنرال مصطفی، جنرال محمد قاسم، جنرال گل اقا او جنرال محمد عظیم هم شپه دلته واړوله. د غونډ مربوطاتو کې پوځي حاکمیت او دسپلین حاکم دی، د جنرال اقتاش حکم او امر ټینگ چلېږي... د شپې ما سترگې پټې نه کړای شوې چې جنرال مصطفی کرۍ شپه خوړېده بلکې غوړېده...

جنرال باید جنرال وي، چې جنرال تر اخره جنرال پاتېږي، له تقاعده بلکې، مرگ وروسته هم... ځکه پوځ ښايي سیاسي نه اوسي...

چې هر جنرال سیاست بايللی... سیاست جنرالان له پوځ لېرې کولی شي، سیاستوال یې نه شي گرځولی... پوځیان باید د سیاست له حق محروم اوسي... نه یوازې پوځي جنرالان بلکې جنگیالي او مجاهدین هم... که دوی ته یې په لاس ورکړي له خاورو، شگو یې ډکوي... د پوځ پوست چې هر جنرال غورځولی، د سیاست پوست نه دی پرې زرغون

شوی، لغریان شوي... چې جنرالان اوجنگیالي سیاست کې هم له جنگ او زور لاس نه شي نیولی... دوی له خپل مزاج او طبیعت مجبور دي...

نیش عقرب نه از پی کین است
مقتضـــای طبیعتش این است

خو افغاستان کې سیاست نه شته که وي جنگي سیاست دی... د جنرالانو، جنگیالیو او مجاهدینو...سیاست د خدای قهر دی... ما له دوی افغانستان کې د ټانکونو، الوتکو او پوځي وسایطو د ارقامو پوښتنه وکړه...؟ نه یې شوی ښووولی که نه یې ښوول...

د پاکستان د ټانکو، الوتکو له شمېر مې چې ورته یاده کړه... خولې خلاصې پاتې شوې، نه یې شوای منلی چې دا گني د یوه هېواد اشد محرم رازونه دي...

... را ته وایي تا دا احصایه له کومه کړه...؟ ورته وایم جنگ ورځپانه هر کال د هند و پاکستان د پوځي وسایطو دغسې ارقام خپروي...

د ټانکونو شمېر، نوعیت، گوزاریز څرنگوالی... نه دې شوای پرې منلی... جنرال ساپي هم زما د خبرو له تائید غاړه غړوله څکه خو زه وایم جنرال چې هر څه شي بیا هم جنرال دی... باید جنرال وي...

جنرال اقتاش په ټوله مانا جنرال و، دده خبره او شخصیت کې د ماتې، اسارت، تسلیمی ښېخ نښته او اغېز نشوای تر سترگو کېدی هماغسې داړه، فعال او با ډسپلین ... د ده دغه د یوې شپې ورځې ملتیا او بنډار د جنرالانو په اړه زما ټول سوچ واړاوه ...

سهار مې له غوند لېرې خوړ کې حقاني صاحب پر یوه گوښې چوکی یوازې او خواشینی ناست وموند، ساتونکي لېرې ولاړ دي... لکه زما راتلو

ته يې له سره پام نه وي... ناخاپه يې زما سلام، عليک کړ... بېرته خپلو سوچونو کې ډوب شو... له لږ ځنډ وروسته زه بېرته وګرځېدم - که ددغې خواشينوونکې چوپتيا پته ولګوی شم... د ساتونکو خولې مې بوی کړې، خو څه مې ونشوی موندلی...

څرنګه چې پېښور ته مې د تلو خبره غوټه کړې وه، بېرته حقاني صاحب ته ورستون شوم... ورته وایم حاجي صاحب زه به پېښور ته ولاړ شم... وايي ولاړ شه... دا يې نه ويل د څه لپاره؟ څه وکړه... څه کوې ...؟ له لږ ځنډ وروسته بې له دې چې حقاني صاحب مې پوښتلې وی لکه له ځان سره وايم: ښه به وي پکتيا، خوست او ... ته قوتونه راتول شي...

ما د جنرال ساپي له ببکانيو څرګندونو دا پته لګولې شوی چې دی به هرومرو حقاني صاحب ته د کابل سلا وركړي... ده د کابل جګړو مخنيوي کې د حقاني صاحب رول او منځګريتوب ارين ګڼه... خو ما ته خدای مې دې غاړې نه بندوي د جنرال صاحب دغه هیله کې د چوکۍ او مقام هوس ښکاره شو...

حقاني صاحب را سره په همدغسې نيولې خبره سره مخه ښه وکړه... ما هم له دې زيات څه نشوای ويلی... لاهور کې قوماندان ګل حسن په تليفانه خبر کړم، چې حقاني صاحب په جرګه کابل ته تللی... جنرال ساپی د احمدشاه مسعود له خوا د ملي دفاع وزارت ببواکه بې امتيازه مرستيال شو... خو ملېشو د ده پک اپ وتښتاوه، ده يوازې د استاد رباني په لاسليک يو فرمان تر لاسه کړای شو... په عملي ډګر کې يې مخه ډب وه...

جنرال صاحب پر دغه فرمان خورا خوش ښکارېده... ما ته يې

احوال راکړ کاروان روان دی...

حقاني صاحب ته مې په دې اړه يو ليک وکيښ... دری ورځې وروسته ځواب را ورسيد:

محترم ورور ننګيال صاحب!

السلام عليکم ورحمه الله وبرکاته!

تاسې ته بهتره معلومه ده چې تر اوسه د حکومت استقرار او سياسي اهداف نه دي واضح، ائتلافي شکل لري، چې ملي اسلامي صبغه يې هم مشکوکه ده. ما هم تر اوسه حکومت کې برخه نه ده اخيستې، يو وار دې وضعه معلومه شي بيا به په درنښت سره د فرهنګي اموراتو په ارتباط حکومت کې رسما شامل شې، په دې مورد کې تاسې ورونه ښه پوهېږئ، نور مو په خدای سپارم.

جلال الدين حقاني

وروسته چې د کابل له نويو جګړو جنرال ساپي پلچرخي ته سر وايستی شوای، هر يوه ته به له دې خبرې سره ولاړ و، چې که تر ماهيپر يې واړوي.... ما ورته کړه جنرال صاحب کاروان څنګه شو روان دی که تم...؟ ده په خندا راته کړه: ... روان دی خو په شا...

## د شمال څپې د کابل پر خوا:

په شمال کې د مسعود وروستي سوقيات پروان کې وو چې ځواکونو يې بې له کوم مقاومت چاريکار لاندې کړ، له همدې ځايه وه چې د نظار

شورا ۸۰۰ وسله وال د جنرال بابه جان د قومي مليشو په پرده کې کابل ته ننوتل او د ګارنيزيون قوماندان جنرال نبي عظيمي د پلان له مخې په حساسو ځايونو کې ځای پر ځای شول. که څه هم په وروستيو کې ډاکټر نجيب الله، نبي عظيمي ته ويلي و چې په مزار کې سکاډ شند او الوتکې بګرام ته ولېږي خو هغه دې کار ته بيا هم پلمه جوړه کړه.

په شمال کې همدا يو شعار خوله په خوله ګرځېده: ((نجيب ميخواهد فاشيزم پشتونها را برای صد سال ديگر بر کشور مسلط نمايد)) داسې تبليغات روان وو چې ډاکټر نجيب، وطنجار، پکتين، جمعه اځک، مانوکی منګل، لايق په جهاد کې د پښتنو ځواکونو په همکارۍ يو ګډ پلان او پروګرام تر لاس لاندې نيولی او غواړي واکمني د پښتنو په لاس کې پاتې شي...؟

## له ورخه تېرې اوبه:

د ۱۳۷۰لمريز کال د کب پر ۲۷مه ډاکټر نجيب د دوستم تول شرايط منلي وو د حيراتان لار ترلې، کابل د بشپړې کلابندۍ په حال کې و په همدې مهال سمنګان د جميعت په لاس سقوط وکړ.

شمال کې د رژيم ځينې نور اړخونه د پرله پسې تبليغاتو تر اغېزې لاندې و، دوی داسې ګنله چې د حکمتيار پر ځای له مسعود سره ښه چلېدلی او د ګډې ژبې پيدا کولو وړتيا لرلی شي.

د مزار له سقوط وروسته جنرال نبي عظيمي کابل ته ستون شو که هر څو يې د ډاکټر نجيب او وسله والو ځواکونو د قوماندانۍ غونډه کې په اوښلنو سترګو او له غريو ډک اواز د مزار د سقوط جريان په

خواشینوونکو ټکو څرګنداوه خو له باطني حرکاتو يې د يو فاتحانه ماموریت د ترسره کولو څرک له ورایه لګېدی شوی، ډاکټر نجیب يود کمېټه د کاوياني، مزدک، بریالي، یعقوبي او وطنجار په ګډون جوړه کړه چې له دوستم سره اړیکي وساتي که د رژیم له مخالفت نه لاس په سر نه شي لږ تر لږه خو د حل تر مهاله ناپېیلي او خودمختاره حیثیت خپل کړي.

نبي عظيمي ډاکتر نجیب ته همدا یوه خبره کوله چې دی به د نوي کال پر ورځ د روضې جنډه د رژیم په نماینده ګی پورته کړي.

نجیب الله مزار ته د دوستم د ځواکونو د لېږلو تېروتنه ومنله او په دې اړه يې د ټولو پرېکړو مسئولیت پر غاړه واخیست.

ډاکتر نجیب له یوې بلې تېروتنې سره مخامخ کړی شو، ده ته داسې ښودل شوي وو چې د مسعود برید پر کابل څکه ناشونی دی چې پروان کې يې د حکمتیار ځواکونه په مخه کې دي، خو د مسعود ځواکونه لا مخکې د جنرال بابه جان له هغو سره کابل ته ننوتي وو، د حزب قوماندان معلم فرید او فتح محمد هم د مسعود مخه ډب نه کړی شوه یا يې نه غوښتل د ده مخه ونیسي، پر ډاکتر نجیب ناوخته شوې وه ښايي په وروستیو کې يې د مسعود پر ځای حکمتیار غوره بللی وي خو اوبه له ورخه تېرې وې.

حکمتیار وروسته دا خبره د ننګرهار پوهنتون محصلینو یوه غونډه کې په ډاګه کړه: د نجیب له اړخه را ته پرله پسې پیغامونه را تلل، ده له استعفا پېنځه ورځې د مخه يو لیک را ولېږه چې حزب به د مشر ورور په توګه په حکومت کې مني، په نظام کې چې هره څوکۍ غواړي په واک کې مو ده خو له موږ نه سترګې پټول بې انصافي ده.

گوند څلور لکه غرې لړې له یوې مخې زموږ حذفول ناشوني دي، که حزب اسلامي زموږ دغه خبرې او وړاندیز ونه مني بیا به وګورئ چې د اقتدار واګې د چا لاسونو ته لوېږي...

نجیب الله لکه تکان خوړلی وي او یا له یوه درانه او ویروونکي خوبه پاڅېدلی وي، پرېکړه کوي کابل ته د جنرال جبار قهرمان ملېشو د را وړلو لپاره کندهار ته څلور الوتکې پلان کړي، خو د هوایي ډګر قوماندان جنرال فتاح د کندهار پر ځای الوتکې مزار ته واستولې او د دوستم ملېشې یې د بګرام او خواجه رواش په هوایي ډګرونو کې ځای پر ځای کړې.

# نظامي عالي شوار ته د واک لېږد غوښتنه

د حمل پر ۲۷مه د ښځينه سپوان مرستيال حسين بوستاني يوې نظامي شورا ته د واک سپارلو خبره د رژيم له پوځي مسئولينو سره شريکه کړه، جنرال عظيمي په جريان کې و، داکتر نجيب پوځي شورا ته د واک سپارلو هرکلي وکړ، د پوځي شورا غړي لاندې کسان په پام کې نيول شوي وو:

لوی درستيز ستر جنرال اصف دلاور د شورا مرستيال، د هوايي او مدافع هوايي قوماندان دګر جنرال عبدالفتاح، دګر جنرال عبدالعظيم زرمتی د کورنيو چارو وزارت معين او د انقلاب د دفاع عمومي قوماندان، د دولتي امنيت مرستيال او د ملي ګارد عمومي قوماندان دګر جنرال سيد عظيم، د سرحدي قواو عمومي قوماندان تورن جنرال غلام فاروق، د کابل ښار د څارندوی قوماندان تورنجنرال ولي، دګر جنرال عبدالرشيد دوستم د ۵۳مې فرقې قوماندان، د ۸۰مې فرقې قوماندان تورن جنرال حسام الدين، د ۷۰مې فرقې قوماندان تورنجنرال مؤمن.

همدارنګه به په پاکستان او ايران کې د تنظيمونو يو يو نماينده هم په پوځي شورا کې برخه ولري. د پوځي شورا مشر ستر جنرال محمد نبي عظيمي په پام کې نيول شوی و.

په دې تولو پرمختګونو کې کابل کې د فرانسې سفارت چې له ارګ

سره نژدې موقعیت لري فعال نقش درلود، دغه سفارت د پېښو په اړه د لومړنیو خبرونو د سرچینې په توګه د یوه اژانس بڼه غوره کړې وه، د ډاکټر نجیب د استعفا خبر هم تر ټولو دمخه د فرانسې خبري اژانس AFP ورکړ، په دې توګه سفارت د پېښو په اړه لکه یوه محوري اداره فعالیت درلود.

## درواغجن خوبونه:

فرانسې سفارت د مدرنو مخابراتي او جاسوسي وسایلو په لرلو سره د مسعود او پرچم همدارنګه د دوی او بهر تر منځ د اړیکو په ټینګولو کې مهم رول درلود.

ډاکټر نجیب نور محاصره و، د ملګرو ملتونو د سولې پلان د سبوتاژ او تخریب عملیې د بشپړېدو په درشل کې و چاره هډوکي ته رسېدلې.

د مارچ پر ۱۸مه نجیب الله د لومړي ځل لپاره اعلان کړه چې اقتدار پرېږدي او په راتلونکي حکومت کې هم له ونډې اخیستلو تېر دی، مجاهدینو په دې ټینګار کاوه چې ملګري ملتونه خپله د پېنځو ټکو طرحه پر نجیب الله نشي منلی، که منلی یې شي نو د دې خبرې ضمانت څه کېدی شي؟!

له همدې خایه وه چې ملګرو ملتونو د یوه داسې سند تر لاسه کول غوښتل چې د مجاهدینو خوله ور پټه کړي.

د ملګرو ملتو مامورینو فکر کاوه چې د ډاکټر نجیب د استعفا له اعلان سره به د مجاهدینو د پروپاګند او پلمو تر ټولو خطرناک او زهرجن غشي له اغېزې ولوېږي او دوی به د ملګرو ملتونو له خوا

وړاندې شوي حل ته غاړه کېښودې او که مخالفت یې وکړ نو ټوله نړۍ به ورته د ملامتیا ګوته ونیسي او یوازې به پاتې کېږي. په حقیقت کې د ډاکټر نجیب همدغه اعلان د ده د حکومت لړزانده ستنې ونړولې ملګرو ملتونو هماغه تېروتنه وکړه چې د سترګو په رپ کې یې د لوبې لوری واړاوه.

بنین سیوان په دې پوه شو چې د ده له لاسه د فشار او تهدید هغه وسیله ووتله چې مجاهدین پرې ووېروي څکه خو یې ډېر ژر د ۱۵کسو **نوموونه:** ډاکټر صمد حامد، سید شمس الدین مجروح، پوهاند عبدالسلام عظیمي، سلطان محمود غازي، ډاکټر یوسف نورستانی، زهره یوسف، عبدالستار سیرت، محمود حبیبي، عبدالجبار ثابت، عزیز الله واصفي... (لیست دقیق ندی چې تر اوسه مې باوري لاسوند ندی موندلی) اعلان کړل چې مجاهدین په تېره سخت دریڅه تنظیمونه ببرته یو ګام شاته واخلي.

د اپریل پر لسمه ډاکټر نجیب یو ځل بیا اعلان کړه چې که عبوري حکومت جوړ شي که نه، دی به د اپریل تر پایه له اقتدار نه ګوښه شي د باوري اشخاصو په وینا پاکستان دغه وخت له منافقت نه ډک دریځ خپل کړی و.

پاکستان د مجاهدینو له مشرانو سره په خبرو کې هغوی ته ویل: د ملګرو ملتونو چارواکي احمقان دي، هغوی چې څه کوي، کوي یې دې، بلاخره ناکامېږي، پاکستان د مجاهدینو د مشرانو ملاتړی دی.

له بلې خوا یې د ملګرو ملتونو له چارواکیو سره خبرو کې هغوی ته نه یوازې د پاکستان له خوا د بشپړ ملاتړ وعده ورکوله بلکې په مهاجرو یې د راشن بندولو او د تګ راتګ محدودولو خبره هم کوله چې کابل ته

يې د لس زره تنه غنمو د مرستې وعده د خپلې ژمنې او ملاتړ د ثبوت په توګه وراندې کوله.

هلته په اسلام اباد کې د مجاهدينو مشرانو تر منځ ناندرۍ روانې وې د دوی په غونډه کې د پاکستان صدراعظم نواز شريف، د ای اس ای مشر تورن جنرال جاويد ناصر او بهرنيو چارو کې د دولت وزير صديق کانجو برخه لرله.

د پنجشنبې په غونډه کې د استاد رباني دريځ ګونګ و، داسې ښکارېده چې له احمدشاه مسعود نه د څه پيغام تر لاسه کولو انتظار کوي.

په همدې وخت کې نواز شريف له استاد رباني وپوښتل: که په کابل کې څه بدلون راشي او ستاسې د تنظيم قوماندانان په کې برخه ولري ستاسې عکس العمل به څه وي؟

په غالب ګومان نواز شريف به ای ايس ای په کابل کې له پېښېدونکو بدلونو خبر کړی وي. استاد رباني په ځواب کې وويل: زه به هغه وخت په دې اړه د پرېکړې تصميم ونيسم چې دا کار ترسره شي.

نواز شريف خپله خبره تکرار کړه، خو رباني صاحب يو ځل بيا ځان تېر کړ، پر همدې مهال رباني ته د خپل تنظيم د نظامي کمېټې رئيس انجنير ايوب تليفون راغی، د تليفون له اورېدو وروسته رباني په داسې حال کې چې خوله يې له خندا نه ټولېده وويل: مبارک مو شه کابل فتحه شو، د نورو خبرو ضرورت نه شته.

په داسې حال کې چې تر دې دمه ټول د بنين سېوان هلوځلو او پېنځه فقرييزه طرحې ته سترګې پر لار وو چې د ملګرو ملتو د پلان له مخې به ۱۵کسيز هيئت ته واک تسليمېږي، هېڅا هم دا نه وه اټکل کړې

چې پرچم او ستم به په دومره اسانۍ د ملګرو ملتونو پلان تخریب کړی شي.

حکمتیار له غونډې په وتو او قطب الدین هلال د باصلاحیته استازي په توګه پرې اینبی و.

په حکمتیار پسې یوه ځانګړې الوتکه پېښور ته ولېږل شوه حکمتیار په اسلام اباد کې درې طرحې وړاندې کړې وې:

- د کابل شاوخوا قوماندانانو ته دې عبوري اقتدار وسپارل شي، د دوی لپاره د ۵۰ او حتی سل کیلومتری واټن ټاکل کېدای شي.
- د جهادی مشرانو قیادي شورا دې جوړه او له غیر متنازع اشخاصو دې عبوري حکومت جوړ کړی شي.
- له هغو کسانو چې په پېښور کې پرې موافقه شوې وه عبوري حکومت جوړ شي.

وخت په چټکۍ تېرېده په دومره چټکۍ چې د دغسې طرحو د عملي کولو فرصت او حوصله یې نه لرله.

ایران هم پر لوبه له ورګډېدو د «انقلاب صدور» نړیوالې اجنډا ته چانس موندلی و... په پاکستان کې یو ایراني دیپلومات ((نجفي)) له یوه پلاوي سره له ایران نه مزارشریف ته تللی و او هلته یې له دوستم، نبي عظیمي، جنرال مؤمن او احمدشاه مسعود سره خبره پخه کړې وه.

ایران ځکه دغه لوبه په مهارت سره په مخ یووړه چې د مسعود او عظیمي په خېر لوبغاړي یې په لاس کې لوېدلي وو د لوبې بله څنډه داسې وه چې مسعود د کابل تخت تر لاسه او نور مجاهدین یې پر خلاف وسلې ته لاس کړی او یا هم د پښتون او تاجک مسئله ترې جوړه کړي.

## د یوې لوبې پای د بلې پیل:

خرنگه چې د مجاهدینو اتحادونه د بهرنیو مرستو د ژمنو په موخه را منځته کېدل، له همدې ځایه دغسې اتحاد له میاشتو کال زیات نشوای پایېدای- دلته به بیا د اتحاد په وسایلو داسې چور جوړ شو چې یوه به پر مالي کمېټه خېټه واچوله بل به پر نظامي کمېټه گونډه وهله- تر مېز چوکیو پورې به یې ورسره ټبنتول، دېرې دغسې اتحادونه د نویو تنظیمو ستېه گرځېدل.

په اتحادونو، ائتلافونو پسې د حکومتو وار را ورسېد- پاکستان کې چې نژدې تر سلو زیات تنظیمونه جوړ شوي وو، اوو جهادي تنظیمو کې را ټول کړی شول، تنظیم هغه پېژندل کېده چې وسله وال ولري جنگیالي وړاندې کړي- ځکه خو د جهاد سیاسي اړخ له سره پاموړ و نه بلل شو، لویدیځ او په سر کې امریکا د جهاد سیاسي اړخ ته پام ونه کړ، ستراتیژي یې دا وه چې د جگړې له امله شوروي ته سرخوږی وومي، چې د مجاهدینو په بري او د شوروي په ماتې یې باور نه شوی کړی، امریکا د استاد پژواک په څېر سیاسي ملي شخصیتو ته په رول قایل نه شوه، له اوو تنظیمو، دری هغه چې بنسټپال بلل کېدل او د مرستو دېرې برخه یې تر لاسه کوله ښه جنگېدل، د جنگیالیو او جبهو شمېر یې زیات و.

له همدې ځایه ملي ایډیالوژي زېندی شوه، روناندو د تولېدا مخه ونشوای موندای، د ملي عناصرو او روناندو په ځپلو او ترور مهاجرت کې تنظیمي اختناق او استبداد واکمن شو.

منځلارو هغو کې د حرکت او محاذ جبهې غښتلې وې، خو مجددي

پر هوايي جبهو او تشکيلاتو چلېده- چې په مرستو کې يې هم برخه خواره وه- دلته وه چې مجددي يو ځل د استعفا خبره را پورته کړه- خو له څه شي استعفا او چا ته بايد استعفا وړاندې شوې وی؟! هغه و چې د حميدگل يوې پټکې يې خوله پټه کړه.

عربي شيخانو او حکومتونو له سخت دريځو سره اړيکې پاللې- سعودي د استاد سياف د ټينگ ملاتړ کانالونه وغځول- ده ته يې د ملک فيصل جايزه ورکړه او پر پاکستان يې فشار راووړ چې د تنظيم په کچه يې ومني- عربي سخت دريځه وهابيان يې په ننگه ودرېدل او عربي شيخان او اخونيان يې پخپلو ويناوو مسحور کړل، سعودي د تنظيمو مشرانو ته خپل پاسپورتونه ورکړل او د دغو تنظيمو مخکښان يې د رابطې او دارالافتا په ډېلو معاشونو نازول.

د سعودي استخباراتو يوه چارواکي جنرال باديب په دې غاړه هسکه وړه چې د مجاهدينو يوه مشر نوم يې اصلاح يا د ده په وينا اسلامي کړ... استاد سياف چې د اسلامي يووالي مشر په توگه پخپل قلم، خپله سوانح فرهنگي کمېټې ته اتحاد اسلامي جريدې لومړی گڼه کې د خپراوي لپاره راولېږله خپل نوم عبدالرسول د فقير محمد زوی کښلی و، چې وروسته يې په (عبدرب الرسول) تصحيح کړ ... خو له هغه وخته بيا تر دې دمه رسنيو سم ونه شوای ليکلی (عبدالرب الرسول، عبدالرب رسول، عبدرب الرسول) به يې کيښ چې... د دغسې تېروتنو له امله يو وار نسيم ستانيزی او د وحدت اسلامي څو کارکوونکي کسر معاش شول ...

حزب له عراق او ليبيا سره هم د اړيکو او مرستو تر لاسه کولو محور موندلی و، په داسې حال کې چې دغو هېوادونو له جهاد د ملاتړ دريځ

نه شوی نیولی.

د افغانستان شعیه گان چې په گنو تنظیمو او ډلو ویشلي وو، ایران حزب وحدت کې را ټول کړل- خو شیخ محسني له دې اتحاد د باندې پاتې شو او خپل مرکز یې پېښور ته ولېږداوه...

ایران له کابل سره د اړیکو له غځولو پر یوه نوې لوبه ورگډ شوی و. ایران له شعیه گانو سره د مذهب او له جمعیت سره په ژبني بنسټ لوبه غځولې وه.

احمدشاه مسعود له روسانو سره پر اوربند د رژیم له یوه ځانگړي فرکسیون سره اړیکي ټینگې کړې وې. ایران نه غوښتل نړۍ د افغانستان له لارې د مرکزي اسیا مارکېټونو ته ورسېږي، بلکې خپله یې د سوداگریزه راهدارۍ هیلې پاللې چې د ازربایجان له لارې منځنۍ اسیا ته لاره تېره کړي.

روسیې ته د استاد رباني پر سفر ډاکټر نجیب الله ویل: زه یې له روسانو سره په اړیکو کافر گڼلم، اوس خپله د مجاهدینو مشران د کرملین پر دسترخوان ور ټول دي او زارۍ ورته کوي چې له نجیب الله واک واخلي او دوی ته یې ورکړي... خو زه یې چې په واک کې شریکوم نه یې مني...

شوروي ته د رباني سفر مولوي خالص، سیاف او حکمتیار وغانده- له ده سره مولوي محمد نبي ملگری وو- استاد رباني او پلاوي یې د روټسکوی په مشرۍ روسي پلاوي سره خبرې وکړې، د روټسکوی الوتکه پکتیا کې مجاهدینو غورځولې وه، د ده کلاکوف له حاجي خلیل الرحمن سره و،- خو روټسکوی پاکستاني مقاماتو د روغ نیتۍ په نامه شورویانو ته ورکړ، استاد رباني مسکو کې بې خونده اعلامیه لاسلیک کره، د راتلو

پر وخت یې رسنیو ته وویل: روسانو سره مو د جګړې تاوان خبره وکړه، دوی وویل: تاسې ګوري موږ په فقر اخته یو، په دې وخت کې څه ډول تاوان درکولای شو؟ ما ورته وویل: دا خبره را سره د یوه اصل په توګه ومنئ دا چې څه وخت یې را کوئ بېله خبره ده، ځکه دا خبره په اعلامیه کې ځای نه کړی شوه.

له دې وړاندې استاد رباني ( ۱۹۸۸کې) د لومړي ځل لپاره طایف کې د روسي حکومت له استازو سره مخامخ خبرې کړې وې- حکمتیار څو ځله په پټه دغسې هڅې او اړیکي پیل کړي وې، خو د غځیدا او پایلو له اړخه یې منګول تشه وه...

استاد رباني ایران، تاجکستان سره فرهنګي تړون لاسلیک کړ- ډاکټر نجیب د دوستم ملېشې د نجات فرښتې ګڼلې- د مدافعان صلح و وطن کتاب سریزه کې یې د ډاکټر نجیب الله لوړه خبره د وجېزې په بڼه را اخیستې ده...

ددغو ملیشو ځواک دومره پراخ شو چې د نجات فرښتې د دېوانو ګوابښ وګرځېد.

له شوروي راغلي تجهیزاتو ، پوځي لوژستیکي وسایلو ډېرې برخه د دې پر ځای چې کابل ته ولېږدول شي، مزار او حیراتان کې زېرمه کېدل- په دې توګه د شوروي له وتلو او تر وته کېدو وړاندې شمال کې پرېمانه وسلې او مهمات ځای پر ځای شوي وو.

نجیب الله له زړه غوښتل له دوستم، کیان او جنرال مؤمن سره اختلاف له منځه یوسي- د دې لپاره یې جنرال نبي عظیمي دوستم ته ولېږه، خو هغه د اختلاف پر دغه اور نور تېل وغورځول، دویمه پلا یې د حق مراد شرکت خاوند ورولېږه، خو هغه کابل کې خپل شرکت د تلوالې

د فعالیت مرکز وګرځاوه.

نجیب الله د بنین سیوان غوښتنو ته غاړه ایښې وه- په دې هیله و چې د واک له پېټي یې اوږې سپکې شي، په دغو ورځو کې ډاکټر نجیب الله تر فشار لاندې و چې واک د نظار شورا په مشرۍ تلوالې ته وسپارې.

پرچم فرکسیون ډاکټر نجیب الله له پښتون توکم سره په پېیلتیا نه شوای زغملی، مجاهدینو له خاد او کمونېزم سره په پخواني تړاو محکوم ګاڼه- دلته وه چې نه یې په رژیم کې دننه د تکیې لوری لیدای شوای- نه یې له مجاهدینو سره د کور کلي مخه موندای شوای- له بده بخته مجاهدینو د ډاکټر نجیب الله د وروستي دریځ پر وړاندې د سم قضاوت ظرفیت ونشوای ښودی. د ده موقعیت یې سم درک نشوای کړای، پر یوه وخت یې د پرچم ستمي فرکسیون، خلقیانو او مجاهدینو دښمني غاړې ته لوېدلې وه. د کب پر ۲۸مه ډاکټر نجیب الله یوه اعلامیه خپره کړه. چې په هغې افغاني جرګه کې چې د ملګرو ملتونو سرمنشي بطروس غالي په کوربتوب جوړېږي پخپل ګډون ټینګار ونه کړي- د اعلامیې په تکو غونډه کې چې کوم انتقالي حکومت جوړ شي په هماغه لومړنۍ ورځ به اجرایي خواک ورته وسپارل شي. په اعلامیه کې د ډاکټر نجیب الله له خولې راغلي چې دی د خلکو ګټې تر شخصي هغو لوړې ګڼي او له نورو هم دا هیله لري.

د مجاهدینو له خوا استاد سیاف د ملګرو ملتو پېنځه فقریېزه طرحه له یوې مخې رد کړه- ده له بنین سیوان سره له لیدو ډډه وکړه- استاد سیاف ویل: سیوان ته چا دا واک او صلاحیت ورکړی چې زموږ په قضیه کې مداخله وکړي او موږ ته د څه کولو مشوره را کړي؟

پرچم فرکسیون ((محمود بریالي، کشتمند، نجم الدین کاویاني،

فرید مزدک، سید اکرام پیگر...)) په مټ شمال کې وار له مخه سیاسي پوځي پانگونه کړې وه- سرېل یې د جلا اداري واحد په توگه را منځته کړی او د مزار شریف د پایتخت کولو پروسه تر لاس لاندې وه.

کله چې ډاکتر نجیب الله د ملگرو ملتو د سولې پلان د منلو پرېکړه وکړه دغې ډلې داسې طرحه وړاندې کړه چې راتلونکی میکانېزم ښایي د قومونو، یا د دوی په وینا ملیتونو پر بنسټ را منځته شي دلته به کشتمند د هزاره په استازیتوب له حکومت او گوند په جلا کچه را مخې ته شي، دوستم د ازبکو، احمدشاه مسعود د تاجکو او هاتف یا کوم بل د پښتنو په نمایندگۍ حکومت کې ونډه ولري.

دوی پر نجیب الله هم په پیل کې منلې وه، ان چې د وطن گوند اساسنامه کې هم ځای کړې وه چې د افغانستان دولت به د نژادي، قومي ژبنیو بنسټونو له مخې د اداري واحدونو جوړولو هڅه وکړي.

دوی لومړی د فدرالي سیستم خبره را پورته کړه- تر دې نامه لاندې یې د تجزیه غوښتنې تکي په میهن جریده کې خپاره کړل.

د روسانو له وتلو د مجاهدینو او ټوله کې مقاومت تر منځ واحد دریځ را منځته نشو د جهاد سیاسي اړخ کمزوری پاتې و- پخواني پاچا ته که څه هم د هیلو سترگې اوښتې خو وړ دریځ او موقعیت یې خپل نشوی کړی، بلکې د یوه پراخ ملي سیاسي خوځښت په مخه کې یې د کاذبو هیلو له اړخه تشه را منځته کړی وه.

ډاکتر نجیب الله چې ۱۳۶۹لمریز کې د افغانستان ناپوځي کولو پلان وړاندې کړی و، د مجاهدینو موقت حکومت د جهاد پر ضد توطئه وبلله ...

پخواني پاچا د هغسې رول زړه ونه کړای شو چې شهزاده نوردوم

سهانوک د فرانسې له تبعید وروسته کمبوديا ته په ستنېدو د کورنۍ جګړې مخه ډب کړې وه.

د بنین سیوان د سولې پلان پر وراندې رژیم کې دننه یوې کودتا مقدمات چمتو شوي وو. د سيوان تول هڅه د ډاکټر نجيب الله له خوا د استعفا پر اعلان او د مجاهدینو له خوا د لست پر ورکولو راګرځېده. په داسې حال کې چې د مجاهدینو او رژیم دننه ډلو د واک لپاره په ځانګړو نخچو او پلانونو کار کاوه، تنظیمو هم له یو بل پټ کابل ته پلاوي لېږل.

لکه د مخه وویل شول د مخالفت پیل د ډاکټر نجیب الله له خوا شمال کې د جنرال جمعه اخک ټاکل وو، چې د ملیشو د خپلسریو مخه یې نیوله- که څه هم ډاکټر نجیب الله، اخک بېرته کابل ته وغوښت، خو دا د ائتلاف پلمه وه، له حیراتانو وروسته مزار سقوط وکړ او تلواله د چاریکارو د سقوط په نتیجه کې د کابل پر برید درېدلې وه.

احمدشاه مسعود په لومړي سر کې د مزار ائتلاف د سیمې په کچه د ځایي قوماندانانو او ملېشو تفاهم وګانه، خو ډېر ژر یې له دوستم سره په ګډ مطبوعاتي کنفرانس کې پر ائتلاف اعتراف وکړ.

د پېښور ناندرۍ هماغسې روانې وې- حکمتیار پر زره خورلې وه چې که ځواک د دوستم او مسعود په واک کې وي، هر څه چې وغواړي په تنظیمي مشرانو منلی شي- له همدې امله لوګر ته ولاړ- چې له یوې خوا پروان کې خپلو قوماندانانو فرید او فتح په مت د ځمکې له لارې کابل ته د نظار شورا د پرمختګ مخه ونیسي او له بلې خوا د جنوب له لارې کابل ته د خپلو ځواکونو د ننوتو لار پرانیزي.

حزب د سید جمال الدین افغان لېسې زده کوونکي پر کابل ور شېوه

کرل- زده کوونکي په سخته يخنۍ کې بې له کوم چمتو والي او لوژستيکي ورتيا له پېښور، سپينې شګې، لوګر، چهار آسياب ته يوورل شول...

کابل کې حزب وحدت د قوم او مذهب په نامه له کلاى شاده، پل سوخته، سراى غزني- درېيمې کارتې چې مزاري يې ملت غرب کابل بولي کرښه تېره کړې وه او د دغه سيمې د پوځي تأسيساتو او وسايلو تر لاسه کولو په خار او ځاو کې و. تر ائتلاف پورې اړوند پوځي، امنيتي ځواکونه او ارګانونه په داسې موقعيت کې وو چې يوازې خپلو انډيوالانو او مؤتلفينو ته وسلې، پوځي دولتي تأسيسات وسپاري. عظيمي کابل کې پوځي قطعاتو ته له حکمتيار پرته نورو تنظيمو له افرادو سره د غاړې ورو ويلي و.

پر دې سربېره د هوا له لارې د ټلوالې ځواکونه د کابل په حساسو برخو او هوايي ډګر کې ځاى پر ځاى شوي وو- ۱۵ ترانسپورتي الوتکو له مزاره د دوستم مليشې کابل ته لېږدولې.

بنين سيوان د وري پر ۱۳مه له کابله اسلام آباد ته په رسېدو خبريالانو ته وويل: د افغانستان په اړه د ملګرو ملتو په استازيتوب د افغان ربړې له اواري ډاډه دى- څکه خو به چا ته اجازه ور نه کړي د سولې او لېږد په لار کې خنډونه را منځته کړي.

ده د حمل پر ۱۵مه له مجاهدينو د ناپېيلو شخصيتونو لست تر لاسه او په توحيد يې بوخت و.

پاکستاني مقاماتو وويل: ډاکټر نجيب الله غوښتي څومره ژر چې کېدى شي د انتقالي شورا د جوړښت پروسه بشپړه کړي- ډاکټر نجيب اندېښمن دى چې کېدى شي وضعه او حالات له کنټروله ووځي.

سیوان که څه هم تلولی و، خو زړه یې نه و غورځولی، ځکه خو یې د وري پر ٢٦مه اسلام آباد کې وویل: د ملګرو ملتونو پلان پر مخ روان دي- پر وړاندې یې کومې ستونزې نه لیدل کېږي، بري ته هیله من دی.

ائتلاف کابل کې کودتا ته چمتو و، خو سیوان ته داسې ښودل کېده چې را منځته شوې پرمختیا وې د سولې پلان ته لا زیاته زمینه برابرولی شي...

ډاکټر نجیب الله کابل کې یوه هندي خبریال سره مرکه کې په داګه کړه چې د ملګرو ملتونو د پلان پر اساس د موقت حکومت تر جوړېښت انتظار نشي کړای- د اپریل په وروستیو کې به خپله استعفا اعلان کړي. د استعفا متن د ملګرو ملتو اداره کې لیکل شوی و چې څو واره د ډاکټر نجیب الله او کابل، نیویارک کې د ملګرو ملتو ادارې تر منځ تبادله او تصحح شوی و.

دغه متن د لوی اختر پر شپه د١٩٩٢ اپریل ۴مه وړاندې شو. د متن له مخې به د اپریل پر ٢٨مه واک موقتې ادارې ته سپارل کېږي.

## د جمعیت لخوا د پرمختګ لومړنۍ اعلامیه

# اطلاعیه

هموطنان عزیز ومسلمان !

طوریکه همه اطلاع دارید ، در اثر یك سلسله عملیات منظم مجاهدین ، فتوحات بس مهمی از سالنگ جنوبی به استقامت شمال کابل صورت گرفت که در اثر آن سالنگ جنوبی ، فرقه (۲)، مرکز قول اردوی نمبر(۵) جبل السراج ، چاریکار مرکز ولایت پروان ، فرقه ( ٤) میدان هوائی بگرام باهمه تاسیساتش به تصرف مجاهدین جمعیت اسلامی درامد .

اکنون مجاهدین آمادگی کامل سوقیات به طرف شهرکابل جهت سقوط نهائی رژیم درحال زوال کابل را دارند ولی درین لحظه سرنوشت سازمتاسفانه حزب اسلامی (حکمتیار) تمام قوت های منطقوی خودرا جمع ودرمحاذ بین شهر چاریکار ودوسرکه بگرام جابجانموده ومصمم است که مانع پیشروی برادران مجاهد شما بسوی شهرکابل شود وعلاوتاً به همه نیروهای خود اکیداً دستور داده است که دست به یك تهاجم شدید بالای میدان هوایی بگرام که همین اکنون در تصرف مجاهدین جمعیت اسلامی قرار دارد ، بزنند .

گرچه شکستاندن مواضع حزب اسلامی از نقطه نظر نظامی مشکلی نیست ولی جمعیت اسلامی نمیخواهد درین شرایطی که به پیروزی نهایی جهاد فاصله کوتاهی داریم ، درگیری میان مجاهدین صورت بگیرد وباعث خون ریزی درمیان مسلمانان شود .

برادران مجاهد ومهاجرین زجرکشیده کشور!

ازهمه شمابرادرانه خواهشمندیم تابادرك حساسیت این لحظات سرنوشت ساز دسته جمعی ومنفردانه بالای آقای حکمتیار رهبرحزب اسلامی افغانستان برادرانه فشار وارد نمائید تا ازهمچو اعمال غیر مسئولانه وخلاف منافع مسلمین ومجاهدین دست بکشند .

آیا لازم است برای مجاهدینی که سالهای متواتر برای رسیدن به آرمان های والای شان در سنگرها با برهنگی وگرسنگی سپری کرده اند در همچو موقع حساس برای رسیدن شان به هدف مشکلات ایجاد گردد؟ وبه دشمنان جهاد افغانستان این بهانه داده شود که مجاهدین رامتهم به آشوبگری و درگیری های داخلی نمایند !!.

ما بسوی آرمان مشترک خویش که هدف عامه مجاهدین وملت مسلمان وزجر کشیده افغانستان است ، پیش خواهیم رفت ومسئولیت هر نوع اخلال گری واعمال ضد جهادی متوجه کسانی خواهد بود که در برابر مجاهدین خودرا قرار میدهند والسلام

وما علینا الاالبلاغ

نجیب الله له ملګرو ملتونو ۱۰۰۰سوله ساتي عسکر غوښتي وو چې کابل کې یې ځای پر ځای کړي. سپوان دا غوښتنه له دې امله رد کړه چې د دغو عسکرو د لګښت مخه یې نشوای نیدای.

د ډاکټر نجیب له استعفا سره دولت سقوط وکړ ... مجاهدینو دولت او حکومت جوړ نه کړای شو ... افغانستان بې دولته بې حکومته کوڅه واکیو او ملوک القوماندنیو ته پاتې شو ...

استعفا د ډاکټر نجیب الله ستره تېروتنه وګرځېده- په دې توګه یې خپل لاس کې وروستی کارت هم له لاسه ورکړ، ده بیا هم هڅه کوله ګوند کې د اختلاف کچه را ټیټه کړی شي- خو عملاً د رژیم ارګانونو کې واک ویشل شوی و- پوځ کې واک له جنرال نبي عظیمي، اصف دلاور، بابه جان، دوستم، جنرال مؤمن او کیان له ملېشو سره وو، د کارمل، مزدک، پیګیر، کاوياني، وکیل له خوا د سیاسي ستراتیژی ټول ارخونه غصب شوي و.

نجیب الله یوازې پاتې و، نژدې ملګرو هم ترې مخ اړولی و- دغه ملګري د واک په خامه تمه پر اومړي تار پېیل شوي و، ان چې ښاغلی لایق یې هم په بېلا بېلو القابو د ډاکټر مخالفت ته اړ کړی و.... د وري پر ۲۵مه کابل سختو ډزو د کودتا د لومړني ګام په توګه ولړزاوه.

د کودتا د برې اعلامیه د وري پر ۲۶مه جنرال نبي عظیمي ولوسته... به نماینده گی از قوای مسلح به ایجاد دولت اسلامی خیر مقدم گفته و بحکومت اسلامی جناب حضرت صبغت الله مجددی، دوش بدوش نیروهای جهادی در جهت تامین صلح و امنیت در کابل و کشور مبادرت می ورزد... قوای مسلح، جنرالان و افسران در تشریک مساعی با نیروهای جهادی و اوامر محترم انجنیر احمد شاه مسعود وزیر دفاع

وظایف خود را انجام دهد...

پښتو ته د اعلامیې ژباړلی متن د نجیب الله مجددي لخوا چې وار له مخه کابل ته رسېدلی و، په ناسمو ټکو او کرکېچنه لهجه وړاندې کړای شو...

جنرال نور الحق علومي، نبي عظیمي، آصف دلاور او... د نظار شورا قوماندانانو ګډا، فنا او... نجیب الله مجددي سره د کودتا د بري زیري غبرګ کړل.

ډاکټر نجیب الله په دې تورن وپېژندل شو چې غوښتل یې له هېواده وتښتي- پر ده یې د سیاسي بې غیرتۍ تور پورې کړ- واک د څلورو جنرالانو نبي عظیمي، اصف دلاور، بابه جان او مؤمن په لاس کې دی. د سفارتي تعاملاتو نوښت له اسلام آباده تهران ته لېږدېدلی، اسلام آباد کې د ایران سفیر مزار کې و- کابل کې د فرانسې سفارت د اطلاعاتو مرکز و- د حمل پر ۲۸مه د بهرنیو چارو وزیر عبدالوکیل چاریکار کې له احمدشاه مسعود سره وکتل.

پر سبا یې بهرنیو چارو وزارت کې مطبوعاتي کنفرانس ورکړ - نجیب الله یې پر فرار نافرجام پړ وباله. د اپریل پر ۱۸مه عبدالوکیل یو ځل بیا جبل السراج کې له احمدشاه مسعود سره کېناست.

احمد شاه مسعود یوازې استاد سیاف ته له پرمختیاوو خبر ورکاوه- د انجینر احمدشاه احمدزي په وینا مسعود وایي کمونیستي جنرالان استعمالوم- واک به مجاهدین تر لاسه کوي.

انجنیر احمدشاه احمدزي ویل: مسعود د نویو اطلاعاتو شریکولو داد ورکړی و- خو خپله وعده یې پوره نه کړه، مسعود له سیاف او مجددي سره اړیکي ساتلې- ده ټینګار کاوه څومره ژر چې کېدای شي

مسعود سیاف او مجددي ته پر کابل د حکمتیار د برید خبر ورکړ- پوښتنه یې وکړه د حکمتیار د برید پر وړاندې څه وکړم؟

ورته وویل شول: مخه یې ونیسه، له ملېشو او یوځې قطعاتو کار واخله.

حکمتیار د حمل پر ٢٦مه له داخله د شمشتو غونډې ته ویلي و: وروستی پېښې یوه ډرامه ده چې د جهاد دښمنانو را منځته کړې- د ده په وینا نجیب الله بېواکه دی- واک د کشتمند او کارمل له ملاتړو سره دی خو له دې وړاندې لکه دمخه مو وویل حکمتیار د شهید استاد احمدزي فاتحه کې د شمال له خوځښتونو ننګه وکړه- شهادت ورځپاڼې په ۴٦۴ ګڼه کې د حکمتیار د دغې وینا بشپړ متن خپور کړی- چې د ده په خبره شمال کې کوم قوتونه له مجاهدینو سره یو ځای شوي موږ یې ملاتړ کوو او په نورو برخو کې د دښمن وسله والو ځواکو ته وایو چې د شمال د پرمختیاوو تقلید وکړي...

د حکمتیار د هغې وینا له مخې: د شمال پرمختیاوې د تجزیې تحریک نه دی- دده په خبره زه ورونو ته ډاډ ورکوم چې دغه پرمختیاوې د قوم، ژبې او سمت پر بنسټ نه دي را منځته شوې- بلکې د دښمن ځواکونه د مجاهدینو تر څنګ درېدلي او په صریحو ټکو وایي چې منتخب اسلامي حکومت غواړي.

دلته حکمتیار صاحب یو وار بیا له اوبو دمخه ګاولې کښلې ځکه خو وروسته د دغو پرمختیاوو پر مخالفت ودرېد او د شمال پرمختیاوې یې د دښمن توطیه وګڼله.

ملګرو ملتونو د نوي دقیقو په بېړنۍ غونډه کې له ټولو ښکېلو اړخو د زغم غوښتنه وکړه- حکمتیار اعلان کړه که د ثور تر پنځمې کابل رژیم

مجاهدينو ته واک ونه سپاري نو مجاهدين به پر کابل برید وکړي، خو دا نه وه څرګنده کومو مجاهدينو ته؟

## خام باور:

پر سيوان باور خام وخوت- د ده الوتکه د شپې پر دوولسو بجو کابل هوايي ډګر کې کېناسته - هوايي ډګر د دوستم ملېشو واک کې و چې وار له مخه پنځلسو الوتنو کې راورل شوې وې، ملېشو سېوان ته له الوتکې د کوزېدو اجازه ورنه کړه. د شپې پر لسو بجو له نجيب الله سره اړيکي قطع شول - ډاکتر نجيب الله، شاپور احمدزی، اسحق توخی، جنرال جفسر له خپل دفتره د ملګرو ملتو ودانۍ ته ننوتل، د کابل ګرځبنديز شفر يې تر لاسه کړی و خو هوايي ډګر ته د ننوتو لپاره ځانګړی شفر ويشل شوی و، چې په عمومي شفر ځوک نه شوی ننوتی.

ډاکتر نجيب د شپې پر دوولس نيمو بجو د ملګرو ملتو دريو موټرو کې د هوايي ډګر پر لور حرکت وکړ.

د ملګرو ملتو يو مامور کاروي له يو بل کارکوونکي کويرک او د نجيب الله له دوو ساتونکيو سره يوه لنډکروزر کې تر مخ شول.

دويم موټر اوني چلاوه، ډګروال تاولن مخکې او نجيب الله له خپل ورور شاپور احمدزي سره وروستي سيټ کې ناست وو.

دريم ګاډی پېربيير چلاوه چې د ملګرو ملتو اسماني رنګه خولۍ يې پر سره وه، له څو پوستو د عمومي شفر په ويلو تېر شول، خو د هوايي ډګر لومړنۍ پوسته کې يې تم کړل، جنرال جفسر له موټره په کوزېدو له ملېشو سره خبره واروله - غالمغال پورته شو د ملېشو قوماندان رزاق

موټر درولي وو- پوښتنه يې وکړه چېرته ځئ؟ نجيب الله ورته وويل بهر ته.

رزاق وويل: ستاسې د رسمي سفر امر نه دی راغلی- ډاکټر نجيب وويل همدا اوس رسمي امر درکوم.

رزاق ځواب ورکړ: مهرباني وکړئ بېرته ستانه شئ- تاسې جمهور رئيس ياست- کله چې موږ ته رسمي خبر راکړل شي، موږ به لازم امنيتي تدابير ونيسو، هغسې چې د يوه جمهور رئيس له حيثيت سره برابر وي.

نجيب سم لاسي وګرځېد او بېرته د ملګرو ملتو پر دفتر ننووت، دلته يې له يعقوبي سره پر تليفون خبرې وکړې، جنرال يعقوبي ډاډ ورکړ خو لږ وروسته د يعقوبي د مرګ خبر خپور شو. نجيب الله له خپلې استعفا وړاندې څلور مرستيالان هاتف، سرابي، رفيع، محتاط ليرې کړي و- ملي شورا د محمود حبيبي په رياست دغه برطرفي ناقانونه وبللې.

ډاکټر نجيب الله وروستيو کې لکه تجريد شوی وي، د خبرو او مذاکراتو لپاره ورسره د اړيکو پر ځای د سياسي بيرو غړي پامور ګڼل کېدل... ډاکټر د لويې جرګې د راغوښتو پلان درلود، خو مخه يې ونه ليده - وروستيو کې يې چې ليکلي، استعفا مرکزي کمېټې ته ولېږله - غوښتل يې له راډيو تلويزيون خلکو ته وينا وکړي، خو دا چانس يې هم تر لاسه نکړای شو...

نيويارک کې د افغانستان د څېړنو مرکز مشر سيليوان هم کابل کې و، غوښتل يې له احمدشاه مسعود سره وګوري - له ده سره يو لنډ فارمول و چې ظاهرشاه له ځان سره کابل او نجيب الله روم ته بوځي.

بېنن سېوان د اپريل پر ۱۵مه د وطن ګوند له مشرانو سره چې واک

کې شامل وو وکتل - ده له کابله د نجیب الله د خوندي وتلو په غوښتنه ټینگار کاوه - د ده او سلېمان لایق تر منځ خبرې ترخې شوې.

- لایق: ... له بده بخته تاسې غوښتل له گوند او حکومت سره له سلا مشورې پرته نجیب الله بهر ته ولېږدوئ - ده هم له چا سره دا خبره نه وه شریکه کړې، په پټه او غلا یې غوښتل له هېواده وتښتي، بیا هم له بده بخته چې تاسې دغسې یوه تېښته کې له ده سره مرسته کوله. اوس ښايي نجیب الله خپل کور ته ولېږدول شي، موږ یې د خوندیتوب ضمانت کوو، تر هغې چې د ده لپاره په سلا یو ځای خوښ کړو... که دا ممکن نه وي، دی تاسی سره دفتر کې پاتې شي تر څو د ده په باره کې د ټولو په مشوره پرېکړه وشي، خو دمگړی د وتلو اجازه نه شي ورکول کېدی.

- سېوان: کابل کې د ډاکتر نجیب الله پاتې کېدل تاسې ته کومه گټه نه، بلکې د سولې په مخ کې خنډ را منځ ته کولای شي.

نجیب الله د ملگرو ملتو دفتر کې وویل: د خپلو خلکو محاکمې ته چمتو دی، خو په دې شرط چې د محاکمې میز ته دی او بل ته د وطن گوند دغه غړي ناست وي ...

سېوان ونشوی کړی ډاکتر نجیب الله وژغوري - په دې کې ستر خنډ د پرچم کودتايي فرکسیون و - سېوان درې کاله د کابل، اسلام اباد، تهران، واشنگټن په منډو وارول - داسې ښوول کېده چې شوروي له مجاهدینو او امریکا له ډاکتر نجیب الله سره وگوري - شېواردنادزې او جیمزبیکر د دغسې ناستې پر سر سلا شوي وو، د افغانستان ربړه کې ملگرو ملتو ناکامي څرگنده وه. بینن سېوان د ناکامې ډیپلوماسی بیه افغانانو ته خورا گرانه پرېوته، سېوان د ربړې په اواري کې په ناغېړی او

ناړامی تورن دی.

دی عراق کې ((تېل د خوړو بیه)) د ملګرو ملتو پروګرام کې پر بدو اخیستو پړ و - له کابله یې هم خولی له سوغاتونو ډکه وړه - وایي له کابله به د بینن سېوان د ستنېدو پر وخت د ډالرو بیه لوړه او د پیسو مارکېټ کې د ډالرو کاختي ګډه شوه...

## کابل کې د پاکستان شارژدافېر، سید فدا یونس:

د ملګرو ملتو دفتر ناسته ((میټېنګ)) کې لاندې کسان برخوال وو:

د هندوستان سفیر ښاغلی کمارنمیبا، د فرانسې شارژدافېر ښاغلی ژانګ برنا ډیک، د چین ښاغلی ژانګ، د اېټالیا ښاغلی پیرهنګی، د ایران ښاغلی ابراهیم طاهریان، د ښاغلي بېنین سېوان امریکایي سلاکار ښاغلی پیلېف کورون، د ترکیې ښاغلی ایکوت چترک، د پاکستان ښاغلی فدا یونس، د سېوان سیاسي سلاکار ښاغلی بوتسالي... ما ته وار دمخه ویل شوي وو، چې د انساني خواخوږۍ له امله ډاکټر نجیب الله ته د سیاسي پنا وړاندیز وکړم.

بېنین سېوان خوښي وښوده، مننه یې وکړه، خو هندوستاني سفیر سترګې واړولې.

ستونزه دا وه چې ډاکټر نجیب د ملګرو ملتونو له دفتر څرنګه ایستی او پاکستان ته اړولی شو؟

د ترکیې ښاغلی چترک د خپل بولټ پروف موټر وړاندیز وکړ چې ډاکټر نجیب پکې خوندي ایستلی شو.

- ډاکټر نجیب ښایي په کاروان کې ونه ایستل شي.

- زما موټر به ورسره نه ځي.
- ډاکتر نجيب به نه زموږ سفارت کې مېشتوو - نه د ملګرو ملتو کوم دفتر يا بل ځای کې، چې د اختطاف مخه يې نيول شوي وي.
- له ډاکتر نجيب او ملګرو سره به وسلې نشي لېږدېدلی.

د ماښام په اوو بجو پېنځه ځلوېښت دقيقو ښنين سېوان وويل اوس بايد داکتر نجيب د پاکستان له ورانديز خبر کړو.

ډاکتر ته څو ورځې وړاندې هند د سياسي پناه تېر ډبولی و چې اوس يې ترې مخ اړاوه. له ډاکتر نجيب سره جنرال توخی ناست و- زه، ښنين سېوان - ښاغلی نمبيا، طاهريان او بوتسالي د ډاکتر نجيب خونې ته ننوتو - دی مو مخې ته را ووت.

د هندوستان سفير له سلام وروسته ښرته ووت - د پاکستان له خوا د سياسي پناه وړانديز لومړی ښنين سېوان او بيا ما ياد کړ.

ډاکتر په احساساتي لهجه منله وکړه، په دې پسې يې په لنډو وويل: ده د ملګرو ملتو د پلان په منلو استعفا ورکړې - غوره ګڼي د ملګرو ملتو په ودانۍ کې پاتې وي. دلته ځان خوندي ګڼي.

اوس دا د ملګرو ملتو مسئوليت دی چې خونديتوب يې باوري کړي. د دغه خبرې په اورېدو ښنين سېوان او بوتسالي ووتل - زه او طاهريان ناست وو.

طاهريان ښايي د خواخوږۍ په څو تکو خوله پرانيسته چې ډاکتر په ترخه لهجه ورته وويل:

سفير صاحب طاهريان!

ايران تل د افغان قومو او مذهبونو ((سني شعيه)) اختلاف ته لمن وهلې او دوه مخې سياست يې لرلی، د ملګرو ملتونو د پلان په اړه يې د

تګی پالیسي غوره کړې - د اهل تشیع او تاجکو لپاره یې د زیات واک او ونډې چنو ته مخه ورکړې.

ښاغلی سفیر!

څو ورځې وړاندې چې ښاغلی موسوي کابل ته راغلی و، ستاسې پر وړاندې یې وویل: د ښنین سپوان نوملړ چې د ناپیلو افغانانو په اره یې چمتو کړي د امریکا او پاکستان په خوښه دی، موږ باید د امریکا-پاکستان پر خلاف بل نوملړ ولرو...

ښاغلی سفیر!

تاسې ته یاده ده چې ما ښاغلي موسوي ته په ډاګه کړه چې د ملګرو ملتونو له نوملړ سره کوم اختلاف نه لرم

پاکستان له ۱۳ کالو زموږ پر خلاف په جګړه بوخت دی خو دا وخت یې د افغانستان ربړې اواري کې په اخلاص ګام پورته کړی دی.

طاهریان وویل: همدا اوس له ایران سره اړیکه نیسي له دې سره له خونې ووت.

فضا ترینګلې وه - لږ وروسته چې د ډاکټر غوسه سره شوه ما پوښتنه وکړه؟

د خپلې پراخې تجربې په مټ افغانستان کې د سولې تینګښت څرنګه ګڼئ؟

ده له کتابچې یوه پاڼه را پرې کړه - لاندې کرښې او دایرې یې پرې تېرې کړې.

- *د پلازمېنې کابل شا وخوا دې د امن سیمه Peace zone را منځ ته کړی شي. چې پراخوالی یې ۳۰ - ۳۵ کیلومترو ته غځېدلی وي.*
- *د کابل شمال/ جنوب کې دې د ملګرو ملتو پوځ ځای پر ځای*

*شي.*

- *د مجاهدینو له قوماندانانو سره اړیکې ټینګ شي چې کومو سیمو کې مېشت دي هملته اوسي - له نږدې حکومتي ادارو سره دې مرسته پیل کړي.*
- *د مجاهدینو قوماندانانو په مرسته دې وسله ټوله یا وېپرل شي.*
- *لویه جرګه دې جوړه شي.*
- *که امنیت وي ټاکنې دې وشي.*
- *له دې لارې چې کوم حکومت راغی د ټولمنلي حکومت په توګه دې وپېژندل شي.*
- *د لوړو ټکو په پلې کېدا کې دې د زور او وسلې کارولو مخنیوی وشي.*

د ډاکټر د لاسي نخچې کاپي زما د افغانستان کتاب اتم ټوک کې چاپ شوې. د اپریل ۱۹۹۲پر اولسمه مې له ډاکټر نجیب سره یو ځل بیا د ملګرو ملتو ودانۍ کې ولیدل. بیا مې ورته د پاکستان له خوا د سیاسي پناه وړاندیز وکړ - ده په منته زیاته کړه: د ملګرو ملتو دفتر کې ځان خوندي ګڼي - که ووت سیاسي راتلونکې به یې خپله تیاره ګرځولې وي.

دی په راتلونکي سیاست کې خپل رول ته هیله من برېښېده.

ما در چه خیالم وفلک در چه خیال.

## وروستۍ هڅې:

بنين سيوان کابل کې د حمل پر ۲۸مه بيا يو ځل د رژيم له نويو څېرو سره اضطراري غونډه وکړه چې وکړی شي ډاکټر نجيب له کابله ورسره وباسي.

د دې لپاره سيوان د ثور پر لومړۍ نېټه مزارشريف ته ولاړ، خو دوستم يې دغه غوښتنه ونه منله.

ښايي ياده کړو چې د حمل پر ۱۵مه چې زه د پېښور فقير آباد کې د جمعيت فرهنگي دفتر ته ولاړم د مسعود او استاد رباني تصويرونو او فتحو شعارونو دفتر نيولی و- داسې ښکارېده کابل همدا اوس د دوی منگولو ته لوېدلی، قانع صاحب په مات زړه، نيولې څېره راته کړه کابل نيول شوی...

د جمعيت يوه ډله وار له مخه د هوا له لارې کابل ته رسېدلې وه، د مجددي زوی ډاکتر نجيب الله کابل کې له جنرال عظيمي نورالحق علومي، آصف دلاور سره ناست وو... پوښتنه داده، چې د پاکستان له خوښې پرته د هوا له لارې کابل ته دغه سفر شوني بلل کېدای شوای...؟

د حمل پر ۲۹مه واشنگټن اعلان کړه چې متحده ايالات افغانستان کې ځانگړې گټې او علاقه نه لري- چې سره جگړه پای ته رسېدلې او پخوانی شوروي اتحاد د فارس خليج په نقشه کې نظامي شتون نه لري.

د حمل پر ۳۱مه د تلوالې تازه دم ځواکونه د کابل جنوب ته وخوځېدل چې د حکمتيار د احتمالي بريد مخه ونيسي.

بنين سيوان د غويي پر دويمه چاريکار کې له احمدشاه مسعود سره

وکتل، چې که وتوانېږي له هېواده د ډاکتر نجیب الله ایستلو ته لاره پرانیزي- ده چې د نوبل د سولې جایزې خوب لیدلی و د نهیلی څپېړې خوړلې وې، نواز شریف هم د دې جایزې کاندید و.

د جنرالانو څلور کسیزه پلاوي چې له شاغلي لایق سره د مشرتابه ژمنه کړې وه عبدالرحیم هاتف خپل مشر اعلان کړ، هاتف اعلان کړه چې داسې قانوني مرجع نشته چې څوک دې دغسې یوه پوست او چوکۍ ته وټاکي.

احمدشاه مسعود په مخابروي اړیکه کې له حکمتیاره وغوښتل د کابل لپاره د جهادي مشرانو د توافق له مخې د واک لېږد ته چمتو شي- ده ونه شوی کولی حکمتیار پر کابل له برید را وګرځوي- په دې تکو چې دی هم اړ دی خان چمتو کړي چې له کابله دفاع وکړي.

ایران له احمدشاه مسعود او تلوالې په ننګه ودرېد، پاکستان پېښور کې پر تنظیمي توافق ټینګار کاوه خو د کابل لوبه یې له لاسه وتلې وه.

**دا چې څرېږي مخـــامخ درته په دار سرونه**
**په دې وطن کې بس همدغه وو د کار سرونه**

(درویش دراني)

*

# د ټولو غاړو بایللې جګړه

تنظیمونه په ناندریو بوخت دي. پاکستاني مقامات په منډو را منډو ستړي دي، د (ای ایس آی) مشر جنرال ناصر جاوېد د تنظیمو، نواز شریف او غلام اسحاق خان تر منځ د اتصال کړۍ توګه په حرکت کې دی، د پاکستان صدر اعظم ګورنر هاوس کې د وروستۍ فیصلې انتظار کوي. د امریکا سفیر او د مقاومت لپاره یې ځانګړی استازی پیټر تامسن هم وضعې او حالاتو ته څیر دی، ددغه هېواد د پوځ لوی درستیز (جنرال جوزوف پي هاور)) پاکستان کې د خپل فعالیت تناوونه غځولې دي.

کابل کې ایتلاف هر څهٔ په بل مخ اړولي د بینن سېوان د میاشتو خواري او منډې ترړې یې په سیند لاهو کړې. د ناپېیلو شخصیتونو د غوراوي په اړه د تنظیمي مشرانو په اوږدو بحثونو او جنجالونو پورې په کرس کرس خاندي، سېوان د استاد رباني په وړاندې په ګونډو دی، چې د ټولو له خوا منل شوی لیست تسلیم کړي خو هغه د ایتلاف په پچه، ختلی د ډیلي په نندارہ بوخت دی کله چې له غونډې د یوه ضروري تلیفون لپاره ووت په راګرځېدو یې په هر څه چلیپا راکښله. نور هغه پخوانی استاد رباني نه و چې له هر څه سره یې په جینګو داړو د موافقت سر خوځاوه.

له اسلام آباد یې ځان د کابل ارګ کې لیده په ذهن کې یې دغه تصور منګولې ښخې کړې وې چې تلویزیون، راډیو، اخبارونه او د نړۍ دله

بیزې رسنۍ یې د اسلامي افغانستان ولسمشر یادوي، ده په دولتي ادارو کې خپل لوی لوی عکسونه لیدل خو په دومره توپیر چې دا ورته هغسې ښکاره نه شول لکه د پېښور دفترونو کې د معصومو کتلو تصویرونه، بلکې دا یې د یوه مقتدر واکمن عکسونه ګڼل.

څکه خو یې د غوندې خونې ته په ننوتو د پادشاهي له روحیې او اکت سره وویل: خبره خلاصه ده نور په دا ډول بحثو وخت مه ضایع کوئ. نور هغه د جینګو دارو استاد نه و چې هره ترخه خبره دې په موسکا تېره کړي، په عمر خوړلی له وجوده کمزوری او له څېرې معصوم استاد رباني ته خان داسې ښکارېده لکه پاکستان کې د ځایېدو نه اوسي- سبوان هک پک ودرېد، حیران پاتې شو چې اخر دغه یوه لحظه کې څه وشول کوښښ یې وکړ استاد رباني ته قناعت ورکړي خو د اقتدار حرص د قانع کېدو وي؟

سبوان دا څو ورځې خوشحاله و چې له شپږو میاشتو وروسته یې ایله د بې طرفو کسانو په معرفي کولو اووه لیډران قانع کړي وو، ددغو کسانو لیست د تکمیل په وروستۍ مرحله کې و او له دغو اشخاصو څینې پاکستان ته رسېدلي وو.

د ناپېیلو شخصیتونو د امنیت او خوندیتوب لپاره ملګرو ملتو پر قوماندان عبدالحق هوکړه کړې وه- ده په دې اړه خپل امنیتي پلان بشپړ کړی و.

له مسعود، رباني نه سبوان د خطر احساس نه کاوه څکه هغه لا پخوا د ملګرو ملتونو له طرحې سره په سلو کې دوه سوه خپل توافق ښودلی و، دده سترګه له حکمتیار سوځېده چې دی یې ددغو اشخاصو په انتخاب او د لیست په ورکولو کې خوروڵی او ښه ستړی کړی و، دی

بېچاره غافلگیر نه بلکې اغفال شوی و، په یوه عجیبه خوشباوری کې د اسلام آباد، کابل او تهران په منډو ترړو بوخت و، خو هلته له شمال نه دده په هلو ځلو پسې یو توند شمال خپلې سرې برېوکی را الوزولې وې.

ویل کیږي سېوان په ډېر عجز له استاد رباني هیله کوله پخپل ملت زړه وسوځوي- د ناپېیلو کسانو لیست وروسپاري- دی به له دغو اشخاصو سره سبا کابل ته ولاړ شي او له ډاکتر نجیب به واک تسلیم کړي.

ښايي ووایو د اپریل له ۱۸مې وړاندې تنظیمو د بېطرفه کسانو پر لست توافق کړی و، سېوان کابل ته د تلو پروګرام درلود، چې له ډاکتر نجیب بېطرفه کسانو ته د واک لېږد بشپړ کړي.

نجیب الله د سېوان د طرحې په مټ ناپېیلو کسانو ته واک سپارلو شېبې شمېرلې، کورنی یې وار دمخه ډیلي ته لېږدولې او نژدې اندیوالانو یې هم هند کې د مېشتېدنې لار جوړه کړې وه.

ډاکتر نجیب هڅه کوله واک یوې ډلې یا ګروپ ته د پرېښودو پرځای یوې متفقې او متحدې ادارې ته وسپارې، دې ته ورته غوښتنه له ګردېز مولوي حقاني د رسنیو له لارې څرګنده کړه، ده وویل: کابل رژیم ښايي د ائتلاف په بڼه نه، بلکې د مجاهدینو مجموع ته واک وسپاري، نه یو تنظیم - ډلې او جریان ته، جهادي مشران باید ډېر ژر د صادقانه تفاهم په نتیجه کې پر یوه واحده اداره توافق وکړي او په کابل کې د واک لېږد ته چمتو شي.

## د ډاکټر نجیب وړاندوینه:

ډاکټر نجیب الله له دې وړاندې پخواني پاچا ته هم د واک سپارلو وړاندیز کړی و، چې پاچا نه و منلی. ده له پاچا د دغسې وړاندیز په نه منلو ولسمل ته په تلیفانه گیله کړې وه، ولسمل له پاچا د سپیناوي په غوښتلو دغه جریان مجاهد ولس کې خپور کړ، پاچا له ولسمل خوابدي وښوده، ولسمل ورته کړه، ما خپله غاړه خلاصه کړه، پاچا وویل، تا خپله خلاصه، خو زما بنده کړه...

ډاکټر نجیب الله له وړاندې په ټوله مانا د واک لېږد ته چمتو و، په همدې موخه یې پخواني پاچا سره اړیکه ونیوه، چې له بده بخته پاچا ونه منله ... له افغان سیاستوالو او مخورو سره یې د پوهاوي هڅه وکړه، خو دلته یې هم هغسې څواب تر لاسه نکړی شو چې د واک بریالی لېږد عملي کړای شي. له پخواني پاچا په نهېلیتوب یې لویدیځ میشتو سیاستوالو او مخورو ته مخه کړه، د رئیس... په مشرۍ یو پلاوی له ډاکټر سره د خبرو په موخه هند ته ولاړ ... ډاکټر د واک لېږد ته خپل چمتوالی وښود، خو پلاوي د داسې چا (...) وړاندیز وکړ چې د ډاکټر په وینا دغه جامې پرې خورا لویې او اوږدې ختلې...

د ۱۹۸۹ د جون په لومړیو کې ډاکټر نجیب الله له نیو یارک (د ملگرو ملتو عمومي غونډه کې له گډون) واشنگټن کې استاد پژواک ته تلیفون وکړ... لومړی خبرې د شاه محمد دوست وې...

دوست: محترم پژواک صاحب سره خبرې کوم...؟

پژواک: بلې...

دوست: محترم نجیب الله غواړي تاسې سره خبرې وکړې.

پژواک: کوم نجیب...؟

دوست: د افغانستان جمهور رئیس

ډاکتر نجیب: کاکاجانه سلام د جمهور ئیس په توګه نه د وراره په توګه درسره غږېږم، روغتیا مو څنګه ده...؟

پژواک: ښه یم.

نجیب: ستاسې له نظریاتو خبر یم، شعرونه مو وارسېږي، ستاسې راتلو ته سترګې پر لار یوو.

پژواک: حقیقي وراره نعمت الله سره مې د خپلو اصولو له مخې ونه لیدل...

نجیب: مور هېواد ته ښه نیت درلود او لرو یې.

پژواک: ممکن خو په عمل کې...

نجیب: هیله ده زما عرض ومنئ.

پژواک: د منلو نه دي.

له دغه یادونې زما موخه دا ده چې داوري په اړه ډاکتر نجیب الله خپلو هیلو ته د رژېدا لوری ونشواى موندای... د زړونو مالک خدای دی، خو د ډاکتر له خوا د سولې غږ ته هیچا د زړو دروازې ببرته نشوا کړای...

## د کودتا اعتراف:

د مسعود ځواکونو د اپریل پر اتمه ګلبهار او پر نهمه بګرام هوایي ډګر لاندې کړ.

د حمل پر شلمه د شورای نظار او رشید دوستم ځواکونو د مخکنې

جوړجاړي له مخې ګډ مطبوعاتي کنفرانس کې په ډاګه کړه، چې نجیب الله باید سمدستي له واکه لاس واخلي - دوستم وویل موږ، حزب وحدت او نظار شورا په دې اړه توافق ته رسېدلي یوو...

د دوستم په خبره... ما از سابق نقشیه میکشدیم که حکومت کمونستها در افغانستان صلح در وجود آنها برقرار نمیشود... ما بخاطر حکومت اسلامی تصمیم خود را گرفته بودیم... تا که یک زور و یک قوت نباشه راه حل ممکن نیست... همان بود که شصت هزار نفر در فرقه بسیج و در جاهای مختلف جابجا شد... به همکاری غفار پهلوان، رسول پهلوان، سید حسام الدین علیه دولت ایستادگی بکنیم، آمر صاحب احمد شاه مسعود اطمینان داد گفت ما پهلوی شما هستیم... همان بود که طرفداران نجیب را درستگیر و از بین بردیم... گفتم باید کابل را فتح کنیم... همان بود که ما را بصفت رئیس شورای نظامی مقرر کرد...

احمد شاه مسعود «المسلمون» ته وایي:... همه بحالت نومیدی بوده، در عین زمان دشمنان اسلام دست بکار بودند حکومت غیر اسلامی بوجود آورده...

ما از تحرکات ملل متحد و بینن سیوان آگاهی داشتیم، در حالیکه همه به طرح نماینده ملل متحد چشم دوخته بود و طرح حکومت بیطرف را تنظیم ها بذیرفته بود، ما پلان استقرار حکومت اسلامی مجاهدین را بموفقیت عملی نموده، حکومت اسلامی مجاهدین بمیان آوردیم...»

دغه څرګندوني کابل کې د کودتا او ملګرو ملتو د سولې پلان د ناکامولو څرګند اعتراف دی، له بده بدبخته چې ملګرو ملتو کله هم

ایتلاف ته د پرې او ملامتۍ ګوته ونه نیوه...

نجیب الله لا استعفا نه وه ورکړې، چې د دوستم ملېشو د کابل هوايي ډګر او ستراتېژیک موقعیتونه نیولي و، په دې توګه د حمل له ۲۴ مې وړاندې کابل د ائتلاف منګولو ته لوېدلی و.

استاد رباني چې تر دې وخته له هېڅ شي سره پرېکنده برخورد نه ورکړی، جدي او قاطع بڼه ونیوله، له دې مخکې ده نه د ظاهر شاه د راتلو د ګرمو اوازو پر وړاندې د څرګند مخالفت کوم دریځ غوره کړی و او نه هم د بېطرفه او دریېم ګړي حکومت په هکله، همدا لامل و، چې ده هم په اخوانیانو او د چا خبره بېخ نړاندو او افراطیونو کې خان شمېرلای شو او هم یې له مینځلارو سره سر خوځاوه، په دې توګه یې له دوارو سره په ګوزاره او ملګریتوب کې څه ستونزې نه لرلې، له همدې خایه وه، چې ځینو کتونکو او خبریالانو ماهر سیاستمدار یاداوه او ځینو بیا له ارادې او قاطعیت بې برخې محتاط مشر.

ده په هر لوري کې خانته د قدم اخیستو مخه پرې ایښې وه، له امریکا سره یې د خپل سفر پر وخت د اړیکو له امله لار تېره کړې وه، له ظاهر شاه سره یې اړیکې د ښاغلي سیرت په مت پرانیستې ساتلې، په مجددي خو یې دا احسان و، چې جبهه نجات ملي دده په کوښښونو تاسیس شوې، له اخوانیانو سره یې په مصر کې د تحصیل له وخته روابط وو، پیر صاحب او محمدي یې هم په خپله ساحرانه موسکا داسې داډه کړي وو، چې تولو ته بې ازاره مرغۍ ښکارېده.

دغه پالیسي یو دوه واره ده ته څه ستونزې هم راولاړې کړې، یو خل هغه وخت (۱۳٦۵ لمریز) چې پر ایراني حاجیانو سعودي پولیسو ګولۍ وچلولې او په لسګونو یې ووژل په دې توګه د سعودي او ایران مناسبات

خراب شول، بل دخليج جگړې پرمهال.

په سعودي کې د ايراني حاجيانو د وژنې په هکله ده سعودي او ايران دواړو ته د خواخوږۍ او د دوی د دريځونو د تائيد پيغامونه لېږلي وو، خو سعودي د تلګرام متن په عکاظ او ايران په اسلامي جمهوري ورځپانه کې خپاره کړل، په دې توګه خبره رسوايي ته وخته او شهادت اوونيزې بيا دواړه متنه په خپله يوه ګڼه کې د ټولو مخې ته کېښودل.

خليج جګړه کې څنګه چې د پاکستان جماعت اسلامي د امريکې پر ضد موقف غوره کړی و، څکه خو يې د اخواني ډلو په ګډون لاهور کې يوه غونډه جوړه کړه، په دې کې يې له افغاني ډلو حزب، اتحاد او جمعيت ته هم بلنه ورکړې وه. حزب او اتحاد خو په خپل امريکي ضد موقف ټينګ و، څکه خو يې غونډه کې پراخه برخه واخيسته، خو استاد رباني حيران و، که غونډه کې برخه اخلي، د امريکا سعودي پر ضد حرکت دی او که يې نه اخلي، په اخواني حلقو او جماعت اسلامي کې ميدان حکمتيار، سياف ورڅخه وړی.

له همدې ځايه و، چې په نه زړه يې، غونډه کې ګډون وکړ، تصويب شوې قطعنامه يې لاسليک او مطبوعاتو خپره کړه، خو د سعودي او کويت واکمنو په نامه يې خپل تلګرام کې د عراق د موقف او سياست په کلکه غندلی او پر عراق د غربي قواوو د حملې ملاتړ کړی و، چې مطبوعاتو ته په راوتو يې يوه بله رسوايي جوړه کړه.

په همدغو شپو ورځو کې چې هېواد ګام په ګام د يوې خونړۍ فاجعې خواته نژدې کېده، تنظيمي مشرانو د پاچاهۍ، صدارت او وزارت خوبونه ليدل، ذهن تصور، او سوچ يې د کابل په ارګ کې د ګلخانې خيالي ننداره کوله، د دلکشا په تصور کې به يې زړونه په ټوپو شول او

دغه وړ به یې د اورېدلو کیسو او خبرو له امله د ذهن په پرده د مور سرې غالۍ تېرې شوې، بې اختیاره به یې خولو اوبه وکړې او د تصور په همدغه خوند کې به هر یو ځانته جلا پادشاهي صدارت او وزارت جوړ کړی و، دوی به همدا یوه خبره تکراروله، چې مجاهدینو روس ته ماتې ورکړه، کمونېزم یې له مینځه یووړ، د برلین دېوال یې ونړاوه، د نړۍ یو وحشي ښکېلاکي ځواک یې په ګونډو کړ، ځکه خو یې حکومت خپل حق ګڼه... له دې ناخبره چې خرکاری هنر داره سبق نیست که پر پر بخوانی...



دا بېخودي ده که هوس دی که عشق انتها
ګوره ته خپل قاتل ته هم وایې جانان زړګیه
(سایل)

# د څمکنیو یتیم خانې ناکامه لوبه

د ۱۳۷۱ د ثور پر ٦مه استاد سیاف سهار وختي د خپلو بېګانیو خوبونو په تعبیر پسې راوتلي و، په هغو خوبونو پسې چې د ملت د تباهی او بربادۍ تصویر یې په تعبیرونو کې پروت و. استاد سیاف په څمکنیو کې هغه یتیم خانې ته ځان ورساوه، چې نن یې په کې د افغان مظلوم ملت د برخلیک تاکلو یو خطرناک پیل او انجام سره غوټه کاوه، په دغه ورځ د افغان مجاهد ملت سرنوشت د څمکنیو په یتیم خانه کې تاکل کېده...؟

افغان ملت په رښتیا هم یتیم و، داسې یتیم چې تر ننه د یتیمۍ څپېړې پرمخ خوري، ځکه خو باید د دغه یتیم ملت سرنوشت هم په یتیم خانه کې لکه د ظالمو او وږو سترګیو تربورانو په مینځ کې د یوه بې اسرې یتیم د مال د تقسیم په څېر په بیره او د حرص له عینکو وېشل

شوی وای.

استاد سیاف په خپل ځانګړي مهارت یوه لیکلې پاڼه هر لیډر ته چې په بېلابېلو کوټو کې کېنول شوي وو، په حق جانب اکټ له دې ډاډ سره وړاندې کوله، چې له تاسې پرته نورو ټولو رهبرانو منلې ده، هر یاغلي به فکر وکړ، چې نورو رهبرانو منلې، نو له ده به هم د مخالفت او انتقاد جرئت سلب شو، که به یې زړه وکه نه، د قلم په څو واره خوځولو به یې د یوه مجاهد ملت په ټولو قربانیو او عظمتونو چلیپا راکښله. له دې ناخبره چې په دغه څو واره قلم کشولو د یوه ملت، یوه مجاهد او قهرمان ملت له قربانیو او وینو سره د څومره ستري جفا او ناځوانی پاڼه اړول کېږي.

په لږ وخت کې دا هرڅه پای ته ورسېدل او په څو دقیقو کې یې د افغان مجاهد ولس سرنوشت او د سر په قیمت ګټلی حیثیت او عظمت په خپلو کې د وزارتونو صدارت او ریاست پر سر داسې سره تقسیم کړ، چې د پلار میراث او جایداد به هم څوک داسې په اسانه په خپلو کې ونشي وېشلی، په داسې عباراتو چې د یو جریب پټي قواله به هم څوک دا دول ونه لیکي.

د پېښور د لوزنامې په نامه داسې څه لاسلیک شول، چې هیڅوک په دې پوه نه شول، څنګه په څو ساعتو کې دغسې کار چې څوارلس کاله ناشونی ګڼل کېده، ترسره شوه...؟

په دغه پرېکړه کې مجددي د دوو میاشتو لپاره د دولت د ممثل په توګه له (۵۱) کسیزه هیئت سره موظف شوی، چې له رژیم واک تر لاسه کړي، خو د ممثل مفهوم او تعبیر نه و څرګند شوی، چې دا ممثل به څه کوي؟

د ممثل له دوو میاشتو تېرېدو وروسته به د ۴ میاشتو لپاره استاد رباني د اسلامي موقت دولت رئیس او د رهبري شورا مشر وي، دی به هلته خپل کار رسماً شروع کوي، چې د قدرت د انتقال دوه میاشتې پوره شوې وي، خو دا تعین به یوه ورځ هم نه اوردېږي.

که څه هم د مجددي د دوو میاشتو په اړه لیکل شوي، چې دغه هیئت به له دغه مودې وروسته د عبوري دولت تر اړخ د اسلامي موقتې شورا په حیث پاتې او ریاست به یې د مجددي پر غاړه وي، د دې شورا موده به هم څلور میاشتې وي، خو دا معلومه نه شوه، چې په دغه دوو میاشتو کې چې ملت په یوه مطلقه خلا کې واقع او کوم قانوني حکومت نه لري، دا دوې میاشتې به دولت او حکومت څوک چلوي او څنګه به یې چلوي، د فیصلې له عبارته خو دا معلومېږي، چې په دې وخت کې به اقتدار له یوې خوا سره هم نه وي او هرڅه به راکد پاتې وي، د قیادي او جهادي شورا په نامه داسې څه رامینځته شول، چې بیا یې هم په تعبیر، مفهوم، صلاحیت او مسوولیت څوک پوه نه شول.

د استاد رباني څلور میاشتنی حکومت چې په پرېکړه کې د عبوري دورې په نامه یاد شوی، د هغې له پای ته رسېدو د بل عبوري حکومت معنا څه دول ګڼل کېدای شي؟ د عامو انتخاباتو - او حل او عقد په نامه کشالې خو له هماغه وخته د داسې یوې سطحي فیصلې له امله رامینځته شوې ربړې وګرځېدې، چې غمیزه یې غځولې ساتله...

د دولت او حکومت ترمینځ توپیر او ددې مفهوم او معنا هم ددغې پرېکړې له مخې د خپلو قانوني او حقوقي اړخونو له پلوه له واحد تعبیر او تفسیر بې برخې ده، بله دا چې ډاکټر نجیب خو له دې مخکې استعفی ورکړې وه، نو بیا د کابل له واکمنانو د قدرت انتقال څه معنا

لري؟ همدارنګه د دوه میاشتنۍ مودې لپاره هیڅ دول عنوان هم نه شي موندل کېدی، چې دا موده په څه نامه یاده شي؟

په فیصله کې د صدارت او وزارتونو وېش هم دا ډول شوی، چې وزارتونه په تنظیمو وېشل شوي، په دې دول چې صدارت حزب ته ورکړ شو، د صدارت معاونیت او خارجه وزارت محاذ ملي اسلامي ته، او... پرېکړه د استاد سیاف په ابتکار دده په قلم لیکل شوې او منظوره کړې شوه، سبا یې چې د شنبې ورځ وه، د پېښور په ګورنر هاوس کې د پاکستان صدراعظم نواز شریف او د سعودي عربستان د استخباراتو وزیر امیر ترکي دا پرېکړه د خپل تائید په څرګندولو په زرونو کې توشېح او له استاد سیاف یې ددغه سترې کارنامې له امله مننه وکړه، په دې توګه د جهاد اهدافو او د ملت قربانیو ته د درناوي لپو د افغان مجاهد ولس د هیلو مخونه تک شنه کړل.

په پرېکړه کې باید د جمعیت امتیاز جوت وي، دوه حساس پوستونه، جمهوري ریاست او دفاع وزارت، که نه نو بیا بلې هرې پرېکړې هیڅ ډول اجرائیوي او قانوني ضمانت او حیثیت نه شوی غوره کولی، حتما باید همداسې شوي وای، ځکه د شمال ائتلاف د مسعود په تکیه د کابل په پوله د اقتدار مخه پرانیستې وه.

جمعیت ټینګار کاوه، چې دفاع وزارت به ځکه له مسعود سره وي، چې دده په مټ د ډاکټر نجیب د پرځولو لپاره یو ستر پوځي قوت راولاړ شوی او د هېواد جمهور رئیس ځکه باید استاد رباني وي، چې دغه ائتلاف د جمعیت په چوکات کې دده د سیاسي رهبرۍ او بصیرت له کبله بنه نیولې او د دغو اوو مشرانو کابل ته په اصطلاح فاتحانه داخلېدو چانس او زمینه یې برابره کړې ده...؟

د مجددي په مشرۍ د۵۱ کسيزه جهادي شورا په ټاکل کېدو، ويتېيل شوه، چې احمد شاه مسعود به له همدې نېټې دفاع وزير او استاد رباني جمهور رييس وي.

لنډه دا چې قدرت بايد دا دول تقسيم شوی وی، چې دفاع وزارت د مسعود او جمهوري رياست د رباني وي، نور نو دی د پېښور رهبران سره جوړ شي، چې څنگه يې تقسيموي اختيار لري.

حکمتيار چې لوگر کې و، خپل غير مسلح افراد کابل ته ننيستلي او هلته يې د خلق فرکېسيون په همکارۍ ځينې تاسيسات تر خپل کنترول لاندې راوستلي و.

په پېښور کې جماعت اسلامي او قاضي حسين احمد پوره ترتيبات نيولي وو، چې د ثور د پينځمې نېټې پر ماښام به له کابل راديو د حکمتيار وينا په خپرېدو د کابل فتحې جشن لمانځل کېږي، په دې اره پېښور کې گڼ پوسترونه لگېدلي وو، له بلې خوا تلوالې خپل تازه دم ځواکونه د کابل پر لور مارش کړل، د ثور پر پينځمه کابل کې د حزب اسلامي او نظار شورا دلې ښکر په ښکر شوې.

د غويي پر ۵مه له يوې خوا د حزب اسلامي قواوې ښار ته په ننوتو د کورنيو چارو وزارت د ارگ يوه برخه او د ښار ځينې ناحيې او سيمې ونيولې، له بلې خوا د رشيد دوستم ځواکونه چې له دې مخکې په هوايي ډگر، راډيو تلوېزيون او ځينو نورو سيمو کې ځای پر ځای شوې وې، د هوا له لارې د نورو تازه دمو ځواکونو په ور استولو نوي سنگرونه ونيول، که څه هم دا ورځ له اخ و ډب پرته تېره شوه، خو... دا چوپتيا له توپان مخکې چوپتيا ته ورته وه.

د اپريل پر ۲۵ مه چې د حزب مجاهدين کابل ته ننوتي وو، حکمتيار

د دغې ورځې پر ماښام د مخابرې له لارې مطبوعاتي کنفرانس کې ددغې ورځې مبارکي ورکړه، ده کابل رژيم نسکور شوی وباله، د پېښور شورا په اړه يې وويل: چې نور هغې ته ضرورت نه شته.

د حزب وحدت ډلې هم د ښار دننه ګڼ تاسيسات ونيول او له شمال ځخه په وار، وار د دوستم ملېشې د هوا له لارې کابل ته راورل شوې.

پر سبا يې ائتلافي ځواکونو د حزب تر کنټرول لاندې تاسيساتو حمله وکړه، په دې توګه له يوې خونړۍ جګړې وروسته د حکمتيار قوتونه په شا شول.

په دې خونړۍ جګړه کې د کابل بالاحصار شاوخوا، د شاشهيد او سيد نور محمد شاه مېنې کورونو او ودانيو ته زښت زيان ورسېد، څرنګه چې په دغه استقامت د حکمتيار مجاهدينو موقعيت نيولی و، د جګړې له تلفاتو پرته د حکمتيار د قوتونو له په شا تګ وروسته ملېشې، د دغه سيمې کورونه چور او لوټ کړل او د خلکو نقد او جنس يې په ډېره بېرحمۍ ولوټل، همدارنګه د ګذرګاه په استقامت ډېرې کورونه له مېنځه ولاړل، دلته هم د ګلم جم ملېشو د لوټ تالان له امله د هېڅا شتمني خوندي پاتې نه شوه، حتی د خلکو پر عزت او ناموس هم د دغو ملېشو له خوا تېری وشو.

مسعود له حکمتيار سره د ناکامو مخابروي اړيکو وروسته د اپريل پر ۲٦مه د ملېشو په مټ پر چهلستون، بريد وکړ، له شيندند د حزب په پلوۍ پورته شويو الوتکو، بګرام او د مزار دهدادی بمبار کړل.

د چهلستون تاريخي ماڼۍ غالۍ او نور قيمتي سامان او وسايل دملېشو له خوا چور او لوټ شول، له دغه تالان وروسته يې د خپلو جنايتونو د پټولو په خاطر قصر ته اور واچاوه.

لکه مخکې مو چې وویل، د ثور پر پینځمه پېښور کې جماعت اسلامي دحزب له خوا د کابل د فتحې په رابطه د جشن پروګرام درلود، داعلان له مخې د ثور د پینځمې نېټې پر پینځو بجو به حکمتیار له کابل راډیو خبرې کوي، خو د شمال ائتلاف توپاني شمال دا هرڅه په مخه واخیستل او دا دول پروګرامونه او پلانونه یې له یوې مخې شنډ کړل.

د دولت د ممثل په توګه د مجددي انتخاب تش په نامه او یو داسې کار و، چې د نړۍ هېڅ هېواد او سیستم کې یې سابقه نه لرله، د دغه ضعیف فورمول پر اساس اداره ځکه فلج او ناکامه وه، چې له یوې خوا د قدرت اصلي مرکز د مسعود، رباني، دوستم، پرچم په لاس کې بیا هم تقسیم شوی پاتې کېده او له بلې خوا د دغه ناقص فورمول په اساس مینځته راغلي ارګان کې هم داسې موثر قوت او جهت نه و، چې حالاتو ته په یوه نېغ سمت د حرکت مخه پرانېزي.

د مجددي خوله د تېر عبوري حکومت په خوند خوږه وه، ده به چې سترګې پټې کړې، هماغه کونجاړه یې په خوب لیده... لکه د پېښور عبوري حکومت دا به یې هم تر دوو کلونو غځېږي او نوم به یې په تاریخ کې د اسلامي افغانستان د لومړني ولسمشر په توګه یاد پاتې شي.

خو دا ځل لکه بخت ورسره بله نخره را اخیستې وه، پر کومه ورځ چې دی له پېښور کابل ته روانېده، حکمتیار ګواښ وکړ، چې د ده الوتکه به وویشتل شي، د پېښور په هوایي ډګر کې له ده سره تلونکي پلاوی تلولی وو، هر یوه په ویښه د وزارت خوبونه لیدل، کرۍ ورځ یې کابل ته د تلو او وزارتونو په خیال پلو کې تېره کړه، خو مجددي د هوا له لارې سفر ته زړه ټینګ نه شو کړی.

په دې توګه یې د خپلو ملګرو د کرۍ ورځې د وزارتونو د خیال پلو

مزه په خوله کې وچه کړه.

په کابل کې د ډلو تېلو له ښکر په ښکر کېدا مخکې حکمتيار پر ښار د ورختلو او دګلم جم ملېشو د وتلو ګوتخندنه او غوښنه کوله، خو د تکر د مخنيوي په موخه د قاضي حسين احمد په هڅو د مسعود او حکمتيار ترمنځ مخابروي اړيکه د اپريل پر ۲۴مه ټينګه شوه، د خبرو پيل دوستانه و، چې ستوغې به شوې قاضي حسين احمد به په مينځ کې ورولوېد، مسعود غوښتل حکمتيار پېښور ته ولاړ شي، د عبوري حکومت جوړښت او شورا په تشکيل کې له مشرانو سره برخه واخلي، مسعود ووېل: پر کابل د برید اړتیا نه شته، د برید ګواښ دې واخله، که نه همدا اوس اقدام کوم، حکمتيار ووېل: کابل بايد له ملېشو وژغورل شي، دده په وينا دی به له ملېشو د کابل دفاع وکړي، د لوټ تالان مخه به ونيسي، مسعود هم د کابل د دفاع خبره وکړه، چې خپل چمتووالی نيسي، حکمتيار پوښتنه وکړه، د څه چمتووالی...؟ مسعود ووېل: دفاع مرد و زن کابل... مسعود دا هم ووېل، له ملېشو او جنرالانو سره يې ملګرتيا، له خپلو مشرانو زده کړې، دده اشاره جنرال تني ته وه...

## د ارګ پر لور - د مرګ پر لار:

د مجددي د زړه په درزا کې له يوې خوا د کابل تخت پستو تالونو هنګامه جوړه کړې وه، له بلې خوا د حکمتيار د ګواښ له امله يې مخې ته د مرګ وېروونکې هيولا درېدلې وه، مجددي او ورسره د سفر ملګرو يې چې د ورځې په شان دغه شپه هم د اقتدار په مينه کې رڼه تېره کړه، سبا يې د ځمکې له لارې د کابل ارګ ته د تخت په هوس غېږه خلاصه

کره، ارگ یا مرگ، تخت یا تخته...؟

مجددي له پېښور د موټرو په یوه اوږده کتار کې په مزه مزه د سفر لار لنډوله، د اپریل پر ۲۷ مه د مجددي د سپرلۍ موټر د پاکستاني پولیسو د ځانګړي ګارډ له خوا بدرګه کېده، د ISI مشر جنرال جاوېد ناصر د تورخم په څنځیر ورته مخه ښه وویله، ثمرخېلو کې یې حاجي عبدالقدیر سوړ هرکلی وکړ، همدلته دده سترګې د پاچاهۍ یوې تتې خلا وبرېښولې او په همدغه تته خلا کې یې د کابل ارګ هر ګوټ او د اقتدار ټول حلاوتونه او ګردې ښکلاوې وځکلې.

عبدالوکیل، عبد الواحد سرابي، جنرال نبي عظیمي او د پرچم دلې یو شمېر غړو څرخې پله کې د مجددي هر کلي ته ولاړ وو، په دې توګه د قدرت د انتقال د ډارمې د لومړنۍ پردې تمثیل ترسره شو.

مجددي د ثور پر ۸مه د کابل له رژیم ظاهراً واک ترلاسه کړ، ده له ځان سره لوړه پورته کړه، واک ښایي هاتف لېږدولی وی، خو توله پروسه کې د جنرال عظیمي رول جوت و.

د اپریل پر ۲۸مه له غرمې وروسته عبدالحمید محتاط د واک لېږد ته د نجیب الله پر ضد د کودتا مشهورې خبرې راتولې کړې، وېرې، اضطراب او وحشت پر خبرو اتڼ گډ کړی و، خو محتاط داده و، ده هر يوه ته تسلا ورکوله، دوی ښايي مجددي ته د ښه راغلاست او د اسلام مجاهدينو ته د واک د انتقال په اړه غور او پاسته تکي راټول کړي وي.

د بهرنيو چارو وزارت کې د واک د لېږد د درامې وروستۍ صحنه ده، عبدالحمید محتاط د درامې د دغه توک د پروډيوسر په توگه د پردې شاته ناست و ، مجددي دتوپکو په سيورى کې د ستورې مانۍ تالار ته ننوت، په تاکلې چوکۍ کېناست، يوه اړخ ته يې عبدالواحد سرابي، بل ته فضل حق خالقيار...

لومړی وينا د سرابي وه، بيا خالقيار، خليل ابوی، محمود حبيبي د اسلام مجاهدينو برياليتوب او ښاغلي مجددي د واکمنۍ مبارکی وراندې کړې، دوی حضرت مجددي د وتلي پروفيسور، اسلامي سکالر، د حق لاروی ستر مجاهد، روحاني لارښود... په تکو او القابو ياد کړ، وينا د اسلامي نظام د ټينگښت، د مجاهدينو په بري او د حضرت صاحب د شخصيت، ژوند، مبارزې د درنښت په څلاينه راتوله وه.

مجددی د احساساتو په توپاني څپو کې خپله وينا پيل کړه، کله فارسي، کله ماته گوډه کړکيچو پښتو او کله هم انگريزي، عربي، پر پنځو بجو درامه پای ته ورسېده.

په دې توگه د رامينځته شوې حکومت پوځي طاقت د دوستم او سياسي د ببرک وگرځول شو. د ببرک پرچم د دوستم له جنگي قوت او د مسعود او جمعيت له جهادي صبغې د گټې اخيستلو لار اواره کړه.

## خاطره:

غلام سرور اخونزاده ظاهراً دریور خو دننه عالم دی، هندوستان کې یې له دیوبند مدرسې د فضیلت دستار تړلی، خو له ملایی زړه توری دی، ژوند یې د موټر په ارابو چلاوه، د ده خپل منطق دی، پوخ منطق حیرانوونکی منطق...

دی له خپلې کورنۍ سره مهاجر و، د کمپ په ختینو کوټو کې یې ژوند تېراوه، خو کله هم په جهاد باوري نه شو، دده دا خبره لکه د کانی کرښه وخته... داسې وخت به راشي چې د حضرت صاحب لمسي د محمود بریالي لور پارک کې ترلاس نیولې وي، یو بل ته وایي... چقه مردمای احمق بودند که بخاطر ما و این شعارها یکی دیگه اې خوده میکشتند...

ځینو کتر کمونستانو چې ځو ورځې جوماتو کې د خلاصه کیداني او قدوري پاڼې اړولې وې له خپلو نومو سره مولوي تکی ونښلاوه... د شوروي اتحاد راوړي بریلیکونه یې را کوز او د دارالعلوم هغه وځړول...

## له برخلیک سره لوبې:

د مجددي په حواسو د ارگ د سپینو زرو قبو او د دلکشا او گلخانې خیالونو منگولې ښخې کړې، دې ته لالهانده، چې څومره ژر کېدی شي، د گلخانې او دلکشا په غېږ کې د اقتدار د خمار ماتې خوښوونکې او ښایستوکي ورمې تنفس کړي، دی د ارگ تږي او تلولی و، دلته هره لحظه لکه د کال تېرېده، ده ته د افغانستان پادشاهي او اقتدار له ارگ پرته نیمگړې ښکارېده، لکه په خپلو حواسو شکمن وي، تک زړه به یې

ولوېد او دا به له امکانه وتلې او د نه منلو خبره ورته ښکاره شوه، رنګ به يې تک ژېړ شو، خو چې شاوخوا به يې وکتل، نو په شونډو به يې د يوې فاتحانه موسکا څپه وغوړېده.

دی ناکراره و، په ارګ پسې ناکرار، د کرس باور خبره د ارګ په مینه يې له مرګ سره سترګې جنګولې وې، نو اوس يې څنګه د هجران او انتظار ترخې زغملی شوی.

د مرحوم سردار نعیم خان کور کې دا یوه شپه پرده له کال اوږده، تېره شوه... دده پر خوله همدا خبره ګرځېده، ارګ ته کله...؟

چې لمانځه کې يې هم د قبلې پر ځای مخ ارګ ته کوږ و...

مخ پر قبله مې د یار کور دی

لمونځ مې پلمه کړ د جانان دیدن کومه



دده انډیوالانو هر یوه ځانته یو وزارت خوښ کړی او ځان يې د هماغه وزارت په څو پوړيزه ودانۍ کې د ستر مېز شاته د اقتدار په ټولو نخرو سمبال لیده، دوی به په همدغه تصور کې د خپلې خوښې وزارت ته د باډيګاردانو د ټوپکو په سیورې کې ګرندي او ځانګړې څېره ننوتل، مامورین او منسوبین به يې راغونډ کړل، دفتر به يې په خپل زړه جوړ او نوې مقررۍ اعلان کړې، پر خپلو خپلوانو او انډیوالانو به يې حساس پوستونه او ریاستونه ووېشل، د خلکو په عریضو به يې ((ملاحظه شد)) او قانوني اجرات وکړئ ولیکل.

مجددي د ارګ پر لور حرکت وکړ، کله چې د ارګ مخې ته نژدې شو، اضطراب او هیجان په مخه کړ، له خوشالۍ و که له بل څه، داسې معلومېده چې د لارې په لیدو کې يې خپل قوت له لاسه ورکړی وي،

نژدې وه د ګنو ساتونکو او حتمي او احتمالي وزيرانو په بيروبار کې پريوځي، دی لومړی ژر ژر په ارګ وګرځېد، په ګلخانه او دلکشا يې مينه ماته کړه، حرم سرای يې له نظره تېر کړ، کاسه برجونه او تولې دروازې يې وکتلې، ده ته يوه غټ او پرېر لنډي سري د ارګ د هرې څنډې د پېښو په رابطه د رښتيا او دروغو ګوډی پرانيستی و.

دلته خادم دين رسول الله وژل شوی، دلته نادر خان په ګولی ويشتل شوی، دلته امير امان الله خان د قاضي عبدالرحمن سر مات کړ، دلته غلام نبي څرخي د توپکو په خولو وژل شوی، په دې ځای کې داود خان ويشتل شوی، دلته د نعيم خان په کورنۍ ګولۍ چلېدلی، په هغه وړاندې مانۍ کې يې د تره کي پر خوله بالښت ايښی او داسې نور.

مجددي خبر نه و، چې ارګ وار له مخه د جمعيت او نظار شورا راغلو ښاغلو خپلو کې وېشلی، ان چې د ډاکټر نجيب الله پر پالنګ د خوب په هوس کې يې خپلو کې سره خوړلي هم دي...

ده ته ايله درې کوټې رسېدې شوای لکه د ارګ زنداني...

مجددي د ارګ هغه برخې ته چې د ګلخانې شاته د شاهنواز تني کودتا په بمبارۍ کې ورانه شوې وه، ترڅه وخته ودرېد، په زړه کې يې دغې وېرې غځونې وکړې، هسې نه پر ده هم کوم وخت دفاع وزير کودتا وکړي؟ چې په تېره څه دپاسه يوه لسيزه کې د دفاع وزارت پر کودتاګانو راګرځېده...

د مرګونو دغو کيسو مجددي په يوه ژور سوچ ډوب کړ، ده چې دغه لږ سوچ کې د لنډکي پرېر سري خبرې راغبرګې کړې، نو ارګ په رښتيا له مرګونو پرته بل څه نه لرل او هغه خوار شوی هم په يوه دمه ده ته د مرګونو کيسې او واقعې کتار کړې وې، د ده سترګې وځلېدې او د

وارخطایی او وېرې سپرمغي يې وښندل، پل يې ونیوه، له ارګه يې لږ لرګه په زړه کې وتوکېده، خو ژر يې دغه زمولوونکي خيالات د ولاحول... په ويلو شاته کړل، دتخت او اقتدار هوس يې بيا په زړه کې غځوني وکړې.

دده پلرونو په همدې ارګ کې امان الله خان، د سقو زوی، نادر خان او ظاهر شاه ته د پاچاهۍ کمربندونه تړلي وو او نن په دغه اوږده پسمنظر کې د خپلې پاچاهۍ پر واقعيت ولاړ و.

کاشکې د پاچاهۍ سلسله نه وی ختمه شوې، هماغه مراسم. کمربند تړل او هماغه د پادشاهۍ د ميراث سلسله وی، دا جمهوريت يې لا څه دی، داود خان يې په زړه کې وراته، څلور او پينځه کاله نو څه وخت دی؟ خوند پادشاهي کوي، چې د عمر کار دی او خبره اولادونو ته رسېږي.

کابل چې يوې خونړۍ جګړې يې پر حسن او جمال اور پورې کړی و، داسې منظره نه لرله لکه د يوه مملکت پلازمېنه او يا هم هغه کابل چې طبيعي ښکلا او موقعيت يې د پاريسونو او لندنونو سترګې سوځولې.

وروستۍ خونړۍ جګړې د کابل د وحشت او بربادۍ يو ګويا او ژړغونی تصوير وړاندې کاوه، کابل هغه کابل نه و، چې څوارلس کاله پخوا ليدل کېده، د خلکو بنې الوتې زېړې زبېښلې وې، د فقر، خوارۍ، لوږې، وېرې او دهشت نښې يې د سترګو او تندي ګونځو کې له ورايه څرګندېدې.

خو په همدغه وېروونکي او جګړې ځپلي کابل کې د اقتدار په هوس مست په لوکسو لندکروزرو او پيجاروګانو کې داسې غوړ غوړ ګرځېدل، لکه د ږيرې او سر له هر تار يې د زېړې غوا زېر غوړي څاڅي.

کابل ښاریان حیران وو، هغوی فکر کاوه چې د هجرت او پردېسی ستونزو او د کمپونو او خېمو گرمیو او د بېوطنی دردونو به اوس دوی داسې زهیر او زمولولي وي، چې د تندي هره گرېنه به یې د دغو دردونو او ستونزو بې شمېره رازونه سپړي...

د اپریل پر ۲۸ مه حکمتیار له مولوي حقاني سره اړیکه ونیوه، چې د مسعود پرځای دفاع وزیر شي، حقاني وویل: مسعود اوس پر دې څوکی تاکل شوی، زه له څوکی او مقام سره علاقه نه لرم، دا کار ښه نه ښکاري، زه به د سولې هڅو ته په بېطرفه توگه دوام ورکړم.

د ثور پر ۱۶مه مجددي خپله ۳۶ کسیزه کابینه اعلان کړه، خو د ده دا کار د استاد سیاف او د استاد رباني له خوا ناقانونه او له صلاحیته لور وشودل شو، مجددي په خپل غبرگون کې وویل: څرنگه چې حکمتیار د شریعت پر خلاف جگړې ته دوام ورکړي، نو صدارت به په خوب کې هم رانه ونهویني، حکمتیار وویل: دښمني یې یوازې له ملېشو او د رژیم له بقایاوو سره ده، دی به دا څواکونه وبښي، خو په قدرت کې به یې شریک نه کړي.

د شپې د ۸ بجو خبرونه له یوې مخې د مجددي، ملاقاتونو نیولي، باختر اژانس د دې اړتیا نه لیده چې په خبرونو پسې د دنیا په یوه او بل کونج کې سترگې وتومبي او یا هم په بله حادثه او پېښه پسې ځار و اوسي، د خبرونو ټول وخت د همدغو یکنواخته ملاقاتو تکراري جملو او عبارتونو نیوه، داسې معلومېده، لکه نه په دې پراخه نړۍ کې څه پېښه شوې او نه هم په دغه درنو وسلو نیولي او د اور او باروتو بټۍ پروت افغانستان کې څه بله خبره شته او که خبر وي، نو د مجددي، د ملاقاتونو خبرونه دې وي، نورې پېښې کله په دې ارزي، چې په راډیو تلوېزیون کې دې پرې نطاق خوله چوله کړي.

یوه خبریال په ارگ کې ماته وویل: موږ یې نن سهار په اته نیمو بجو راغوښتي یو، چې د دولت رئیس ملاقات لري، خو دا دی مازیگر شپږ بجې شوې او موږ د ارگ تر دغه لعنتي ونې لاندې په انتظار ولاړ یو.

حضرت صاحب چې کابینه اعلان کړه، نور وزیران د وزارتونو د کفیلانو په نامه یاد شول، خو مسعود د پاخه او دایمي وزیر په توگه اعلان شو.

په حقیقت کې خبره داسې وه، چې کله شمال ایتلاف د مسعود په

مشرۍ چاریکار ته ورسېد، نو د پېښور له لیډرانو یې غوښتنه کوله، چې ژر تر ژره د احمد شاه مسعود له وزارت دفاع او رباني له جمهوري ریاست پرته نور حکومت او ا اداره خپلو کې تقسیم کړي.

د مجددي په دې اقدام که څه هم له ده سره راغلي نور وزیران خوابدي شول، خو بیا هم د کابینې رسمي غړي او د وزارتونو د سرو سپینو مالکان وو، ځکه خو یې د څرګند مخالفت زړه ونه شوی کړی.

وزیران مخکې له دې چې د مطبوعاتو له لارې یې د ټاکنې خبر خپور شي، په وزارتونو ورمنده او په تشکیل او تعیناتو کې یې ریاستونه او نورو پوستونه پر خپلوانو، اندیوالانو او تنظیمي ملګرو په خلاص مټ او سخاوت وېشلي وو.

د یوه وزیر په هکله مشهوره ده، کله چې د وزارت منسوبین د ده مبارکۍ ته ورغلل، یوې ماموري د خپلو خبرو په پیل کې وویل: (می بخشی که نتوانستم دسته‌گلی را در گردن مبارک تان اویزان نمائیم.)

وزیر صاحب چې له خوشحالۍ یې خوله نه سره ورتله، وویل: (...شما خودتان گل استید...)

یوه بل وزیر چې لا تر دې هم وارخطا و، د خپل وزارت مامورینې خپلې کوټې ته وغوښتې، وروسته له دې چې د هرې یوې د حُسن او جمال جاج یې واخیست، هغوی ته چې د ګوتو نوکان یې اوږده وو، وویل: (شما با این ناخنهای دراز در وقت استنجا اذیت نمېشن...؟) دی چې د چا خبره ماندني والا نه وه، پر سبا یې څو توپه توکر "رخت" وزارت ته خریداري او په خپلو مبارکو لاسونو هرې یوې ته ټیکری پر سر او پر اوږو ور برابر کړ.

مجددي پرېږده چې په ارګ کې د خپلې پاچاهۍ د دوام خوبونه ویني

او کابینه یې د خپلو خپلوانو د تقرر پر تشکیلاتو او تعیناتو بوخته وې، خو په واقعیت کې وضعه داسې ده، لکه مرکزي حکومت نه وي، د دستور اخیستلو هېڅ مرجع نه ده معلومه، پوځي قوتونه متلاشي شوي، اردو د دې پر ځای چې تصفیه، منظم او په یوه ملي اردو بدله شي، بېخي رنګه شوې، او د هغې د نظم او دسپلین ځای یو ډول هرج او مرج نیولی، یوازې خاد، د دوستم، جنرال مومن، بابه جان او کیان قوتونه او ملېشې په خپل ټول وحشت او طاقت په ځای پاتې دي، هغه ملېشې چې له هېڅ ډول عسکري قانون او دسپلین سره یې اشنایي نه درلوده.

د پاکستان صدر اعظم نواز شریف د ثور پر لسمه کابل ته څو ساعته سفر وکړ، د هغه د سپرلی الوتکه په ډېره سختۍ په هوایي ډګر کوزه شوه، هر کلی له هر ډول دیپلوماتیکي نورمونو پرته حیرانوونکې بڼه لرله، نواز شریف ته د اوبو ګیلاس هم له خپلې الوتکې راوړی شو، دوه قابه چاکلېټ یې مخې ته کېښودل، نواز شریف ښاغلي مجددي ته د ۱۰ ملیونه ډالرو چیک ورکړ، مجددي د پخوا په څېر د خپلې چپنې په جېب کې خوندي کړ او دعوه یې لرله، چې دا له ده سره شخصي مرسته ده.

د بېرته تلو پر وخت، څو توغندي الوتکې ته نژدې ولګېدل.

د پاکستان لوی درستیز د یوه مرکزي وزیر په وارخطایي، هغه ته وویل: په داسې کارو کې دا شیان راځي...

جنرال حمیدګل د ځانګړي او خاص الخاص مېلمه په توګه کابل کې ډېره لګولې... راغلی ښاغلی ترې ګرد چاپېر تاوېږي... سوغاتونه نذرانې ورته وړاندې کوي... ډالیو کې د وزیر محمد اکبرخان د تومانچې خبره هم کېږي... د ثور پر یوولسمه جنرال حمیدګل بابر بن کې د نظار شورا

د ټانکونو او تشریفاتي ټولي په بدرګه په انګلیسي وینا وکړه، چې جنرال سایي فارسي ژباړله... ډاکتر عبدالله یې د ځانګړي مېلمه پال په توګه مخ او څټ ته ځغستل.

جنرال حمید ګل خپله وینا د مجاهدینو اوجهاد په ستاینو پیل او افغانستان د اسلامي امت د اتصال کړی یاد کړ، د اسلامستان نوم په ورکولو یې د نړیوال جهاد پلازمېنه وګڼله...

کابل کې د حمیدګل څه کار و...؟

په کوم عنوان یې له کوم دریځه وینا کوله د وینا لپاره یې بابر بې څرنګه خوښ کړ...؟

د هند له نیمې وچې د پیرنګي په وتلو افغانستان کې د برتانوي هند پر ملکیتونو دریو هېوادو، افغانستان، هند او پاکستان دعوا لرله... کابل ته د مجاهدینو په ننوتو حضرت مجددي او برهان الدین رباني د دغو ملکیتونو قواله د خپلې خوش خدمتی له مخې د پاکستان سفیر ته تقدیم کړه... ((خاک فروختنده چه ارزان فروختند))

مجددي یوازې د ترفیعاتو په لړۍ منګولې ښخې کړې، د هر ماښام خبرونه چې مخکې ملاقاتونو نیول، اوس یې نیمه برخه د ترفیعاتو اعلانولو ته وقف شوې، د جنرالانو او ستر جنرالانو شمېر دومره زیات شوی، چې په هیڅ هېواد کې یې سابقه نه شي پیدا کېدی.

داسې وګڼه، چې ټول جنرالان شول، هر قوماندان سرګروپ ته چې ترفېع ورکول کېده، د جنرالۍ په حساب ورکول کېده.

مجددي که هر څو د قانوني جمهور رئیس د څېرې او اکټ کوښښ کاوه، خو په عمل کې ترې خبره ورخ تر بلې د کاواکۍ او بېواکۍ لوري ته کشکول کېده، واک عملاً د دوستم، مسعود او پرچم له ائتلاف سره و.




تفاوت صلاحیتها وتفاوت قدرت، در حکومت ائتلافی (کارتون از فرنتیرپوست)

# یو تخت څو پادشاهان

استاد رباني ناکرار تلولی او اندېښمن و، هسې نه پر ارګ مجددي ښته واچوي او د پېښور عبوري حکومت غونډې دلته هم خبره تر دوو کلونو اوږده شي، هره شېبه یې د ارګ او تخت له خیالونو او سوچونو سره په ویښه تېروله، ځکه خو یې د پرېکړې پر خلاف کابل ته مخه کړه او له ځان سره یې د قیادي شورا په نامه محمدي او استاد سیاف هم ملګري کړل.

قافلې د ثور پر ۱۳مه د ځمکنیو له یتیم خانې، چې لوزنامه په کې لاسلیک شوې وه، د کابل پر لور حرکت وکړ، سروبي کې پرې زرداد روند کون شو، که نه نو سابه، به یې ور په مالګې کړي و، سرک کند و کپر او

مزل ستری و، خو د منزل تندې او تلوسې ستوماني نه شوی پېژندلای، ترهغې چې د شپې په ۸ بجو یې د اقتدار په غېږ کې د زره درزا په کرار شوه، مجددي ته د استاد رباني د کابل تګ خوند ورنه کړ، دایې د خپل اقتدار لپاره ګواښ وګاڼه او په نویو حرکتونو، اعتراضونو او شکایتونو یې لاس پورې کړ.

د استاد رباني لومړی فرمان د خپل پوځي سلاکار په توګه د جنرال حمید ګل د ټاکنې لاسلیکول وو، جنرال دغه فرمان پخپل داینېنګ روم کې په طلايي چوکات کې ځړولی.

استاد رباني کابل کې خپله لومړنۍ وینا کې وویل:... همه جا را مایوییست فرا ګرفته بود... مذاکرات در جریان بود که جلو حکومت اسلامی مجاهدین را بګیرد... همه متوجه و چشم به راه بنین سیوان بود... تا این که روزنه امیدی پدیدار ګشت و به اتکا آمر صاحب وضعیت طور انکشاف نمود که حکومت اسلامی مجاهدین به میان آمد...

مجددي ته یې زامنو، ورونو او خوریونو مشوره ورکړه، چې د ځان په پلوۍ د یوه قوت پیدا کولو اقدام وکړي، ځکه چې ده نه کوم جهادي ځواک درلود او نه کوم ولسي بنسټ، تر ټولو ستر قوت یې دوستم ځواکونه ليدل، چې خپل مت پرې مضبوط کړي، ځکه خو یې مزار ته عاجل سفر وکړ او دوستم ته یې د ستر جنرالۍ ترفیع او د اسلام فاتح (ستر مجاهد) او خالد بن ولید خطاب وکړ.

مجددي په دغه سفر کې مولوي نصر الله منصور او مولوي ارسلان رحماني هم ملګري کړي وو، دوی دواړو په مینه او حرارت دوستم ته غېږ ورکړه او د هغه لاسونه یې په خپلو لاسونو کې ټینګ کړل، مجددي،

دوستم او حزب وحدت ته په قیادي شورا، جهادي شوراګانو کې په سهمیه قایل شو.

حضرت صاحب خپله وینا کې وویل: ... ما باید دګر جنرال عبدالرشید خان دوستم را دګر جنرال عبدالرشیم دوستم نګویم، ستر جنرال عبدالرشید خان دوستم بګویم...

مولوی منصور چې د پاکستان دېوالونه په بې وزنه او بې معنا شعارونو ککر او د دېوالونو د پادشاه لقب ګټلی و، په تولو کرښې ایستلې وې.

د ده د سلګونو شعارونو یوځو اوس هم زما په حافظه کې دي:

((مور له کمونستانو، ظاهر شاه او غربیانو سره مخلوط حکومت په کلکه غندو او ردوو، بېطرفه حکومت د اسلام پر ضد د شرق او غرب دسیسه ده.

د باطلو د سر پېچ تي تي ایچ)) خو اوس یې دوستم ته د اسلام فاتح او قهرمان لقب ورکولو کې د یوې پرتمینې غونډې د شرکت ویار په برخه و.

# د حقاني په مشرۍ د سولې هڅې

جګړو کابل د وحشت لمبو کې نغښتی، د توطئو او لوټ تالان بازار ګرم دی، د عفتونو لیلام لګېدلی، جهاد د واک او اقتدار په خونړي فساد اوښتی.

دغه جګړې څرنګه پیل شوې، چا پیل کړې، د چا له لاسه، د چا په اشاره...؟ لسګونه پوښتنې، یو ځواب...؟

مولوي جلال الدین حقاني چې د سولې په هلو ځلو بوخت دی، د دغو پوښتنو ځواب کې خبریالانو ته وايي:

... د احمد شاه مسعود او حکمتیار ترمینځ جګړو پر هېواد له سره د ویر ټغر خپور کړ، د رژیم ځینو ارخونو له وراندې له تنظیمونو سره د

بېلا بېلو تمايلاتو له مخې ارتباطات ټينګ کړي و، د تني ګودتا دا لار پرانيسته، ځينو له احمد شاه مسعود سره دا خبره شريکه کړه، چې حکومت د بل چا لاس ته لوېږي، موږ غواړو هغه تاته وسپارو، له ده سره يې ژنده او ګوده معاهده هم وکړه...

پرچمي، کمونستانو، د کارمل طرفدارو يا په بله خبره فارسي وانو مسعود ته داسې ښکاره کړه، چې موږ به قدرت تا ته وسپارو...

د خلق ډلې حکمتيار ته دا خبره ورسوله...

موږ وويل پر ښارونو حملې مه کوئ، له کابله موږ ته هم پيغامونه راتلل، موږ رهبرانو ته وويل: مه سازش کوئ، مه جګړه، د واحدې ادارې او شورا غم وکړئ.

له مسعود سره مې هم تماس ونيو، دی پروان کې و، چې نوی ورته کمونستو افسرانو تسليم کړی و، ده په خوله له ما سره ومنله، په حکمتيار پسې وګرځېدم، پيدا مې نه کړ، مسعود ته مې وويل، مخابره کې خپله له حکمتيار سره خبرې وکړي، د يوه ساعت مخابروي تماس کې حکمتيار قناعت ونه کړ، پر سبا يې عبدالوکيل پروان ته ولاړ، جنرال رفيع لوګر کې له حکمتيار سره وکتل.

وطنجار څه مکتوبونه پکتيا ته رالېږلي وو، منصور صاحب دا خبره موږ ته وکړه، مکتوبونو کې ليکل شوي وو، کوم لوی پوستونه چې له دوی سره دي، تاسې يې وسلې مجاهدين کابل ته راولېږئ، موږ به وسله ورکړو، خو ما ونه منله، چې دا خپله ګډ ودی او جګړو ته مخه ورکوي...

حکمتيار صاحب له مخکې د کابل نيولو تياري لرله، وراندې تر دې چې د حضرت صاحب په مشرۍ پېښور کې جوړه شوې ناقصه اداره کابل

ته داخل شي، جګړه پیل شوه، ډېره بېرحمانه جګړه پر خلکو وتپل شوه.

موږ د پکتیا، پکتیکا، وردګو، لوګر، غزني عالمان، قومي مخور او قوماندانان چې شمېر يې پنځوس تنو ته رسېده راغوند او پر مسعود او حکمتیار د اوربند لپاره فشار راوور. له موږ سره د مشرقي، کندهار او شمالي قوماندانان هم ملګري شول، له دوارو خواوو مو اختیار واخیست.

دغسې مو له جهادي او قیادي شوراګانو هم واک واخیست، مجددي صاحب راته وليکل، د سولې هیئت هره فیصله به من و عن مني، مسعود او حکمتیار خپل شرطونه وړاندې کړل، خو وروسته يې توی وړی واک راکړ، موږ له ۳۰۰ تنو علماوو، مخورو او قوماندانانو، ۳٦ تنه یوه پلاوي کې راټول کړل، چې د سولې مسوده تیاره کړي، مسوده مو مسعود ته واستوله، ده قبوله کړه، د حکمتیار موافقه مو هم ترلاسه کړه.

زړه مو و، مطبوعاتي کنفرانس کې دغه مسوده اعلان کړو، دلته د مسعود پیغام راورسېد، چې مسوده مه اعلانوئ، خو موږ خبریالان راغوښتي وو، له ده مو پوښتنه وکړه، چې ددې خبرې منشاء راته وښيي، مسعود وویل، د ملېشې پر تکي ملګري خوابدوي، دا مو دده په خوښه د جګړې پر ارخونو وارول، بیا هم ده، دغه مسوده له کابل راډيو او اخبار اعلان نه کړه...

مسعود ته مو هیئت ولېږه، ده ومنله، چې د ملېشو ۸۰ مه فرقه، ۵۳ مه فرقه او اویایمه لوا به بې وسلې شي، نور پوځي قطعات به پر خپل ځای وي، خو دا دده د خولې توافق و، د زړه نه و، ځکه چې د جنرال حمید ګل، اعجاز الحق او یوه عرب پر مینځګړیتوب مسعود او

حکمتیار بکرامیو کې کېناستل او زموږ له طرحې او خپلو وعدو یې غاړه وغړوله.

ما له دغو درې تنو وغوښتل، چې تاسې د افغانانو په مزاج او عنعناتو نه پوهېږئ، دا کار تاسې نه شئ کولای، زموږ پرېکړه مه بې ارزښته کوئ، ددوی د فیصلې ځینې تکي زموږ د فیصلې پر ضد وو، دلته ده چې له دې دوارو فیصلو یوه هم تطبیق نه شوه.

موږ بیا له دوی سره ارتباط ونیو، چې د خبرو لپاره خپل استازي رامعرفي کړي، حکمتیار دا کار وکړ، مسعود په څند خپل استازي راوپېژندل، خو دوی عمل نه کاوه، دې کې د حزب وحدت او اتحاد اسلامي ترمنځ جګړه پېښه شوه، ما د دوی ترمنځ د اوربند او سولې هڅې پیل کړې، اوربند خو یو دوې درې ورځې ټینګ شو، خو سوله رامینځته نه شوه، چې له پولتخنیک سره پر ما برید وشو، ما د دوارو غاړو مشران د خبرو لپاره راغوښتي او دوی راسره منلي وه، خو یوه غاړه هم په خپله وعده ونه درېده.

اوس چې کوم کمیسیون جوړ شوی، دا یو ناکام کمېسیون دی، چې د خپلو فیصلو د تطبیق له واک بې برخې دی، دا کمېسیون باید وسیع شي، د تنظیم پرځای ولایتونه پام کې ونیول شي، له هر ولایته دوه ستر قوماندانان، یو قومي مشر، یو عالم چې تعداد یې ۱۲۰ - ۱۳۰ تنو ته رسېږي، یوه شورا جوړه شي، دا یوه باصلاحیته شورا ومنل شي، بیا یو داسې فارمول رامینځته کړی شي، چې له ولسوالیو دوه تنه او له علاقداریو یوه تن راجمع کړی شي، دغه اشخاص به علماء، مخور او قوماندانان وي، یا دا چې د کمېسیون ۱۲۰ تنه د خپلو ولایتونو د شوراګانو د نفوسو په حساب نفر کابل یا د کابل شاوخوا راولېږي، له

دې څخه دی ۲۰۰ تنه ته غوره شي، چې پارلمان ته ورته بنه به ولري، د دغه کمېسون تر مراقبت لاندې آزاد انتخابات وشي، د دولت رييس دې وټاکل شي، د پارلمان دوره دې د دولت رييس له دورې سره برابر وي.))

ددغې پوښتنې په ځواب کې چې د حل او عقد، لويې جرګې او اهل الرای په اړه تاوده بحثونه کېږي، تاسې څه نظر لرئ، مولوي حقاني وويل:

دا توله یوه خبره ده، په دې شرط چې د تنظیمونو رعایت په کې نه وي شوی بلکې اهلیت پام کې نیول شوی وي، داسې اشخاص په کې راشي، چې مسلمان وي، جهاد کې یې برخه لرلې وي، په تولو قومونو ولایتونو پورې اړه ولري.

## د خبرو او عمل توپير:

حقاني صاحب د حکمتیار او احمد شاه مسعود ترمینځ د جګړې به مخنیوي کې د سولې کمېسیون لخوا دیو پرېکره لیک په وړاندې کولو خپل زغروال څواکونه او مجاهدین د دوارو غاړو ترمینځ ځای پرځای کړل، په پرېکره لیک کې راغلي: ختم و قطع جنگ بهر معنا و مفهومیکه باشد...

**بعد از صدور اعلان فیصله در ظرف مدت یک هفته تمام قوت های متقابل و متخاصم از شهر کابل و کمربند اطراف شهر کابل خارج گردد.**

تامین امنیت کمربند امنیتي شهر کابل و داخل شهر کابل در وقت عقب کشیدن قوت های درگیر، تحت قیادت شورای صلح

**توسط قوماندانان کابل و حسب ضرورت یک تعداد مجاهدین متفق علیه صورت گیرد و بعداً به قطعات منظم وزارت دفاع و داخله تسلیم شود.**

**تمام سلاح ثقیله و وسایط حربی اردو مربوط بیت المال بوده، از کمربند امنیتي کابل خارج شده نمیتواند.**

لوړ پرېکړه لیک د ۱۳۷۱ لمریز د ثور پر ۲۷مه چهلستون بڼ کې اعلان کړی شو، حقاني صاحب له حکمتیار او مسعود لیکلی ډاډ ترلاسه کړی و، چې د دوی له خوا شوې پرېکړې ته ژمن اوسي، د سولې پرېکړه د ۲۵۰ قوماندانانو، قومي مخورو، علماوو له خوا تصویب او لاسلیک شوه، د ثور پر ۲۶مه د پرېکړ لیک له اعلان یوه ورځ وړاندې حقاني صاحب له حکمتیار و مسعود سره رابطه وکړه او یوځل بیا یې د سولې د پرېکړې په اړه د دوی ژمنتیا ترلاسه کړه.

حقاني صاحب پنځوس زغروال ټانکونه او سلګونه مجاهدین د حزب او نظار شورا جنګیالیو ترمینځ ځای پرځای کړل، مسعود ژمنه کړې وه چې د دغو افرادو اعاشه او د تېلو لګښت به دولت برابروي، خو دوې ورځې وروسته یې له دې ژمنې غاړه وغړوله.

پر دې سربېره مسعود د سولې پرېکړې ته هم ژمن پاتې نه شو او د جنرال حمید ګل، اعجاز الحق او سعودي شهزاده ترکي الفیصل په مینځګړیتوب یو بل ترون ته په بتخاک کې کېناستل.

ددغې ناستې یوه برخه وال ماته وویل: احمد شاه مسعود حکمتیار ته په طنز وویل، حقاني ام کتی چند تانک غورازه خود آمده که صلح میکنم...



د حکمتیار او مسعود تر منځ د اعجاز الحق او ترکي الفیصل په منځګړیتوب د بګرامیو تړون

## لومړنی سفر، لومړنی ګوزار:

مجددي د جوزا پر ۵مه په دوه ورځني رسمي سفر اسلام اباد ته ولاړ، د اسلام اباد هوايي ډګر کې د پروټوکول له مخې غلام اسحق خان او نواز شريف دده هرکلي ته ولاړ وو، د سپرلۍ الوتکه د اسلام آباد پر هوايي ډګر کیناسته، مجددي چې له الوتکې راکوزېده، نو دده باډيګارډ تورن جنرال (جګرن) خان محمد لکه سوری ورپسې جوخت روان و، کله چې ده د غلام اسحق خان په ملتیا د تشريفاتو ګارډ سلامي اخيستله، نو باډيګارډ جنرال هم د مجددي او غلام اسحق په پله ګام اخيست. پاکستاني مقامات چې ځينو يې برېتونو کې خندل، دې لوبې ته حيران ولاړ وو، خو کابل کې د پاکستان شاژدافير ښاغلي فدا يونس له افغانانو سره د اوږدې سابقې له مخې نه غوښتل، دا شرم د کمره مين له خوا ثبت شي، ځکه خو يې هغه تر مټ په نيوو ايسته کش کړ، له دې سره هغه لکه په هماغه ځای مېخ شوی وي، بې حرکته ولاړ پاتې شو.

د جوزا پر ۸مه د مجددي د سپرلۍ الوتکه له پاکستان څخه په بېرته ستنېدو د کابل پر هوايي ډګر په توغندي وويشتل شوه، خو پيلوټ وتوانېد الوتکه روغه کوزه کړي، د توغندي په لګېدو د الوتکې د مخ برخه زيانمنه او د پيلوټ مرستيال برسيرن زخمي شو، خبرياﻻنو څرګنده کړه، چې مجددي په هوايي ډګر کې تلولی او الوتې بنه څغاستل، ده لومړی د الوتکې ويشتو تور پر حکمتيار ولګاوه، خو وروسته چې له مسعود سره يې د قدرت سيالي اوج ته ورسېده، وېل يې: دا کار دده دوستانو او د لستوني مارانو کړی.

مجددي د پلويانو پيدا کولو په تمه د مامورينو معاشونه دوه چنده کړل، خو د وزارتونو بودجې يې کمې کړې، په دې توګه يې ټولې ادارې له يوه سخت بحران سره مخامخ کړې.

ده د پخواني باچا د ملاتړ تر لاسه کولو لپاره خپل زوی روم ته وليږه خو باچا دده، د ننګې خبره ونشوه منلي.

دلته وه، چې مجددي نه پر تنظيمي ډلو او وسله والو خپل مټ غښتلی کړي شوی او نه يې له هېواده بهر د افغان شخصيتونو او سياستوالو ملاتړ خپل کړي شو...

هغه وه چې د ارګ دريو کوټو کې له دوه مياشتني مساپرۍ وروسته يې له ارګ سره مخه ښه کړه...

(۲)

# په جنتي وطن کې دوزخي لمبې

د اژانسونو او رسنیو خبرونه تاوده دي، اخبارونو خپل غټ سرلیکونه او لومړي مخونه همدې تبصرو او خبرو ته ځانګړي کړي، په کابل کې د مجاهدینو حکومت دی، د دغه حکومت له مشر تر وزیرانو د ټولو څېرې په لنډو او اوږدو ږیرو او مناسب لباس ښکلي دي، مجددي ته د دولت د ممثل په توګه ظاهراً د قدرت واګې سپارل شوې وې، احمد شاه مسعود د دفاع وزیر په توګه د قدرت پر اصلي مرکز منګول لګولې.

د امیدونو او هیلو غوټۍ غوړېدلې له څېرو د خوښۍ وړانګې په ځلېدو دي.

د پاکستان مسلم ورځپاڼې د ثور د ۹مې ګڼه کې لیکلي: هغه مسلمانان چې په الجزایر کې د (اور کلا) صحرایي ښار ګوټي کې له جدي مرګ سره مخامخ دي، د مجاهدینو له خوا د کابل د فتحې په خبر خوښي او الله اکبر نارې پورته کړې.

سوډان چې د نړۍ له ډېرو خوارو هېوادو څخه دی، شپږ الوتکې غذايي مواد د لومړنۍ او بېړنۍ مرستې په توګه کابل ته ولېږل.

د مهاجرو کاروانونه دي، چې یو په بل پسې روانېږي، د وطن د مینې او مجاهدینو حکومت په خوښیو کې یې نه د ملګرو ملتو پروګرام ته انتظار کولی شو، نه په هېواد کې د ماینونو خطر او وېرې د دوی د تلو مخه او دتلوسو لوری بندولی شوی.

په یو دوو اونیو کې د پېښور شاوخوا پنډغالي خالي او کرايي کورونه

تش شول، د مهاجرو په کډو بار د لاریو اوږده کتارونه د تورخم، پاړه چنار، وانه او میرانشاه له لارې هېواد ته روان دي، په دغو لاریو کې د کور سامان ان د کمپونو د ختینو جونګړو لرګي، کړکۍ او دروازې بار دي، د لارۍ دپاسه د تور سرو او ماشومانو له زموليدلو څېرو د امیدونو پلوشې او له سترګو د خوښۍ سپرمغي بادیږي، لکه د هيلو په خزان ځپلو ځانګو یې د وطن د مینې پسرلني بارانونه په اوربدو وي، له یو عالم هیلو او له یو جهان امیدونو سره یې د پردېسۍ له وطنه، د هجرت له خاورې او ګرمۍ له دوزخه د خواږه وطن په جنتي فضا کې د ژوند او مساپرۍ د درنو غمو د شاته کولو په تلوسه ټولې ناخوالې او دردونه د ماضي د یادونو د سیند په څپو لاهو کړي، له دې ناخبره چې د اقتدار شرمېدلي سازشونه او د قربانیو او قهرمانیو په سر د سیاسي سوداګرو تجارت به د دوی د ژوند وروستي امیدونه او د وینو په قیمت ګټلی عزت او عظمت د خپلو هوسونو پښو کې په ډېره ناځوانۍ او بېرحمۍ قرباني کوي، بېرته به د دربدرۍ او کډوالۍ دور پیلیږي او د دغه قهرمان او مجاهد ولس قرباني به د سیاسي سوداګرۍ په تور بازار کې لیلام ته وړاندې کیږي.

د شهیدانو په وینو او د ملت او جهاد پر عظمت داسې سودا بازي او سازشونه چې د وطن او جهاد په تاریخ او لوړ حیثیت له یوې مخ اور پورې کړي.

د خوښیو په دغو شېبو کې موږ له دریو انډیوالانو احمد ضیا (ذهین بابري) احمد سینا او پیر نورعلي شاه سره د ازادۍ په خوشالۍ کې د کابل د سفر تیاري ونیوله.

زموږ سفر رسمي بڼه لرله، په دې معنا چې حقاني صاحب د سولې

کمېسیون په مشرتابه د اوربند د معاهدې د تسوید او جګړې په بېخي ختمېدو د دواړو متخاصمو ډلو توافق ترلاسه کړی، له کابل ظاهراً د جګړې ګواښ او د ګولیو ږلې خپل وېروونکی او تور څادر ټول کړی، موږ هم د هیلو او امیدونو له یوه ځپاند بهیر سره د کابل په لور د تورخم پر لار حرکت وکړ، ما د خپل کتابتون او څوارلس کلن مهاجرت په موده کې د راغونډ کړیو اثارو او اسنادو یوه برخه راسره لېږدوله، پردې سربېره دوې کامرې، یو ټیپ، یوه وړه راډیو زموږ د سفر په زاد، راحله او وسایلو کې شاملې وې.

له همدغې متاع سره موږ د تورخم په لار آزاد کابل ته وخوځېدو، د دغو ټولو خوشباوریو او خوشالیو تر څنګ د حالاتو په اړه یوې نامعلومه وېرې زموږ په زړو کې ځای نیولی، کابل ته له روانېدو څو ورځې مخکې مې لاهور کې د جمعیت اسلامي مطبوعاتي انجمن رئیس ښاغلی فاضل سره چې د مسعود، رباني د لویو وړو تصویرونو پر چاپ یې د شرکت مطبعه بوخته ساتله لیدلی وو.

دی په مزه مزه د کابل په کیسو لګیا و، داچې قانع د انیس، شمس د هېواد، ملکزاد د تلوېزیون، اندیشمند د رادیو او سید حبیب شاه د باختر اژانس رئیسان مقرر شوي، فلانی د دې شي او فلانی د هغه شي رئیس او امر ټاکل شوي، اخبار داسې چاپېږي، مطبعه دومره خرابه شوې او داسې نور...

ده وویل ستا لپاره مو هم یو ښه کار په نظر کې دی، وروښو کوښښ کاوه پیدا دې کړي، خو ستا درک نه و او داسې نورې خبرې...

ماوې د کومو شعارونو لپاره چې دومره وینې تویې شوې، اوس مو سترګې ورته ټیټې نه دي؟ له دې په غوره دریځ او د ملت په ګټه او خیر

رامینځته شوی جوړ جاړی په مخ اړولو مو د جهاد په نامه جګړه وغځوله او له یوه ټولمنلي اواري په ګرځېدو مو دغسې یوه شرم او سیاسي قمار ته زړه ښه کړ...؟

فاضل له خپل ټول معقولیت او زغم سره دا وخت دغسې نیوکې معقولې نشو ګڼلی، اخر اقتدار او واکمني سړي دومره نشي بدلولی؟

ما ورته کړه غوارم د خپلو اسنادو او کتابونو یوه برخه راسره ولېږدوم بیا به ګورو چې څه کیږي.

بشارت صاحب هم لاهور کې حریت مجله چاپوله، فاضل صاحب سره له لندن خپرېدونکی عربي "المجله" وه، چې د کورنیو چارو پر وزارت یې د ګلم جم ملېشو د برید تصویري رپوټ خپور کړی و، تصویرونو داسې صحنه ښودله، چې د کورنیو چارو وزارت یو منصبدار، یوه تصویر کې ملېشو نیولی، بل کې یې لاس پړې ترلی، دریم کې یې کلاشینکوف ورته نیولی او څلورم کې یې له پښو غورځولی.

فاضل وویل: چې سړی له دې تصویرو یو پوستر چاپ کړي، ورته وکاږي، اینست انجام مخالفت با دولت اسلامی...

ښاغلی فاضل سره مې د مدرسې اندیوالي ده د هجرت او پردېسۍ په وخت کې مو زیاتره یوه دفتر کې فرهنګي چارو ته اوږه ورکړې.

په دې توګه زما او د ده پېژندګلوي، د معصومیت له وختونو غځېدلې، مانا له مهاجرت او تنظیمي اړیکو سره پېیلې نه ده...

پېښور ته په رسېدو لومړی د جمعیت مرکزي او بیا فرهنګي دفتر ته ولاړم، مرکزي دفتر کې خبرې ببرې او پاړېدلې وې، یوه جمعیتي وسله والو ته زموږ د موټر د ایستو اشاره وکړه... پیر صاحب راته کړه ددې خلکو د واک او نشه سرته ختلې څه چې پښې باسو... ماښام د فاضل

کور ته ورغلو، په یوه گرم فانتا یې ونازولو، ما کابل ته د تلو خبره وکړه، ده په ډېر اطمینان وویل، هېڅ خبره نه شته، په داده زړه روان شئ، ستاسې په مخه کې د شورای نظار کسان او خپل خلک دي چې ځان ورمعرفي کړئ، بیا خو به مو په سر سترګو خدمت وکړي، په روانېدو کې ما ورته په ټوکه کې وویل، هسي نه احوال ورکړي، چې درغلل، پرې یې نږدئ.

ده له خپلې همېشنی موسکا په لږ بدل انداز وخندل او زما خبره یې راسره تکرار کړه.

***

موږ د ثور پر ۲۷ مه غرمه له پېښوره حرکت وکړ، پاکستاني پولیسو ملېشو او چیک پوسټونو زموږ موټر ونه دراوه، هرځای به چې ملېشې او پولیسو زموږ د موټر پلېټ ته چې پریس پرې لیکل شوي کتل د تلو اشاره کوله، پر کرښه هم نه چا له موږ پوښتنه وکړه او نه مو د توقف اشاره ولیده.

له جمرود وړاندې د حاجي ایوب اپریدي کلا د یوې بلې دنیا ننداره وړاندې کوله، چې ډېرې کلاګانې که هرڅو برجورې او دېوالونه یې له مورچو ډک وو، خو دا ټولې ختینې وې، د حاجي ایوب هغه په داسې بنه رغېدلې، چې د یو واره ښارګوټي یا پخوانیو افسانوي کلاګانو یاد یې د سړي مخې ته ایښود، لکه د محبوبا کلا، لکه پخوانیو نکلونو او کیسو کې د دیوانو پېریانو کلاګانې...

دغې کلا زموږ د ډېری جهادي لویانو زړونه وړي، پر دغه نقشه او بنه یې د خپلو ماڼیو او محلونو د رغولو هوسونه زړو کې پالل....

پر کرښه چې اوښتو، احمد ضیا وویل دلته ودرېږئ، چې موظف مامور د موټر نمبر نوټ کوي، خو چې زموږ موټر لږ ورو شو، موظف پولیس د تلو اشاره وکړه، ما خپلو انډیوالانو ته په ټوکه کې وویل: دا پولیس سړي ته ګوري.

له کرښې په اوښتو مو خپله تنده په سړو شړومبو ماته کړه، له لږ تم کېدو وروسته مو حرکت وکړ.

د خـــیبر دره خو لار د تلو راتلو ده
په کابل او پېښور کې افغان یو دی

د خیبر تاریخي لار مو د هیلو او خوشالیو د ناپایه سمندر په څپو کې تر شا پرېښوه، د خیبر درې مارپېچ سړک د کډوالو د بېرته ستنېدو کاروانو نیولی، په سامانو بار د تور سرو، بوډاګانو او ماشومانو ډکې لارۍ یو بله پسې په یوه لیکه رواني دي، لکه د اوښانو اوږدو کتارو نه شلېدونکی بهیر، داسې چې هره لارۍ د ځنځیر یوې کړۍ ته ورته ده.

په دغو لاریو کې داسې ماشومان هم وو، چې د هجرت په سوځنده کمپو کې زېږېدلي او خپل وطن یې په سترګو نه دی لیدلی، داسې ځوانان هم چې د ځوانۍ پسرلي پرې پردېسۍ کې راغلي او د خپل شباب په خوند نه دي پوه شوي، داسې بوډاګان هم چې یوازینۍ هیله یې خپل وطن کې له ژوند سره خدای پاماني او خپله خاوره کې ښخېدل دي.

له کرښې په اوښتو مو نظر دوو لوحو جلب کړ: د افغانستان اسلامي جمهوریت ته ښه راغلاست، لوحې په دري او انګرېزي هم کښل شوې، دلته موټر د کیڼ پر ځای ښی لاس ونیو، له دې سره سړی د ورانیو او بربادیو له یوې اوږدې او نه ختمېدونکې لړۍ سره مخامخ کېږي.

احمد ضیا چې په دغه لار تللی راغلی، ویل یې: دلته لږ ودرېږئ چې دا مجاهدین بېسوره دي، هغه بله ورځ یې هم په یوه موټر ډز کړی و، خو موږ ته یې له واره د تلو اشاره وکړه، انډیوالانو ته مې کړه: ما درته ویل دا خلک سړي ته گوري...

له کرښې په اوښتو د استاد سیاف مربوط شمشاد غونډ دی... د دغه غونډ تاسیسات د غره په غېږ کې رغېدلي... مانا د دغه لوی غره د زړه پر را ایستو یې هورې یوه جلا دنیا اباده کړې... وایي د مرغه له پیو پرته یې د مرگ او ژوند زهر او خواږه ټول پکې راټول کړي دي...

په ډکه کې د یوولسمې فرقې د ٦٦ غونډ له کنډوالو چې مجاهدینو په ١٣٦٧ کال د جلال آباد د حملې پر وخت نیولي و، تېر شوو له دې اخوا ځای ځای د مولوي خالص، محاذ ملي، حزب اسلامي او اتحاد مرکزونه او قرارگاوې پرتې دې.

په کمکي خیبر کې د ٦٦ غونډ عمومي قرارگا او سرحدي لوا پرته وه، چې دا هم له دریو کلونو د مجاهدینو په لاس کې وه، او څه په کې پاتې نه دي، له دې مخکې د گردي غوث مشهور زیارت دی، د یوه پاخه ښوونځي له ویجاړو کنډوالو وړاندې د غني خېلو سیمه ده، چې د مجاهدینو او روسانو د سختو جگړو مرکز .و، غازي اباد فارم چې د روسانو په مرسته جوړ شوی او د څارندوی محافظ غونډ په کې پروت و، په ١٣٦٧ لمریز کال کې مجاهدینو فتحه کړی، د احمد سینا په وینا د غازي اباد فارم د رژیم د تعرض له امله د دوو ورځو لپاره بېرته ونیول شو، چې مجاهدینو له سره لاندې کړ، د فارمونو سیمه داسې معلومېده، لکه د یوه خزان ځپلي ځنگل وچه تابلو، د ښوونه، زیتون او مالټو ونې خو لږ او ډېرې تاندې وې، خو د نویو نیالگیو ایله ډنډر

معلومېدل، د امریکا د USAID په مرسته د سرك جوړولو غټې لوحې لګېدلې:... تجدید ساختمان این شاهرا به کمک مردم ایالات متحده... خو د امریکا په تکي او بیرغ تور رنګ غورځېدلی.... چا ویل د استاد سیاف په امر دا کار شوی چا ویل دعربو.....

ویالې ورانې او کروندې له ډېرو او ځوزانو ډکې دي، موږ د ماسپښین لمنځونه همدلته وکړل، له دې وړاندې سرخ دېوال دی، ملګرو ویل چې د ثور کودتا پیل کې به کمونستانو اسیران دلته تر خاورو لاندې کول، دغه ځای د رژیم قرار ګاه او پر جلال اباد د ۱۳٦۷ کال د حملې وروستی دفاعي کرښه او د ښار امنیتي کمربند تشکیلاوه، دغه سیمه په بېلا بېلو ماینو پوښل شوې.

له دې چې تېر شې د ثمرخېلو سیمه ده، چې د لومړي نمبر قول اردو اړوند د ننګرهار یوولسمې فرقې، جزوتامونه، کندکونه، کورونه او تاسیسات په کې دي... او اوس پرې د مجاهدینو پیرې ولاړې دي، خو پیره داران لکه د لوټ تالان دېوان داسې بریښي، دلته پخوا د توکرانو څه وړې فابریکې هم وې، چې د ثمرخېلي کتان په نامه یو دول توکر یې تولیداوه، چې له ململ لږ پرېړ و، د ثور له کودتا وروسته دغه صنایع په تپه درېدلي او اوس یې ودانۍ هم له مینځه تللې دي، د ثمرخېلو غر د کیهان په نامه مشهور دی، چې د مجاهدینو تعرضي ګروپونو په کې سنګرونه نیولي او رژیم ځواکونه یې تر اور لاندې و.

د زیتون تېلو فابریکه هم دلته ده، چې تولیدات یې روسیې ته صادرېدل، همدې ځای ته څېرمه پل سراجي کې د رژیم د توپچي اخري خط و چې د سي - ام - سي او بي ام ۱٦ په واسطه یې د مجاهدینو سنګرونه او مرکزونه تر اور لاندې نیول.

له دې کوز هوايي ډګر دی، چې موږ په کې ايله دوې چورلکې وليدی، پر يوه چورلکه کښلي: اين طياره از خود حضرت علی است، هر کس که دعوا کند...

وايي قوماندان حضرت علي دغه چورلکه کې کلی ته د خپلې مانۍ لپاره پخې خښتې، سيمنټ لېږدوي...

ورپسې لومړی نمبر قول اردو دی، چې بېشمېره ويجاړ ټانکونه د ټېلرونو دپاسه پراته او په وسپنو او ورانو شويو وسايطو ډک دی، بيا د ننګرهار عمومي محبس مخې ته راځي او ورپسې سرې ښار ته ننوځي، د مازيګر ځلور بجې، ښار ته ورسېدو.

***

# جلال آباد جګړه

پر جلال اباد برید د شوروي عسکرو له وتلو دوې اوونۍ وروسته د I.S.I په سلا د مجاهدینو عبوري حکومت لېږد ته د مخې موندلو په موخه پیل شو، دا د مجاهدینو لومړنۍ جبهه یي جګړه وه، د امریکا سفیر پیټرتامسن او بینظیر بوټو په ګډه غونډه کې I.S.I ته د جلال اباد جګړې سپارښتنه وکړه. د پېښور ډینز او ګرین هوټلان له بهرنیو خبریالانو ډک وو- لکه مچان چې په خوږو او ګند راټول وي... پر پېښنو پرمختګونو یې خپلو کې شرطونه لګول... افغان ژباړونکو رښتیا درواغ ورته بادول... جنرال ضیاء الحق ۱۹۸۷ کې له امریکایي کانګریس مین چارلي ویلسن سره جلال آباد د کرسمس سوغات په توګه ژمنه کړی و، خو جنرال ضیاء ۱۹۸۸ کې د الوتکې په پېښه کې مړ شوی و... په لومړیو کې مجاهدینو پرمختګ ګړندی و، خو د جلال اباد په لاندې کولو کې پاتې راغلل، چې له کابله یې د رژیم اکمالاتی لار ونه شوای تړلی.

جنرال حمید ګل د جلال آباد نیول د دریو ورځو خبره بلله... استاد

سیاف د عرب جنګیالیو یو غونډ هورې ځای پر ځای کړ... هلته د دوی جلا هدیریه ده...

ISI د ۱۹۸۸ ټاکنو کې د جمهوري اسلامي اتحاد په رامنځته کولو: تم نے ڈھاکه دیا، هم نے کابل لیا «تا ډاکه بایلوده، موږ کابل وګاټه» شعار په راپورته کولو د افغانستان پر ملي پېژنتابه د تیري نخچه وراندې کړې وه... دغه شعار کې د افغانستان لاندې کولو هغه هوس نغښتی چې ISI له مودو د خپل ذهن او تصور ژورو کې پاللی و...

جګړه اوږده شوه، مولوی حقاني له خوست خپل ځواکونه د جګړې لومړۍ لیکې ته واستول، که څه هم دغو ځواکونو په لنډ وخت کې ښه پرمختګ وکړ، خو د ځایي سیالیو له امله له ستونزو سره مخامخ شول....

رژیم په رښتیا له جلال اباد مستقلانه دفاع وکړه، د اکمالاتو لار یې د ځینو قوماندانو په پلور او پېر پرانیستی وساتله.

جلال اباد جګړې په ډاګه کړه، چې رژیم د ځانګړې دفاع وړتیا لرلی، او جلال اباد ساتلی شوی دلته ده، چې سرې ویلي شي د ډاکتر نجیب الله رژیم په رښتیا هم یوې سکتارستي کودتا نسکور کړ.

کابل کې روسي سفیر یولي وارنتسوف په وینا د جلال آباد جنګ کې د لیننګراد جګړو په پرتله څلور برابره پوځي توکي کارېدلي... خونړې جګړه، بریالۍ دفاع همدې ته وایي.

ماته د کابل یو یاد شخصیت (.....) وویل احمدشاه مسعود د جلال اباد جګړې پر مهال له رژیم سره پټه همکاري غځولې وه. دده په وینا په دې اړه د مسعود او ډاکتر نجیب تر منځ د لیکونو تبادله کې د بدو په بڼه او کچه امتیازونو درک لګېدلی شي.

ده يو جنرال غالباً واحد که وحيد ياد کړ، چې په مټ يې د ډاکټر او مسعود تر منځ دغه توافق رامنځته شوی. والله اعلم.

جلال آباد جګړې د کډوالو تر منځ د پاکستان پر نيت د شکونو څپې راپورته او په دې اړه د مطبوعاتو تر کچې نيوکو مخه ونيوله. مجاهد ولس د جلال آباد دفاع کې افغان پوځ ته مبارکي ورکړه.

***

## د ښار په منځ کې:

د جلال آباد ښار کې امنيت ټينګ دی، بازار او هټيو کې د پخوا په څېر جم او جوش دی، د ترافيکو پوليس په يونيفورم کې ولاړ دي...

د هوايي ډګر، قول اردو، ناحيو او دولتي تاسيساتو درندو وسلو او وسايلو ته زيان نه دی رسېدلی، په ښار کې وسله وال نه ليدل کيږي، که سړي په ورانيو سترګې پټې کړي وای، لکه د ثور کودتا د مخه جلال اباد ته راغلی...

مجاهدينو د پاکستان په مينه او د پنجاب د خوښی په موخه پښتونستان څلور لارې نوم پر سيد جمال الدين افغان ... اړولی، ما د باچا خان د زيارت وويل، د احمد ضيا سترګې ړدې وختې وايي، موږ ته کار ګورې که څه کوې...؟

باچاخان د پښتنو د ملي مبارزې د برې هيله ګورته يووړه، خو هغه ارمان چې په ژوندوني يې ونه شوی رژېدی پر مرګ او خپله جنازه پوره کړ...

د ده د جنازې پر ورځ د ډيورنډ کرغېړنه کرښه ماته وه...

نه خاصه دار، نه ايف سي، نه پاسپورټ، نه وېزه، نه مه، نه ودرېږه،

نه څوک يې، نه چېرته ځي، د عدم تشدد يو بل پيغام دا چې له امله يې د هغه مهال مجاهدينو اووه ګوني اتحاد مشر مولوی خالص پر مجاهدينو د درې ورځني او بند غږ وکړ...

موږ د احمد ضيا د کور مخې ته د بابريانو محلې د دربيمې ناحيې اړوند، موټر ودراوه، هغه په ښېره کور ته ننوت چې څو موږ د موټر دروازې بندولې ښېرته راوتلی او کور ته د تلو خبره په خوله وه، ددغې محلې خلک نه وو مهاجر، د جګړې ټول کړاوونه او ستونزې يې همدلته د ګوابسونو غېږه کې تېرې کړې وې.

احمد ضيا د کور يوه ګوټ کې هغه سمڅې ته اشاره وکړه، چې له توغنديو د کور د اوسېدونکو پټنځای و، که څه هم ځينې کورونه په توغنديو لګېدلي، خو محله له اوسېدونکو ډکه او ورانی يې زياتره ترميم کړې وې.

له چای څښلو او لږ دمې وروسته مو د بابريانو کلي لاندې په شنو فصلونو کې يو ساعت چکر وواهه، د (کوه پرچه) په برخه کې د کابل سيند مست او ځپاند روان دی، په رڼو اوبو کې يې لکه هېنداره د سرې مخ ښکارېده، ځوانان او ماشومان لګيا وو، د ژوند له هر درد او دوک ښغمه يې د سيند مستو څپو ته په غېږ ورکولو تر لېرې لېرې په لامبو څغستل.

کب نيوونکو ځای ځای جالونه غوړول او هر ځل به يې له لويو وړو کبانو ډک جال راويوست، غټ کبان به يې ترې ټول کړل، واړه به ورپسې ماشومانو ونيول او ښخي واړه به يې ښېرته سيند ته واچول، کبان به د خپلې دنياګۍ غېږ کې مخ پر وړاندې د ژوند په څپو ورګډ شول، دلته يوې زړه وړونکې منظرې د قدرت د شهکارۍ نماينده ګي کوله، سيند

پلن او څګن بهېده، د سیند پورې غاړې ته ورې او غتې غونډۍ او شا کې یې تور غرونه په یوه موازي لیکه پراته دي، د پراخ او پلن سیند په مینځ کې واړه ټاپوګان سپینو او مرمرینو ډبرو پوښلي، په ځینو ځایو کې سیند په دوو او څو لارو روان و، خو لږ وړاندې به دغه لارې بېرته سره یوځای شوې وې.

دې غاړې ته شنو فصلو او ګورو ځنګلو کې مرغانو د څپو له شور او زور سره خپل خواږه اوازونه لکه په زېرو بم کې نغښتې نغمې مله کول.

د مازیګر اودسونه مو د سیند په شګلنه لمن کې چې ښایسته کاڼي پرې غوړېدلي و، په همدغو رڼو اوبو تازه او د سیند غاړې په ښایستوکي چمن کې خپل رب ته د عجز او نیاز سجده ولګوله.

مازیګری شمال د ورځې ګرمي په مخه اخیستې، نرۍ پسته هوا چلېده، موږ هم د دغې روح پالونکي نسیم سره د ښار پر لور مخه کړه.

احمدضیاء! که لار راوښیي چې د غازي امان الله خان زیارت وکړو په لږ ځنډ لکه د زړه خبره چې خولې ته نه شي راپورته کولی وویل پر مخامخ سرک چپ اړخ ته... بس بس همدلته... ما په لوړو ګومبزو پسې کتل، خو ده، پر یوه سپېره پارک وربرابر کړو... لار له خلو خځلو ډکه ده، نه ګومبزه ښکاري نه کومه بله نښه... وړاندې تر یو چتر لاندې خړ پړ قبرونه دي چې د تورو مرمرو پوښ پرې غوړېدلی... د چت له پاسه د باران اوبو کړې وړې کرښې ایستلې، ځای، ځای چت رالوېدلی... ډبرلیکونه د عزیز الدین وکیلي پوپلزي دی، چې تر دوړو لاندې په ګرانه لوستل کېدی شوی...

ما له اوږې څادر راواخیست د قبر پاکولو ته ورکوږ شوم، پیر صاحب مې لاس ونیو چې څادر ده ته ور پرېږدم... ما څادر نور هم

ټينګ کړ چې زما خپله خوښه ده... وزير صاحب محمد ګل خان مومند مرحوم د څادر دېرې ګټې په ګوتو کړې دا يې يوه بله شوه...

دوی چې څادر نه لرل پيکه ولاړ وو، له قبرو مې دوړې پاکې کړې، فاتحه مو ولوسته، دعا مو وکړه... ژر ژر مې دبرليکونه نوټ کړل...

له کلمي شريفې لاندې

اماني نښان

الغازي امان الله پادشاه افغانستان

از ۱۲۹۸- الی ۱۳۵۷ هجری شمسی

مطابق ۱۹۱۹- الی ۱۹۲۸

تولد ۱۲۷۱ هجری شمسی مطابق ۱۸۹۲ میلادی

وفات ۱۳۳۹ هجری شمسی مطابق ۱۹۶۰ میلادی

نه القاب، نه خطابات- نه دکارنامو ياد... يو اړخ ته د نايب السلطنة سردار عنايت الله خان او ملکه ثريا قبرونه په ورته بڼه او لنډو دبرو ليکونو سره...

لکه شاعر چې وايي:

بر مزار ما غريبان نه چراغ است نه گلی
نه پر پروانه ســــــوزد نه صدايی بلبلی

د سراج الملة والدين امير حبيب الله خان قبر په بېله بڼه لړ لوړ جوړ دی، دبر ليک يې جلا بڼه لري، ليکنه يې هماغسې لنډکی ده، د واکمنی، وفات او زېږون پر نېټو را ګرځي... د کاتب نوم يې لکه نه دی ليکلی...

له احمد سينا سره د پيداګوژۍ انستيتوت انګړ ته ننوتلو، د دروازې په خوله کې څو تنه مجاهدين په يوه اوږده څوکۍ ناست دي، له په خير

راغلئ سره مو د انستيتوت ودانۍ خوا ونيوله، احمد سينا د انستيتوت د هرې برخې په اړه معلومات راكول، د ټولګيو، ادارې، ليليې او نورو... په دې كې به يې د خپلې زده كړې د وخت د شوخيو او ساتېريو خاطره هم ورغبرګه كړه، له لږ ګرځېدو وروسته د انستيتوت د تدريسي ودانۍ تر شا چمن كې كېناستو، پخواني يادونه، د ستو كندو خاطرې، د جنګونو او بمباريو كيسې مو سره وسپړلې.

ماښام جمهوريت باغ ته ولاړو، چې پخوا په شاهي باغ يادېده د داود خان جمهوريت كې يې د جمهوريت نوم پرې ايښى و، له ثور كودتا وروسته يې پرې د باغ خلق تاپه لګولې، خو هيڅا هم په دغه نامه نه ياداوه.

غوښتل مو ننګرهار والي ښاغلي حاجي عبدالقدير سره وګورو، خو هغه ولايتي شورا لړله، د انتظار ستغې مو تېرې نه شوى كړى بېرته مو د احمد ضيا د كور مخه ونيوله، په لاره كې مو د ننګرهار كميسارۍ ته چې د مولوي خالص قوماندان پير بخش مركز و، سر ورښكاره كړ، د ماښام لمونځ مو هورې وكړ، خو نه مو قوماندان پير بخش وموند او نه يې مرستيال فريد.

له لمانځه وروسته د ښار له هغې برخې چې د قلعه جواد حضرت بارګاه او جومات و تېر شو، د ښار په ځينو برخو ګرندي وګرځېدو، د ملي بس سرويسونه تر تېر ماخوستن د ښار بېلا بېلو برخو ته تلل، د ورځې له خوا تر تورخم، درونټې او سره رود ولسوالۍ پورې هم ملي بس چلېدل.

د ښار زياتره دوكانونه پرانيستي، هوټلونه له مېلمنو ډک دي خو ښار چوپ دى، لكه چا د ژوند سندرې په خوله لاس ايښى...؟ احمد ضيا

کور ته په رسېدو، وويل: وگورو تلويزيون څه خپروي، د تلويزيون په تنيو يې گوتې ووهلې، د جلال اباد تلويزيون هره شپه له اتو تر لسو بجو دوه ساعته خپرونې لرلې، له ديني موعظې، د حالاتو په رابطه سياسي تبصرې، خبرونو، جهادي ترانو او تمثيلي پارچې سربېره د کشمير جگړې يو مستند فلم چې پښتو دوبلې شوی و، وښودل شو، همدارنگه د جهاد ځينې صحنې او منظرې يې هم د پروگرام په بېلا بېلو برخو کې ښکاره کولې.

د خپرونې په مينځ کې د ښاروالی او ملي بس اعلامیې او خبرتياوې خپرې شوې، د تلويزيون دوه ساعته خپرونه د موسيقي د نه شتوالي له نيمگړتيا پرته په زړه پورې وه، که څه هم ملايي رنگ پرې غالب و.

په زړه پورې خبرتيا په دې ټکو وه... انجنير عبدالغفار د... زوی دوې عرادې لنډکروزر موټر چې د انجن نمبر يې... او... دی پر انجنير گلبدين حکمتيار د... زوی پلورلی وه که څوک ورسره معامله لري، تر دريو ورځو پورې د ننگرهار ترافيکو نه خبر ورکړي...

همدا حال د هوټلونو او رستورانونو هم و، چې له يوې نيمې جهادي ترانې پرته په کې چوپتيا وه، ننگرهار ورځپاڼه خپرېده، په داسې حال کې چې د کابل ورځپاڼې هره ورځ نه شوی خپرېدی.

موږ د تلوېزيوني خپرونو ترڅنگ د چلمچي او کوزې اواز ته هم د زړه غوږونه څک نيولي وو، څومره چې ځنډېده، هماغومره زموږ انتظار د زغم په ځنډېدو د وراوښتو ناکامه هڅه کوله، چې د دروازې د ببرته کېدو غږ به مو واورېد، سترگو ته به مو دسترخوان او لوښي ودرېدل، موږ دلته د انتظار سختی يو ځل بيا په خپل ټول تريخوالي له ستونې تېرې کړې، همدا وخت و چې د مرحوم استاد الفت په خبره پر موږ د

رباب له ترنگ د کوزې او چلمچي کړنګ ښه لګېده.

دير آيد درست آيد، احمد ضيا دسترخوان دومره اوږد وغوړاوه، چې مونږ يې له يوې بلې حيرانۍ سره مخامخ کړو، داسې خواړه يې برابر کړي و، چې مونږ يې تر خپلې وارخطايۍ او انتظاره ټيټ سترګي کړو، يوازې دا نه، بلکې حيران او تلولي يې هم، چې لومړۍ په کوم لوښي ګوتې پورې کړو، پر چای مو د احمد ضيا له يوه خپلوان سره چې تجربه کار دهقان و، د جلال اباد د ځمکو، کرنې او مالدارۍ په هکله خبرې وکړې، له لمانځه وروسته مو د خوب رنګين عالم ته پناه يوړه، داسې د مزې خوب مو وکړ، چې ايله مو د سهار لمونځ ونيولی شوای، له لمانځه وروسته مو بيا په خپلو بسترو سرونه ولګول او دا ځل مو په ويښه د خيالونو او سوچونو په پراخه دنيا کې د خپلو هيلو او ارمانونو نيلۍ وزغلول.

تر هغې چې چای رارسېده، مونږ هره يو د خپل ذهن په پرده په ازاد اسلامي افغانستان کې د خپلې راتلونکې او اميدونو رنګين جهانونه انځور کړي و، چای تر بېګانۍ ډوډۍ کم نه و، داسې يې وګڼه لکه مونږ د غرمې ډوډۍ په همدې سهار کې نوش جان کړې وي، په دې توګه چای زمونږ پوره وخت ونيو نژدې يې راباندې نيمه ورځ کړه، مونږ چې حرکت وکړ، بازار او هټۍ پرانيستي او له پرونه په کې زيات جم او جوش و، په بازار کې ګڼ دوکانونه د سکانو وو، چې تر خولې له مالونو ډک وو، د ښوونځيو ماشومان دلې دلې روان وو، په تېره سک ماشومان خورا ښکلي معلومېدل، د هرچا نظر يې جلباوه، د سرونو وېښته يې په خړو دسمالونو تړلي وو، نجونې هم ښوونځيو ته تللې، له سره تر پښو تيکريو کې نغښتې وې.

د ننګرهار ورځپاڼې نوې ګڼه چاپ او خلک يې په مطالعه بوخت وو،

ما له دوکاندار یوه ګنه واخیسته، که څه هم چاپ یې حروفي و، خو صحافت یې بد نه و، له شعر، تبصرې، سرمقالې او مضامینو سربېره په کې د ښاروالۍ اړوند د داوطلبۍ اعلانونه خپاره شوي و، په کابل کې د مجددي حکومت او ښاغلي چکري وزارت لا نه و توانېدلی ورځپانه چاپ کړي شي، سره له دې چې له پېښوره یې کمپیوټر تیکنالوجي هم لېږدولې وه، خو ننګرهار کې د رژیم له سقوط ایله دوې ورځې ننګرهار ورځپانه څنډېدلې او له هغې وروسته هره ورځ پر خپل وخت خپرېدله، د سړک غاړې پر دېوالونو لیکل شویو شعارونو سړی یوه شېبه بوخت ساته، هماغه د اسلامي شریعت او حکومت د ټینګښت ایډیال شعارونه، د مجاهدینو د ستاینې بې وزنه بې خونده بابولالې...

د کابل پر لار د څارندوی له قوماندانۍ په تېرېدو زېبا هوټل مخې ته راځي، دلته غرني غونډ او لږ وړاندې د قند فابریکه ده، چې له فعالیت لوېدلې، دا فابریکه د داود خان په صدارت کې رغېدلې، چې له ګنیو یې د ګوړې پرځای بوره تولیدوله، خو له لږ فعالیت وروسته په ټپه درېدلې.

غالباً پاکستان به یې په خپل جادویي اغېز فعالیت شنډ کړی وي، کله چې طب پوهنځی جلال اباد کې پرانیستل شو، داسې تبلیغات کېدل، چې اوس به د شا و خوا هدیرو مړي دطبي ازموینو لپاره باسي، وایي خلکو تر دېره په خپلو هدیرو د شپې پیرې کولې...

له دې وړاندې د کانال ریاست او لږ اخوا سرخ اب پل دی، چې د مجاهدینو او روسانو د سختو او خونړیو جګړو دګر پاتې شوی، له دې کوز د ننګرهار پوهنتون دی، چې اوس یې ورسره اسلامي ټکی نښلولی...

له هغه وړاندې د درونټې بند مخې ته راځي، پر دېرلیک د بریښنا کوټ د جوړېدو نېټه... او تاریخچه ده، چې له ښه بخته انقلابیانو نه ده

نړولی...

په دې پسې د کابل جلال اباد لارې د امنيت قرارګاوې دي، چې د ويجاړو موټرو او وسايطو انبارونه په کې پراته دي، په همدې ځای کې د کبانو د روزنې پروژه ده، دلته چې څومره سترګې ځار کولی شي، له کنډوالو پرته په سمه نه لګېږي، بس د نظر په هر پېر کې د عصر د يرغلګرو د ستم داغونه دي، چې د ورانيو ويجاړيو په بنه پاتې دي، په دې پسې د سرخکانو پل او د لغمان په کڅ کې د جلال اباد کابل سړک غځېدلی، په دې وخت کې چې د پير صاحب د دمې لپاره موټر چلولو ته ما اوږه ورکړې وه، د يوې زړې لوحې په لوستو ناڅاپه زما پښه د موټر په بريک ښخه شوه، موټر ځای پرځای ودرېد، پر لوحه ليکل شوي ((د پښتو د نومیالي شاعر او ادیب مرحوم ګل پاچا الفت مزار) له موټر کوز شو، خو مزار ته د تلو په اړه ملګري دوه زړي وو، ځکه چې لاره نه معلومېده، داسې ښکارېده چې ډېره موده چا دېخوا پښنه نه ده کړې، لار اغزيو نيولې، انډيوالانو ويل چې په مينونو ورسيخ نه شو، چې سيمه کې يې خطر زيات و.

خو د عقيدت جذبه بل شان وي، زموږ زړه ته يو ډول کرکه لوېده، چې له زيارت کولو پرته ولاړ شو، د الفت صاحب د مزار احاطې ته ننوتلو، دده د مزار ډبرليک چې د وصيت شعر او د وفات نېټه پرې ليکل شوې، يو ځنډه ماته وه، لکه مرميو، مردکيو پرې خولې لګولې وي، په احاطه کې څو نور قبرونه هم وو، چې يو په کې د سيد فقير پاچا و، چې د هغوی پر لوحو هم ځای ځای ګولی موښتې وې.

د استاد الفت د ليکنو څرګند امتياز صداقت دی، ځکه خو يې ليکنې، شعرونه د واره روح ته لاره مومي او پر زړو پريوځي... استاد د

سیاست کراړې دبښتې ته د صداقت د رڼو او زمزمي اوبو د ورخ په ورماتولو سیاست پر صداقت خړوب کړ، ژوند، مبارزې، لیکنو او سیاست کې ملي صداقت د استاد الفت له فکر او قلم روحاني ادب پنځولی، څکه خو د ادبي بزرگۍ او ولایت مقام ته رسېدلی، د برخې خاوند گرځېدلی دی...

له دې کوز د سرکنډو بابا زیارت مخې ته راځي، چې موټر هم اکثراً دلته درېږي، دلته مو مخ لاس پرېمینځل، سړې اوبه مو وڅښې او بېرته مو سفر ته دوام ورکړ.

څومره چې مخکې تلو، لار د سیند د مستو څپو پر غاړه تېره شوې، دلته ورو ورو غرونه سره نږدې کېږي، د غرونو په مینځ کې ایله دومره فاصله ده، چې سیند او سړک په کې تېر شوي دي.

موږ له دې خوا گرندي روان وو او د سیند څپو له هغې خوا لکه مست اوښان څگونه بادول، سیند په مستې له کمرونو او لویو گټو سره دخپل سر تندي په جنگولو پر غورځنگو روان و، څپې وې چې یوه په بله پسې اوښتې، موجونه و، شور و زوږ او د حرکت یوه نه ختمېدونکې هنگامه او سلسله.

طبیعت دلته د خپل حُسن او کمال یوه تلپاته منظره انځور کړې، ځای ځای د سیند پر غاړه ونو او دواړو څنډو ته اسمانڅک غرونه داسې معلومېدل، لکه د یوه ماهر نقاش په گوتو جوړه شوې تابلو، چې چا د کوټې پر دېوال ځړولې وي.

موږ د همدغې زړه وړونکې منظرې په رنگینو ننداړو کې ډوب یو، له جگرې لېرې له دردونو او غمونو گوښې، د بمونو او گولیو د لمبو او لوگي له تصور نه اخوا مو د خیالونو په زرغونه دښته کې د حُسن او

ښکلا په ساحل کې سترګې نه وې سره ورغلې، چې وريښمين تنګي کې مو د يوې خونړۍ جګړې نښو او يادونو سترګې وسوځولې.

وريښمين تنګی سوځېدلو ټانکو او عسکري ويجاړو شويو وسايطو نيولی، لاندې په سيند کې ګڼ ويجاړ ټانکونه پراته دي، د سړک غاړه خو له يوې مخې په سوځېدلو او ورانو ويجاړو ټانکونو ډکه ده، د دغې صحنې په ليدو موږ يو ځل بيا د خيال له ارام ساحل د جګړې په څپو ورګډ شو، د اوږدې تپل شوې جګړې ورانۍ، بربادۍ، قربانۍ او سرلوړۍ په سر واخيستو او په دغه اوږده موده کې د خپل لالهاند او له دغرو او مرګونو سره د متصادم ژوند په کنډوکپرو، کې په تيندکونو شو.

د سروبي فابريکه چالانه ده، خو د ګوليو ړلی پرې ډېره زياته اورېدلې، له دې پرته د برېښنا کوټ ودانۍ ماتو هېندارو او کنډو کپرو دېوالونو د يوې خونړۍ جګړې د ماضي ورانوونکي تصويرونه په خپله لمن کې ځای کړي و.

د فابريکې مخې ته د مولوي خالص مجاهدين ناست دي، چې په سترګو کې يې د ويرونو او وياړونو ډکه غوسه له ورايه ځلېده.

له دې وروسته بيا تر نغلو د اوبو يو شين ډنډ دی، چې د سترګو او نظر مارغه په کې د خلاص مټ الوت کولی شوای.

څه کم يوولس بجې وې، چې سروبي ته ورسېدو، شهرک کې مو له مولانا عطا محمد سره دوې درې خبرې وکړې، د شهرک ښکلا د جګړې لمبو له يوې مخې سوځولې، نه هغه رنګين پارکونه وو او نه د ونو او ګلانو هغه خياليګر کتارونه... چې دې ځای ته د کلونو مخکې راتګ نه مو په ذهنونو کې پاتې وو.

ختينو کړو وړو دېوالونو... د توغنديو په لګېدو ژورو کندو د شهرک

پر ښایستونو اور پورې کړی، اغزو او ځوزانو د گلانو او زینتي بوټو لمن ورټوله کړې سپېره سیلۍ او بربوکۍ په کې په انگولا ده...

مولانا صاحب ته وایم... دا ولې...؟ سترگو کې یې اوښکې ډنډ دي... پټه خوله یې د مخې ښې غبږ راکړه...

اوښکې بېوسې او کمزوري ده که ځواک او قوت...؟

مولانا صاحب په دوو کې حیران کړم...

له جلال اباد وروسته سړک خراب او کنډ کپر دی، موټر باید په ډېر احتیاط چلول شوی وای، د ماهیپر غاښی د پخوا په شان هیبتناک او پرتمین دی، لاندې سیند هماغسې خپاند او ځگن بهېږی، غرونه او گړنگونه دي، چې په غېږو کې یې د اوښانو اوږد کتار روان دی، د غره پر دنگه غاړه د سړک سپېرې لیکې او لاندې د سیند تکو سپینو اوبو او د سړک مارپېچ کږښې داسې معلومېدې، لکه د ځمکې او آسمان ترمینځ کومه لاره غزېدلی وي، د ماهیپر برېښناکوټ چالان دی، خو هغه پخوانی رونق یې نه دی پاتې، د جنگ سوځوونکو لمبو ایرې برباد شوې، ماشینگنو او دهشکو پرې زړه یخ کړی، د جرمني انجینرانو کورونه چې د سیند پر غاړه له سړک لاندې جوړ او گورې ونې په کې وې، له سپېرو خاورو او کنډوالو پرته هېڅ نه شوی لیدل کېدی.

له ماهیپر کوز سړک ښه دی، چې په دې وروستیو کې پرې له سره قیر اچول شوی، پلچرخي ته په نژدې کېدو چې یو وخت شین ځنگل او گورو ونو د مساپرو هرکلی کاوه، سپېره ډاگ اوښتی.

## ناکراره تلوسه:

یوې ناکرارۍ تلوسې په مخه اخیستي یوو، د یوې اوږدې تندې ماتېدو ته مو شېبې شمارلې، او د یوه زمولوونکي بېلتانه له تیارو مو د راوتو مخه لټوله... د خرخي جېل وحشتناکو یادونو مو پر زړو زلزله گډه کړه، چې اوس تش تور دی.

د زغره والو ځواکونو تاسیسات سپېرې کنډوالې پاتې دي، گورې شنې ونې، خو یا له سره وې نه او که کومه یوه پاتې هم وه، نو وچې لغړې څانگې یې داسې معلومېدې، لکه دخدای تعالی دربار ته یې له دغه وحشت او بربریت نه د خلاصون په دعا د عجز او نیاز لاسونه نیولي وي.

دلته دېوځ د لسو کلو لوژستیکي زېرمه وه، چې ټول مواد او وسایل یې چور او لوټ شوي، په بازارونو کې یې انبارونه پراته دي، عجیبه خو دا چې کابل ادارې دغه مواد په بیه له قوماندانانو پېرودل.

د حربي پوهنتون ودانۍ ړنگه بنگه، او سوځېدلې، له دې مخکې د کابل صنعتي سیمه هم یوې وېرانی ته ورته ښکارې، په دغه صنعتي پارک کې چې په لسگونو شخصي او دولتي فابریکې ودانې وې، ټولې په تپه ولاړې دي، ماشینونه، تولیداتي زېرمې او مواد یې له یوې مخې چور او تالا شوي، د دغو کارخانو تاسیسات د کلونو په اوږدو کې رغېدلي، خو په څو ورځو کې لوټ او پوپنا شوي دي.

فکر مو کاوه زموږ لپاره به هېڅ یوه خوا او دله گواښ رامینځته نه کړي، ځکه زموږ مشر د کومې دلې، تنظیم او جریان په پلوي نه بلکې د سولې او امنیت د داعي په توگه د جگړې د بېخي ختمېدو په لار کې د

خیر غوښتنې د قافلې رهبري کوله.

خو بیا هم موږ د مجاهدینو له یوه پاټک د وضعیت او حالاتو پوښتنه وکړه، خو هغه داسې مطمین کړو، لکه خپل منزل ته رسېدلي وو.

د مجاهدینو په وروستي پاټک کې مو یو ځل بیا پوښتنه وکړه، دلته یې له هغه زیات ډاډ راکړ، ځکه خو موږ هم په تکیه زړه خپل مزل ته دوام ورکړ، کله چې د حکومت تر کنټرول لاندې سیمې ته داخل شو، هلته یې زموږ اسناد وکتل او بې له کومې پوښتنې یې بېرته راوسپارل، د ګلم جمو له یوې پوستې مو ځان بچ او د پل محمود خان نه وړاندې د مراد خانی پر سړک د پلخشتي تر مخ سر چوک ته ووتلو، زموږ منزل چهلستون و، چېرې چې مولوي جلال الدین حقاني د سولې په کوښښونو بوخت دی او دا څه موده مخکې یې د جګړې د بېخي ختمېدو او سولې تینګښت مسوده د طرفینو له خوا له لیکلې موافقې وروسته اعلان کړې وه.

## د مرګ کومی:

زه دلته د مرګ پر تجربه اوښتی یم، ما د کیسه خوانی کتاب پلورنځیو کې یو کتاب "د مرګ منظر" په نامه لیده په زړه پورې مې کوت...

خو پانې یې د مرګ له تجربې تشې وې که چا د مرګ څکه کړې وي ځومره تریخ به یې موندلې وي، پر سړي مرګ څرنګه راځي او دغه کیفیت څه وړ نورو ته په تورو ټکو کې رسولی شي، که څه هم خیالي

وي، ماته د زړه یوه ډاکتر پر ځان د هارت اټیك عجیبه کیسه کوله، چې د ده په وینا د زړه له حملې د څو ثانیو لپاره مړ وه، خو د خپلو ملګرو ډاکترانو په هاند د مرګ له کومې او منګولو راوایستل شو، خو د مرګ هغو څو شېبو انځورنه یې کله هم په تورو ټکو نشوای وړاندې کولای...

زه داسې ګڼم لکه له مرګ وروسته په بعث بعد الموت اوښتی یم، ځکه خو تاسې ته د مرګ کیسه کوم، د مرګ منظر درته وړاندې کوم.

ددغو مرګانیو شېبو انځور که په تورو ټکو کې ناشونی نه وي، په خدای چې ګران ضرور دی، زه نه پوهېږم خپل او د خپلو ملګرو حالت او رواني وضعیت څه ور کښلی شم، د ټکو لفظونو په موندلو کې حیران یم.

له ژوند لاس مینځل او د مرګ وېروونکی هیولا ته د ځان سپارلو تجربه سړی څرنګه نورو ته ښوولای شي...؟

د مرګ په خونړیو منګولو کې د سا اخیستو کیسه په تورو ټکو، جملو کې نه شي راټولېدی چې د دغو شېبو وېروونکي خیالونه لکه د څړمونې وریځې په نري شمال خواره واره شي.

تاسې ما په دغه کیسو کې د خپلو زخمي احساساتو په بغاوت پړ مه ګڼئ، په هغې کمزورۍ مې هم ګرم مه بولئ، چې په تورو ټکو کې د دغو شېبو په نغښتلو کې یې زما پر وړاندې کومې شلولې.

***

## خونړۍ منګولې:

د پلخشتي جومات ترڅنګ میوند ځلي په لور روان یو، سرچوک ته په رسېدو نابېره مخې ته د ګلم جمو ډله خدای خبر له څمکې را وتوکېده

که له هوا راتوی شوه کلا بند کړو، ماته خوست رایاد شوه، چې ډلې، ډلې ګلم جم د شرمېدلې ماتې له رسوایۍ سره غبرګ یوه او بله خوا ځورند سرونه پنډ وو، موټر مو ودراوه او دوی لکه وږي لېوان دموټر شاوخوا تاو شول، کارت مو ورکړ، خو په لوستو یې نه پوهېدل، پوښتنه یې وکړه، د چا کسان یي، موږ ویل د حقاني صاحب، بله یې نه زده: (تا شوین تا شوین) او له دې سره یې زموږ ګرېوانونو ته لاسونه اوږده کړل.

احمد ضیا د وخته له موټره کوز شوی و، موږ یې په ټېلو ټېلو د یوه محاربوي ماشین خواته بوتلو، ما فکر کاوه، که له کوم قوماندان سره یې خبرې وکړم، کېدای شي په خبره پوه شي، له یوه تن مې د قوماندان پوښتنه وکړه، ویل او خودش جنرال است، مطلب یې هغه څوک و چې موږ یې له موټر کوز کړي و.

د محاربوي ماشین تر سینه لاندې دمخې برخې دروازې یې خلاصې کړې، په قهرجنه لهجه یې وویل، بالا شو، هلته د وسپنو ټوټې د کیبل تارونه او څو د ټېلو ګیلنونه پراته وو، چې د یوه تن هم ځای نه په کې کېده، خو احمد ضیا وختې په کې ځان ځای کړی او له وحشت په ډکو سترګو یې موږ ته رنه رنه کتل، احمد سینا چې ټانک ته په ختو کې لږ ځنډ وښود د یوه تن د راکټ له وار سره له ټانک سره جوخت شو، خو ده فکر کاوه، ګنې موږ پرې شوي ګوزار ته نه یو متوجه شوي، څرنګه چې موږ ټول د ټانک تر سینې لاندې نه شوی ځایېدی، ځکه خو یې د کلاشینکوف په څوکه د ټانک سرته د ختلو قومانده راکړه، موږ هم اتومات د ټانک سره ته وختو، دلته زموږ په جېبونو اخته شول، ژر ژر یې دجېبونو تالاشي واخیسته او چې څه په لاس ورغلل، افغانۍ وې که کلدارې له جېبونو وېستلې، خدای خبر یو بهرنی خبریال له کومه راپیدا

شو د خپلې کمرې سترګه یې تر ډېره زموږ د مظلومیت، د ګلم جمو وحشت او د اسلامي حکومت د مشروعیت نندارې ته نیولې وه.

محاربوي ماشین ډېر ګړندی راوګرځېد او پر میوند واټ د چمن پر لور روان شو، د واټ په پای کې کیڼ لاس ته د عیدګاه جومات پر لور وګرځېد، د جمعې ورځ او د غرمې یوه بجه وه، په دې ورځ استاد رباني د عیدګاه جومات کې د لمانځه او وینا پروګرام درلود، دده اواز چې له لوډسپیکر په زېر او بم خپرېده، زموږ د غوږونو پردې او د زړه تارونه ښه وتخنول، د رباني صاحب له خبرو، حرکاتو، اکتونو، څېرې او عادتونو سره زه ښه اشنا یم، ځکه خو مې دده د خبرو د انګازو تر شاه دده څېره او وضعیت ښه لیدلی شوی، چې څومره به یې د اسلام، جهاد، شریعت او مجاهدینو بریالیتوب شعارونه تشریح کړي وي.

کېدی شي پر دې ورځ د عیدګاه جومات کې خطبه هم دده په نامه ویل شوې وي، وروسته خبر شو، چې د کابل ځینو جوماتونو کې د استاد رباني، ځینو کې د مجددي او چهار اسیا کې د حکمتیار په نامه خطبې ویل کېدې.

ماته د شهید عزیز الرحمن الفت لیکنه "دین را باید از خدمت ارتجاع و استبداد نجات داد" په زړه شوه...

هغه لیکنه په همدغو ټکو راګرځېده چې دین څرنګه د سیاستونو او اقتدار پایبنت او ننګې ته د درباري ملایانو لخوا استخدام کېدای شي، محراب او منبر د واك د چوپړ او خدمت وسیله ګرځي...

ټانک د مرنجان غونډۍ په خوا ځغاست، د استاد رباني د وینا انګازې زموږ ترمخ د هوا په وزرو ځغلېدې.

د غونډۍ لمنې ته نژدې ټانک وګرځېد او په یوه احاطه ننوت، دلته

یو وخت د ممتاز په نامه د تېلو ټانکرو ترانسپورت و، چې د شاهي کورنۍ د ځینو افرادو د سهم او پانګې خبرې پسې کېدې.

ممتاز د پکتیا ځاځیو لویه او درنه کورنۍ ده، چې ترانسپورت کې یې درنه پانګونه لرله... پر ټانکرو یې پښتو کښلې وه، چې هغه وخت کابل کې له کولتوري تسلط د بغاوت اندول ګڼل کېده...

د داود خان له جمهوریت سره ددغه ترانسپورت په ضبطېدو د پولیسو دویم نمبر منتظره قطعه په کې وه، موږ یې هلته په ننوېستلو له ټانک نه کوز او په داسې حال کې چې په هر یوه پسې یو یو کلاشینکوف والا روان و، یوې تنګې تروشې کوټې ته ودرولو.

د ودانۍ دریو خواوو ته پر یوه لیکه د کوټو ورونه ختلي، قبلې یا لویدیز ته د خښتو نوی دیوال دی چې دروازه کې یې بیلر ایښي، چې وداني یې پر دوو برخو وېشلې ده. د کوټې د دروازې په بېرته کېدو د بوی یوه لړه پورته شوه، کوټه به وه په اوږدو دوه نیم او سور یو نیم متر، موږ چې ورننوتو د کېناستو ځای نه و، له موږ مخکې لس تنه په کې له څو ورځو مېلمانه وو، خو له څه ځان ټولولو وروسته ایله دومره وشول، چې په ناستو په کې د پښو په سر ځای شوو ما بیا هم د قوماندان پوښتنه وکړه او لا تر اوسه په دې خیال وم، که له کوم په خبره پوه او باسواده سره مخ شم.

ټول پته خوله دي، لکه خولو ته یې کولپونه اچول شوي، نه یې خپلو کې خبره کوله، نه یې موږ په کومه خبره پوهېدلو، لکه په سپېرو او مرموزو کتو دې زړه خوري، ګونګیان دي که څه بلا...؟

په کوټه کې مې موجود کسان یو یو له نظر تېر کړل، څلور تنه لوستي معلومېدل، خو نه یې غوښتل له موږ سره خبرې وکړي، د پاتې

نورو کسانو خبرې او حرکات، لکه د جوارګرو، چرسیانو... درې تنه په کې له ورایه ګلم جم معلومېدل، په دې کې یو تن چې له عمره خام ښکارېده او ږیره برېت یې نه وو راغلي، خو غټ او پرېړ وجود یې ښځېنه ښېره ښووله، له موږ سره خبرې پیل کړې، خو د هغه خبره په ما بده ولګېده، ځواب مې ور نه کړ، زما چې خپلی په پښو وې، یوه تن چې د چرسو سګرتی یې لاس کې و، ووېل قربانت شوم، چپلی ات بکش، چرت ته خراب نکن از ماره یک افته میشه امینجه افتیدیم ری نمیزنیم.

شپږ نفري ګروپ هر یو لګیا شو او څه چټیات نه وو چې ویې نه ویل، یوه شاه لوڅه کړه، چې له وهلو تکه شنه وه، بل خپلې متې او پندۍ وښودلې چې وینې په کې پند وې، په زړه کې وایم له دې خو یې پته خوله ښه وه...

د کوټې کړکۍ او دروازه کلکه تړل شوې، هېڅ چاک او چوله نه په کې معلومېدل، ما ورته ووېل موږ له مطبوعاتو سره پېیلې یو، د حکومت له جمهور رییس، وزیر دفاع او نورو سره بلد یوو. یوه په کې زما خبره غوڅه کړه ویې ویل: نام مسعوده نګی که حلالت می کنه... ما فکر وکړ له دوی سره خبرې بېله دې چې ګټه نه لري، مناسبې هم نه دي، غلی شوم، د خولو تروش بوی، ګرمۍ او تندې داسې لوبه راخیستې وه، چې ژبې مو په تالو پورې کلکې نښتې، داسې راته ښکارېده لکه ژبه مې خوله کې نوره نه ځایېږي... د اوبو مې ووېل، یوه شنه پلاستیکي په خیرو پته کوزه یې ونیوله، ویل بیګی قربان فانتا اس، ما چې په نه زړه کوزه خولې ته کړه، نو داسې یو تود او بوین محلول مې خوله کې و، لکه د تېلو ګیلن مې پر سر اړولی وي، چې کوزه مې ژر بېرته کېښوده، هغه راغبرګه کړه، چرا... ایجه هر که امده اول امتو میباشه.

موږ ته بیا وروسته معلومه شوه، په کوټه کې څلور تنه چې مهذب او تعلیم یافته معلومېدل زموږ غوندې بندیان وو، هغوی یې هم له پیک اپ سره راوستلي وو څلور نور د دوی خپل د ملېشې افراد وو، چې د لوټمار پیسې یې له قوماندان پرته خپلو کې وېشلې وې او هغه د ښځینه څېرې خام غټ پرېړ ځوان د ګلم جم ملېشې یو ډګروال و، چې د قوماندان له خبرتیا او سهمیې پرته یې مهمات او کلاشنکوف پلورلي او خپل یو ملګری وژلی و.

## د مرګ سفر، د هوايي ډګر پر لور:

نیم ساعت لږ زیات وخت به وتلی و، چې د کوټې دروازه بېرته شوه څو تنه د دروازې په مخ کې بېرني ودرېدل، موږ څلورو ته یې د راوتلو اشاره وکړه، د یوه له خولې ووتل ((میدان هوايي)) له دې خبرې سره د هغه څلورو مهذبو بندیانو له خولې ناځاپه ((اوف)) ووت، موږ یې کوماز لارۍ ته وخېژولو، د موټر په باډۍ کې دواړو خواوو ته کېناستو، یوه یې د کلاشینکوف قفاق کش او مرمۍ تېره کړه او موږ یې کتار د موټر یوې خواته کېنولو، دوی ګوته پر ماشه زموږ مخې ته کلاشینکوفونه ونیول او کېدی شوی له یوه جمپ سره د کلاشینکوف دېرش مرمۍ زموږ په سینو کې تشې شوې وی، تر داسې کلکې څارنې لاندې، لکه د ډېر سخت جرم په تور نیول شوي یې د غرغرې په لور روان کړي وي، داسې لکه د جګړې په ډګر کې چا د دښمن ډېر غټ قوماندانان نیولي وي.

زموږ زړونو ومنله، چې دا مو د ژوند وروستۍ شېبې دي، د څرخي پله زندان کې د بندیانو د وژلو، او پولیګون کیسې رایادې شوې او دا مو

وګڼله چې موږ هم د دغسې وژل شویو زرګونو مظلومو هېوادوالو له کاروان سره یو ځای کېدونکي یوو، دلته له یوې مخې د مرګ تصور زما له سره کډه وکړه، د زړه درزا مې ورکه شوه، د وېرې احساس مې له مغزو ووت او نور نو د مرګ او دار ټول توهمات او سختۍ زما له زړه او ذهن ووتلې، یوازې یوه وېره او سختي مې په مخه کې وه، او هغه دا چې هسې نه زما ملګري یو یو زما تر مخې په کلاشینکوفونو غلبېل او ما ترې وروستی کړي، دغه تصور دومره تریخ او سخت و، چې د هغې تریخوالی او سختي اوس هم زما له خولې او مغزو نه ده وتلې.

موږ یې د هوایي ډګر له ختیزې دروازې تېر کړو، خو لږ وړاندې یې بېرته موټر وګرځاوه، په لار کې د احمد شاه مسعود او رباني عکسونو قیامت جوړ کړی، بنار ټول شعارونو او تصویرونو نیولی، د ازادۍ او فتحو مبارکۍ، د مسعود او رباني عکسونه وو، چې هر دېوال د ترافیکو غرفه او نړېدلې ودانۍ یې په سر اخیستې، مسعود قهرمان، فاتح اسلام او داسې نورې په غټو غټو تورو لیکل شوې کربنې، چې د سړکونو د یوې غاړې تر بلې په هوا کې ځړېدلې، د رباني، مسعود بېلا بېل تصویرونه وو، چې د ورانو ودانیو دېوالونه، د برېښنا او ټیلیفون ستنې دوکانونه او هوټلونو هېنداري یې نیولې وې، سړي فکر کاوه، لکه د ودانیو دېوالونه یې په تصویرونو پوښلي.

موږ یې د هوایي ډګر په لویه دروازه ننبستو، موټر کیڼ لاس ته وګرځېد، ښي لاس د ترمینل اړخ ته اریانا الوتکې ولاړې وې او کیڼ لاس ته یې چې موږ وګرځولو، پوځي الوتکې درېدلې، دلته زموږ پیک اپ هم ولاړ و، موږ یې همدلته له موټره کوز او مخامخ روان کړو، هلته یو تورکی سړی بې نوره او غوړ بیجنه څېره له څو نورو پوځیانو سره

کوماندويي يونيفورم کې ولاړ و، موږ يې ور وړاندې کړو، هغه سملاسي امر وکړ، چې له موټره سامان کوز کړئ، د موټر سامان لا وختي لاندې باندې شوی و، زه لږ څه ډاډه شوم، چې ګنې دا سړی به خبرې ته غوږ ونيسي، په ډېر ادب او عاجزۍ مې ورته وويل: که مهرباني وکړئ د دوو دقيقو لپاره وخت راکړئ، خو ده له غرور ډکه لهجه وويل: صبر کو ای کار خلاص شو باز معلوم ميکنم.

له موټر يې ژر ژر کتابونه کوز او په يوه کوټه کې يو پر بل انبار کړل، ډېرى سامان په هماغه ساعت کې د ملېشو له خوا څه په پټه او ښکاره چور شو، کله چې سامان خلاص شو، ده زياته کړه: ميفامی يانی ای پشتونستان نيس اوغانستان اس، ما لومړی فکر وکړ، چې دا خبره په دې وخت کې له موږ سره څه اړه لري، دی لګيا و: شما خاينا می خاين از اوغانستان پشتونستان جور کنين، مه کت تان می فامم، په زړه کې مې وويل، دا په څه بلا واوښتې، له دې خو يې هغه بې تعليمه او بېسواده ښه وو، چې سترګې يې پيسو، مال او موټر ښخې وې او له دې نورو لانجو ناخبره وو.

ما وويل: زه ژورناليست او ليکوال يم، د پښتونستان مسلې مطرح کول دلته فکر کوم څه مناسبت ونه لري، بهتره دا ده چې په اصلي موضوع خبرې وکړو.

ده په ډېره غوسه، چې له خولې يې ځګونه بادېدل په يوه دمه خبرې کولې: ګلبدين کت خود خلقياره ګرفته بګو تنی کجاس، وطنجار، رفيع کجا اس، وطنه شما خراف کدين، ګلبدين کابله خاکستر ساخت اينجه نوکرای پاکستان و سعودی جای نداره... ما هم دده خبرې اورېدې او هم مې دده سترګو او څېرې ته کتل چې په ډېر هيجاني او عصباني

حالت کې دی، له سترگو یې د شرابو د نشې یوه پست هوس او له خولې یې د ددغې نشې بد بوی خوت، ده په بنې لاس په ملا کې ځړېدلې تفنگچه نیولې او ډېرې ورې عصاب خرابې کولی شوی د سوال او ځواب دا صحنه ختمه کړي، زه متوجه شوم که زما کومه خبره د ده په نېشه یي دماغ لږ هم بده ولگېږي، د هغې ځواب به حتماً ددغې تفنگچې په خوله راکوي، دلته زموږ او مرگ تر مینځ فاصله د سترگو د رپ په کچه وه، ځکه ما احتیاط کاوه، تاسې فکر وکړئ چې یو تش لاسی انسان په یوه ځنگل کې د کوم وحشي حیوان په منگولو کې گېر شي، څه به کوي، ځکه خو ما کوښښ کاوه، دده او تفنگچې تر مینځ یې رابطه کمه کړی شم.

لگیا دی... سیاف هزارای بیچاره را قتل عام کد، بدستور عربا، هزارای بیچاره تباه و برباد شد... یا خدایه! دا خو د حکمتیار او سیاف په ځای په موږ زړه تشوي او لکه موږ د حکمتیار او سیاف د تنظیمو او کړو وړو مسوول اوسو، په زړه کې راتېره شوه، انجینر احمد شاه دې خپل وزارت کوي د استاد سیاف په گناه دې موږ نیولي یو...

ما یې خبره ور پرې کړه، چې زه په تنظیمي لحاظ نه له استاد سیاف سره منسلک یم او نه له حکمتیار سره، زه ژورنالیست او لیکوال یم، چې د مولوي جلال الدین حقاني له فرهنگي دفتر سره کار کوم، او هغه د سولې په هلو ځلو بوخت دی، ما فکر کاوه دا خبره به دده د عصباني مزاج په لمبو لږ اوبه توی کړي، خو له بده بخته دی یې نور هم مشتعل کړ ویې ویل: حقانی دیروز منطقه هزارا به توپ بست صدها هزاره را کشت، همراه گلبدین ششت که ملیشه ها خارج شوه، نباشه.

ما ورته وویل: څوک چې سوله کوي، هغه به ضرور دواړه خواوې

گذشت او د یوه بل د ځینو شرطونو منلو ته اړ باسي، خو ده وویل: مه میفامم اخبار و مجله شما بر ضد ملیشه مسلسل نشرات کرده، ده خوست ملیشه ها قتل عام شد...

ما ځواب ورکړ، در خوست هر کسی که زنده دستگیر شده رها گردیده، بعد از فتح هیچ کسی کشته نشده، زخمی ها به صلیب سرخ تسلیم داده شد، البته در جریان جنگ هر دو جانب تلفاتی می بیند.

ده وویل: مسعوده ما ده کابل اوردیم اگر بخایم بیرون کشیده میتانیم...

بیا یې پوښتنه وکړه، ننګیال کیس، زه لا له مخکې حیران وم، چې ځان وروښیم، که نه، په کومه کې به مو خیر وي، په همدغه تردد کې مې له خولې ووتل، زه، ده وویل: خوب ده گیرم امدی... او له دې سره یې بیا پر خپله تفنگچه گوتې کېښوې، غاښونه یې وچیچل، ویې ویل: میفامم که ادم سیاسی ستی خودته میگی که ده کله ام دوازده گرام مغز اس، ده کله مم دوزاده گرام مغز اس، بیست و پنج سال صاحب منصبی کدیم، می فامی، مارا خام کله می گفتین، مالوم میشه کی خام کله اس؟

مه تورن جنرال عبدالمجید روزی معاون اول عبدالرشید دوستم استم، جنرال صاحب دوستم هم مثل مه انسان اس، از مه کده مقبول و چاغ اس، شما را محاکمه میکنیم.

دلته یې زموږ لاسونه تر شا وتړل او یوې پوځي الوتکې ته چې ستاړت ولاړه وه وخېژولو، نژدې یو ساعت په الوتکه کې ناست وو، خو الوتکه وانه لوتله، بېرته یې له الوتکې کوز او جنرال مجید ته لاس تړلي ودرولو، مجید بیا خپله خبره تکرار کړله، شما محاکمه میشین، شما بیخ و بنیاد

ما را کندین، اوتوریته ما را از صفر هم پایین اورده به سویه جهانی بر ضد ما اقدام صورت گرفته...، اینا ره پس ببرین، تا محاکمه شون...

موږ يې ببرته د خپل پيک اپ باډۍ ته وخېژولو، هغه قوماندان ته چې موږ يې نيولي وو، جنرال مجيد وويل: تو خو زبان اينا ره می فامی... ببرين... هلته د جمعيت ځينې افراد چې ما ورسره پېژندل ولاړ وو، ټولو ځان ناګار کړ، رنه رنه يې کتل د مجيد او ملېشو پر وړاندې له خپلو اوړدو ږيرو، خړو پکولونو او جمپرونو سره ډېر حقير او ذليل معلومېدل.

د احمد ضيا خدای زده څه په زړه کې وګرځېدل، په ډېر ادب او حق په جانب څېره يې جنرال مجيد ته وويل: زه په ننګرهار کې محصل يم او پاکستان مې په سترګو نه دی ليدلی، زه له دوی سره نه يم، دوی له پاکستان نه راغلل، شپه يې زموږ يوه دوست کره وه، کله چې راتلل، نو ما وويل مفت موټر دی، زه به هم کابل ته ولاړ شم او...

خو جنرال مجيد په دې دنياګۍ کې د چا مظلوم خبرې او فرياد نه شوی اورېدی؟

د روانېدو پر وخت جنرال مجيد هغه قوماندان ته چې موږ يې نيولي وو، په غوږ کې څه وويل او موږ يې روان کړو، دا ځل يې له يوې بلې لارې راستانه کړو، د دغې لارې په اوږدو کې بيا هم د جګړې په اور سوځېدلو او ويجاړو تاسيساتو باندې د رباني او مسعود رنګين تصويرونو، يو پر بل پسې د خپلې رنګينۍ جادوګري ښودله، پر ويجاړو او سوځېدلو ودانيو لګول شويو تصويرونو په ليدو زما په زړه کې داسې تعبير وګرځېد، لکه ځانونه د دغو وړانيو قهرمانان ګڼي او يو وخت به يې تاريخ د ويجاړيو اتلان اعلان کړي....

په لاره کې له مکرویان سره د یوه گلم جم خولی باد یوړه، موټر یې ودراوه، په دې کې د جمعیت یو قوماندان چې له احمد ضیا سره بلد وو او د قوماندانانو سرتاسري شورا کې یې برخه لرله، موږ ولیدو، کله چې موږ ته نژدې شو، یوه گلم جم بدې کنځلې ورته وکړې، خو چې د جمعیت یې ورته وویل خوشې یې کړ، موږ خوشاله شو، چې که مو مړه هم کړي، لږ تر لږه دومره خو وشول، چې احوال مو تر یو چا پورې ورسېږي.

موږ یې بېرته هغې قرارگاه ته راوړو، چې ترې بېولي یې وو، دا ځل یې په یوه بله خونه کې چې دوه زاړه شلېدلي چپرکټونه په کې پراته وو تېل وهلو، دچپرکټو وسپنیز سیمونه لکه تېره مېخونه راوتلي، د غرمې ډوډۍ مو نه وه خوړلې، خو په لوږه نه پوهېدو، که احمد ضیا د سهار چای داسې غوږ نه وای راکړی، نو بیا به مو دا حال نه و، د ماسپښین لمونځونه رانه قضا شوي، په داسې حال کې چې د قصاب په غولي لاس تړلي ولاړ یو، د لمانځه قضا ډېر خورولو.

زما په ذهن کې په مجاهد ولس کې د حمید بابا دا شعر لحظه په لحظه گرځېده:

**دا جهان قصاب خانه کړ خدای و ماته**
**پــــا بسته ولاړ په غولي د قصاب یم**

# د مرګ منظر

شرنګ د دروازې زنځير خلاص شو، يو مليشه نېغ ودرېد، کاغذ ته ګوري، زمونږ نومونه يې واخيستل، مونږ ور ولاړ شوو، لومړی يې زه تلاشي کړم، ورپسې احمدضياء، نور عليشا، احمدسينا... لاس يې تر شا راوتړل، زه يې تر مخ کړم، له شا يې د کونداغ پر يوه ټينګ ګوزار له دروازې دباندې وغورځولم، چې پاڅېدم، يو مليشه تر مټ ونيوم، لږ وړاندې يې د يوې کوټې پرانيستې دروازې ته ودرولم، نور ملګري يې هم پر کونداغ دباندې راګوزار کړل، هر يو يې کوټه تر منځ يوې خونې ته ودراوه، دلته يې زمونږ هر يوه پر تندي ګوته پر ماشه د کلاشينکوف شپېلۍ کېښوه، وايي کلمه تان بخوانيد، مونږ کلمه تېره کړه، په لږ ځنډ يې کلاشينکوف لېرې کړل، پير نور عليشا يې يوې کوټې ته ننوېست، درې دزې وشوې، سينا او ضيا يې هم يوې يوې خونې ته ننوېستل، بيا هم درې درې ډزې... راته وايي: حالا نوبت توست په زړه کې وايم څومره چې ژر کېږي ډز کوه... سترګې مې پټې کړې، وايم که پر غوږو مې څه نه اورېدی، په ربښتيا څه نه اورم، پر خوله له يوې کلکې څپېړې سره مې غوږو کې کړنګی شو، سترګې مې پرانيستې، راته وايي ژوند دې رانيسه، پنځوس زره ډالر، بيخي ارزانه مفت...

ورته وايم، پنځوس زره ډالر پرېږده پنځوس هم نه شې راسره مونداې، چې نه قوماندان يم، نه سوداګر... وايي مونږ خبر يوو، چې لوی بای او سيټ يې، وايم ټول عمر مې د قلم مزدوري کې تېر کړی چې

تشه ګېډه نشي ډکولای، وايي اوس به مزدوري در معلومه شي...

کرس پر کونداغ پر مخ ولګېدم، ونه غورځېدم، دويم ګوزار مې د وليو تر منځ ولګېد، تندی مې له مخامخ ديوال سره ونښت، درېيم ګوزار مې پر سر و، چې ورسره رنګ شوم، ډز شو، د باروتو تريخ لوګی پورته شو، ګولۍ زما پر ښي ولي ومښته، بل ډز پر مټ ولګېد درېيم ډز...

پوه شوی نه يم، تر هغې چې سترګې مې کوټه کې وغړېدې، احمد ضيا، نور عليشا او سينا راته ناست دي، ما وې که اخرت کې راغونډ يوو، بعث بعدالموت دی...

که خوب وينم، لاس مې پر سينا کېښود، خوب نه و، په کوټه کې مې سترګې واړولې، هماغه تنګه تروشه خونه، وسپنيز لغړ چپرکټونه...

د نور عليشا له سترګو اوښکې څاڅي، ضيا او سينا چوپ دي لکه دمه نه پکې چلېږي...

له پوزې خولې راغليو وينو مې ږيره سريښ کړې، سينا تکيه کړم، احمد ضيا سترګې مخامخ کړکۍ کې ښخې کړې، نور عليشا پخپله لمن خوله، مخ راپاک کړل، له کوزې يې خوله کې اوبه راتوی کړې...

را ياد شوه شرنګ زنځېر خلاص شو، د مرګ قاصد له کاغذ نومونه اخلي، د ولاړېدا راته وايې، تلاشي مو اخلي، د کونداغ پر ګوزار مو له کوټې دباندې غورځوي، درې ډزې کېږي، وژني مو، دادی له سره مو زړونه سينو کې غورځي، د مرګ دغه کيسه څو کرښو کې بشپړه شوه، له مرګه د ېرته راګرځېدو تجربه انځور شوه، خو دا کيسه دومره آسانه نه ده، چې دلته مرګ د وسله والو د ټوپکو شپېلۍ کې په نخا دی، هره ورځ هر ساعت، هره شېبه د مرګ له پيغام سره تېرېږي، چې ژوند د مرګ په منګولو کې په سلګو دی، ژوند نيمه خوا، زندګي مړ ژواندې ده.

ملېشې او وسله وال يې د خپلو ټوپکو مرميو کې پېيي، د سرونو په تسپو لګيا دي، ذکر کوي، جنت غواړي، د حورو غلمانو سره د لوبو شوق يې سر ته ختلی، هره ګولۍ چې چلېږي د ژوند پر ځيګر موښلي، د ژونديو پر زړونو لګېږي، ځکه خو ژوند ژوبل، زندګي پرهر او د ځوانيو لو ګډ دی، هر ژوندي د خپل ژوند جنازه پخپلو اوږو اخيستې، پخپلو لاسو يې قبر ته ټيټوي، دلته خلک ګرځي خو ژوند شته، د مرګونو حکمراني کې د ژوند سا ډوبه ده.

د مازيګر لمونځ مو په تيمم او د چپرکټونو دپاسه په ناستې وکړ، دلته يو ځل بيا موږ د ژوند او مرګ له کشمکش سره مخ شو، بېرته وېرې واخيستو او له مرګه ډار زموږ په مريو منګولې ښخې کړې.

يو ساعت مو په خپلو مينځونو کې په دې خبرو تېر کړ، کاشکې په ګردېز راغلي وای، درېغه داسې مو کړي وی، ځنګه او ځنګه...؟

ماښام يو تن دروازه خلاصه کړه، ويې ويل: بياپين، موږ ورپسې شو، داسې مو ګڼله چې پل اخلو، د مرګ پر لور يې اخلو، د ودانۍ په پراخه انګړ کې د ملېشې هغه قوماندان چې موږ يې نيولي او د عبدل چريک په نامه مشهور و، مجددي صاحب د بريد جنرالۍ رتبه ورکړې، په يوه چوکۍ ناست دی، زما پکول يې پر سر، خپل باديګارډان يې په يوه ليکه کتار کړل، موږ يې ورته مخامخ ودرولو، ويې ويل، چا درنه ساعتونه او پيسې اخيستي، موږ هک حيران وو، چې هغه کسان وښيو که نه، ما دا ښه وګڼله ووايو، له موږ هېر دي، خو احمد ضيا جرئت وکړ، هغه ملېشه چې دده پيسې يې اخيستې وې وښود، تصادفاً ساعتونه هم ده اخيستي وو، له ما سره څلور لکه افغانۍ وې، ددې سرې مې پېژانده، خو د جېب د پيسو راڅخه هېر و، ما هم د هغه ملېشه په خوا اشاره

وکړه، چې څلور لکه افغانۍ یې راځخه اخیستې وې.

عبدل چریک ورته وویل: ولې مو زه خبر نه کړم، ماته مو ولې ونه ویل، چې مور ترې پیسې او ساعتونه اخیستي، هغوی پټه خوله وو، ده وویل ورکړئ پیسې او ساعتونه یې.

مور ته یې خپلې پیسې او ساعتونه راکړل، په زړه کې خوشاله شو، فکر مو کاوه چې زموږ پیسې یې راوسپارلې، نو غلا د ملېشو د افرادو کار دی، همداسې به موټر،کتابونه هم راکړي، دلته لږ په خپل ژوند ډاډه شو، چې که وژلی یې نو پیسې به یې نه راکولې...

د ماښام لمونځونه مو په تیمم او ناستې وکړل او د تورې سیلو یوه وچه ډوډۍ زموږ د استحقاق په توگه له دروازې راوغورځول شوه، یو تن چې د مزار هزاره و، وویل شما نفرای گلبدین استین...؟

مور وویل نه ژورنالیستان یو، خو هغه په ډېره بده لهجه وویل، تاسې د گلبدین او سیاف نفر یاست، غواړئ د ۳۵ فرقې افراد ترور او اختطاف کړئ، اوس به در معلومه شي... د سپو په مرگ به وژل کېږئ او له دې سره یې خپلو ملگرو ته وویل، قوماندان ته وایم، چې ماته یې په لاس راکړي، چې لومړی خو ترې دا سترگې وباسم، بیا یې د پوزو او غوږونو حساب په لاس ورکړم، زه یې په چل ښه پوهېږم او داسې یې ډېرې کنځلې وکړې.

له دغه څوان سره بیا وروسته زموږ لږ او ډېر تعلقات جوړ شول، د حزب وحدت متعهد و، پلندر یې عیسی خان نومېده، چې ده غوندې بېسواده و، خو اوس یې دلته د حزب وحدت، دوستم او مسعود په ائتلاف کې د تورنۍ رتبه گټلې.

په دې قرارگاه کې د حزب وحدت توپکیانو د دوستم له ملېشو سره

ګډ فعالیت درلود.

د بندیانو د پیره دارانو د ډلګی مشر شاه محمد نومېده، چې ظاهراً د ښې وضعې او نرمې خولې خاوند د شلو کلو ځوان معلومېده، خو په حقیقت کې ډېر بدغونی انسان و، ماخوستن ده زموږ د کوټې د دروازې قلف خلاص کړ، کوټې ته راننوت، او موږ ته یې د تسلی خبرې شروع کړې، په موږ دده خبره لکه د ټوپک ډز داسې لګېده، خو له مجبوریته مو دده له هرې خبرې سره د توافق سر ښوراوه او د رضایت دارې جینګې نیولې وې، ده وویل چې هر شي ته ضرورت لرئ، دروازه ټکوئ، که قضای حاجت ته ځئ ټک ټک کوئ، دروازه درته بېرته کوم، ما ورته وویل، که زموږ د اوداسه غم دې وخوړ، دا به دې له موږ سره زیاته نېکي وي، ده ویل غم مه کوئ، هر وخت مو چې اودس کاوه اوبه درکوم او نور مو که چای ته شوق کېده هم غږ کوئ.

ده په یوه ځانګړي اکټ او ژور خپګان سره وویل، دنیا تېرېږي، دا ورځې هېچاته نه پاتې کېږي...

په دې کوټه کې خو خنجرونه او کارتوس پراته وو، خنجرو ته زه ځکه خوشاله شوم، چې کېدی شوای په څه وخت کې مو په کار شوي وی، خو احمد ضیا داسې وېرې اخیستی و، چې شاه محمد ته یې وویل: دا خنجرونه له دې ځایه وباسه، هغه هم خنجر کوده کړل، له کارتوسو سره یې یو ځای له کوټې واېستل.

احمد ضیا ته مې وویل، خنجرونه ښه و کار مو ترې اخیستی شوای خو ده ویل ورک کره، هسې به یې په بل غم اړولي وو، که دا یې راته پلمه کړې وای، چې په دې مو څه کول څه او څه... دلته نو دلې دلې ګلم جمان راځي او د کړکۍ له ورې هېنداري زموږ ننداره کوي، څوک یو

څه وايي او څوک بل څه، څوک وايي د ګلبدين نفر دي، څوک وايي په کارته نو کې يې يوه پوسته کې نيولي، چا به ويل بمونه ورسره وو، او نور...

موږ د الله تعالی له ياده بله اسره او مشغولا نه لرله، په لوڅو او مېخ دارو چېرکټو وغځېدو، سترګې مو پټې کړې، خوب چېرې و، پر يوه او بل اړخ اوښتو، کله نا کله به مو د يوې شېبې لپاره سترګې ورغلې، خو بيا به ويښ شوو، چې پيره بدلېدله، د دروازې قلف به يې بېرته کړ، موږ به يې په شمار نوي پيره دار ته تسليم کړو، دا چاره ځکه زموږ په ګټه وه، چې د دروازې په بېرته کېدو به له باندې تازه هوا کوټې ته ننوتله او زموږ د زړونو بل شوی اور به يې د لږې شېبې لپاره غلی کړ.

غوماشو مو پښې، لاسونه او مخونه داسې کړي وو، لکه شري نيولي يو.

له سپېده داغ وړاندې موږ ټول ويښ وو، د آذان غږ مو د استاد رباني اسلامي حکومت کې وانه ورېد...

په وېره وېره مو دروازه وټکوله، پيره دار ته مو د اوداسه وويل، هغه د يوه يوه تن د وتلو اجازه راکړه، د قضای حاجت ځای نه و او له هغو کوټو استفاده کېده، چې خالي او کړکۍ دروازې يې ايستلې وې، په دغو کوټو کې کاغذونه، د وطن ګوند تبليغاتي پاڼې، دفتري کارتونه، د کلاشينکوف او تومانچو کارتوس، شلېدلي په وينو لړلي جامې او ... پراته وو او کله به چې څوک د قضای حاجت لپاره دغو کوټو ته ننوتل، دروازه کې به پيره دار ولاړ و، موږ هر يوه په خپل وار اودسونه تازه او لمونځونه بيا هم په ناستې وکړل او د خدای تعالی اروا پالونکي ذکر ته مو پناه يووړه.

هوا رڼا کېده، ښايي لمر به نوې د ښېر دروازې او آسمايي له څوکو مچکه اخيستې وه، چې د انګړ د لويې دروازې تر مخ چې سړک ته وتلې وه، دوه ګړندي موټر تېر شول، اوس نو يوه بله ورځ بره شوې، له حوادثو او فاجعو ډکه ورځ او د افغانستان د مظلوم ملت د دردونو او ويرونو يوه بله تياره ورځ.

ما د کوټې له زړې او وړې کړکۍ د انګړ په لويه دروازه کې سترګې ښخې کړې وې، خو له هغو دوو موټرو پرته پر هغه لوی سړک د هېڅ شي نښه نه معلومېده، داسې ښکارېده، لکه يوې مرګونې چوپتيا په کابل د غم او سکوت څادر غوړولی وي، لکه شپه لا نه وي سبا شوې، د شپې وحشت او تروږمې لا خپل تناوونه، نه وي ټول کړي او په رڼا ورځ د شپې وحشتناک سکوت خپور وي.

هو! په کابل کې ورځ هم شپه ده، تکه توره شپه لکه ددغو غلو، قاتلينو او لوټمارو تور زړونه، په کابل کې ورځ نه ليدل کېده، هره خوا د تورو شپو د وحشت او وېرې خونړۍ تيارې خپرې د انسانيت، انصاف، ازادۍ، شرافت او عزت لمر د وحشتونو د تورو شپو په تل کې ډوب و، يوازې د شپو توره او تياره حکمراني چلېده.

د دروازې د ځنځير په شرنګېدو يو تنکی خو هدور ځوان کوټې ته رانوت، دوه درې تنه نور هم په دروازه کې ودرېدل، تنکي ځوان سترې مشې وکړل، له ځان سره يې وويل: چه خوب جوانا اس، حيف بندی کدن اينا، او بيا له موږ سره په خبرو شو، احمد ضيا او سينا ورسره مجلس ګرم کړ، زه او پير صاحب د خپلو سوچونو، انديښنو، او ارمانو په سمندر لاهو شوو.

داسې معلومېده لکه ددغه ځوان له موږ سره څه خواخوږي پيدا

شوې وي، پر له پسې يې موږ ته د خوشې کېدو خبره کوله، له دې سره به يې دا هم ويل: ((گوسفند نر اس برای قربانی)) دا خبره کېدی شي ده په ناپامی‌کوله، خو موږ ته به يې سخت ټکان راکړ، په پای کې يې د خراباتيانو په اکټ وويل، الا کدن تان ده وس مه نيس، ديگه هر خدمت تان باشد به سر چشم چای، نان، چرس، شراب، دختر، بچه هر چه دلتان خاست بگويين.

ده خپل نوم هم موږ ته ونښود، چې زما له ياده وتلی او راځخه رخصت شو، دلته يې د تورې سيلو پوپنک وهلې ډوډۍ يو گيلاس او يوه توره چای جوش چې يوازې خوله يې لرله زموږ مخې ته کېښول، که څه هم زړو نه اخيسته، خو په نوبت مو وڅښلو، هر يوه بل ته د چای ټينگ ست کاوه، داسې معلومېده، لکه يو پر بل ډېر مهربان وو، ما ځان له ټولو وروسته کړ يو دا چې له زړه مې غوښتل ملگري وړومبی چای وڅښي او بل مې دا گټه هم وه، چې کېدی شوی په اخر کې مې دوه گيلاسه نصيب شوی وای، خو گټه په تاوان کېږی، تاوان دا چې کله به ايله نيم گيلاس را رسېده.

زما د چای څښلو خو دا حال و، چې له خپل مشر محترم رفيع صاحب مې هم د چا خبره وسله اخيستې او هغه راته د چايست په لقب قايل شوی و.

ورو ورو له پيره دارانو او نورو ملېشو سره زموږ تعلقات جوړېدل، وخت ناوخت به يې دروازه ېرته کوله او د څه شېبې لپاره به د تازه هوا له نعمت برخمنېدو له پيره دارانو سره په اړيکو کې د احمد ضيا او احمد سينا لوی لاس و، دوی به ويل موږ سياسي کار ورسره کوو، دا خبره يوه اصطلاح شوه، چې هر وخت به يې د څه هوښياری او چالاکی

مظاهره وکړه، نو دا خبره به يې کوله.

احمد ضيا له ځان سره بله منصوبه جوړه کړې وه، په زګېروېو يې شروع وکړه، پينځه، لس دقيقې وروسته به يې دروازه ټکوله او د قضای حاجت لپاره به له کوټې وت، له احمد سينا يې نصوار اخيستل او ددې لپاره چې استفراق وکړي کپ کپ نصوار له ستوني تېرول، خو تقدير ته ګوره چې د يو کوټي له خوړلو سره يې هم د استفراق اشتها رانه غله، ده خپل پلان موږ ته داسې تشرېح کړ، چې که شفاخانې ته يې يوړ، کېدی شي له هغې ځايه چاته ټيليفوني يا د خط په ذريعه احوال ولېږلی شي، زما زړه نه منله، خو ورسره مې ښه کړه، ده مسلسل زګېروي کول، اواز يې هم لړزه پيدا کړه، سترګې به يې رډې وختې، خوله به يې وچه شوه، هر پيره دار ته به يې د ګوليو نوم اخيست، چې که ورته رايې وړي، دده دغه وضعيت نژدې درې شپې دوام درلود، د حزب وحدت عيسی خان ته يې هم ډېرې خاورې په سر باد کړې، د احمد ضيا رنګ او ځېره داسې شوې وه، لکه د نري رنځ ناروغ، اکتونه يې داسې طبيعي معلومېدل، چې اسمعيل شاهد سره يې سيالي کولی شوه.

د دوو ورځو په تېرېدو نور احمد ضيا هم له دې رول ستړی شوی و، موږ هم ورته وويل هسې نه نصوار په ربښتيا کومه ناروغي در پيدا کړي، هماغه وو چې ورو ورو يې د روغتيا خوا ته د صحت د علامو په ځرګندولو قدم واخيست.

په پيره دارانو کې يو ځوان چې ډېر بدرنګه او تک تور و، سلطان نومېده، له ځېرې او حرکاتو ډېر عاجز معلومېده، دده په ځېره کې له مسلطې وضعې د شکايت نښې له ورايه ليدل کېدې، په کتو کې يې د يوې ژورې کرکې او نفرت اثار ځرګند و، کله به چې موږ قضای حاجت

ته تلو، دی به د کوټې وره کې نه درېده، ویل به یې برن، برن ازاد استین، همدارنگه وخت په وخت به ده خپله د دروازې قلف بېرته کړ، دروازه به یې پرانیسته، وبه یې ویل باش که هوای تازه بیایه.

پر دغه ورځ چې له غرمې وروسته نور ملېشه خپلو کوټو کې په درنو خوبو ویده شول، سلطان زموږ د کوټې دروازه خلاصه کړه، د وره په خوله کې یې گونډې ووهلې او په کرار یې له موږ سره د خواخوږۍ خبرې شروع کړې.

ده ویل: خدای دې د دوستم او گلبدین کورونه وران کړي، زه هم کور کلی لرم، مور، پلار او خپلوان لرم، ده زیاته کړه، د گلبدین او دوستم بلا نشته، د نورو اولادونه وژل کېږي.

ده یوازې گلبدین او دوستم پېژندل، له بل هر څه ناخبره و، سلطان په ډار ډار خوله نوره هم کوټې ته دننه کړه، ویې ویل، زه یې په زور راوستلی یم، نه تنخوا شته، نه بل څه، شپږ میاشتې کېږي چې نه یې رخصت راکړی او نه کوم غیران، ټنگه.

دده د معلوماتو له مخې په موږ درېدلي پیره داران نه معاش لري او نه په خپل زړه په ملېشه کې داخل شوي، بلکې په زور له کورونو ابستل شوي او له دغې احاطې د باندې وتلو اجازه هم نه لري، په دوی کې هغه ملېشه، چې په خپل زړه داخل شوي، تنخواگانې لري، د چور او چپاول لاره هم ورته خلاصه ده او تر څه قید او بندیز لاندې نه دي.

بله ډله د قوماندانانو باډیگارډان یا د خپل زړه پادشاهان دي، څه چې غواړي د نه، مه څوک یې نشته، د سلطان چې څرنگه څېره خواره او بدرنگه ده، همداسې یې لباس خیرې او پیوند و، پایزار یې هم داسې و، چې مازې پښې یې په کې بندېدې شوې، خو له بدرنگۍ او خیرنتوب سره

يې په څېره، خبرو او کتلو کې يو داسې اغېز و، چې پر سړي له ټولو عيبونو سره خوږ لګېدو، ماسپښين مو ددغو تعلقاتو له مخې وکولی شول، د څنګ په يوه بله کوټه کې چې لا د قضای حاجت مکان نه و ګرځېدلی په ولاړه د لمانځه اجازت تر لاسه کړی شو، دلته احمد ضيا له يوه بل کمال کار واخيست او هغه دا چې هر ګلم جم ته به يې ويل، چې يو ورور مې په مزار کې اوسېږي، د (ادينه مسجد) سيمه کې يې کور دی، خو که چېرې زما مخې ته راشي، نه يې پېژنم، ځکه دا لس دولس کاله مې نه دی ليدلی او يو ځل خو يې يوه ته له خولې ووتل، برادر مم ګلم جم اس...

د تعلقاتو دايره مو دومره پراخه شوه، چې په جمع د لمانځه شرايط برابر شول او د هغې بلې کوټې څلورو بنديانو هم په کې برخه اخيستلی شوای.

له لمانځه وروسته چې موږ بېرته خپلو کوټو ته راغلو، لږ وروسته عبدل چريک راووت، شاوخوا يې ملېشه غونډ وو، لرګي يې راوغوښتل او يو تن يې داسې وواهه، چې تر يو نيم سل لرګيو ما وشمېرل، چې په وهلو ښه ستړی شو، څه خبرې يې ورسره وکړې، چې موږ نه شوی اورېدلی، په دې کې يې يو ځل له خپل باډيګارډ نه کله کوف واخيست او په هغه سړي يې درې دزې وکړې، يوه ګولۍ يې په کين مټ، بله په ورانه او درېيمه له نامه سره ولګېده او په ځمکه ولوېد، ده دومره ووېل کشش کو او له دې سره د خپلې کوټې په خوا روان شو، ملېشه وو کش کړ، موږ پوه نه شو، چې مړ شو او که يې روغتون ته يووړ، دا راز له سلطان او خو نورو ملېشو هم پټ و او يا يې موږ ته نه شوی ويلی.

له دې پېښې وروسته سلطان بيا زموږ د کوټې دروازه بېرته کړه، ويې

ويل، ديدين ظلمه، از دل ما خدا خبر اس، ما بخدا اگه به ای حال خوش باشيم، خدا مارم به وطن و خانه خود ببره و شمارم، ای چه حال اس، خدايا!

مابښام يې مور ته په داسې کاسه کې چې له مياشتو به چا اوبه نه وې پرې تېرې کړې، وريجې او ورسره هماغه توره سيلو راوړه، مور د وريجو له مينځه يوه مړۍ پورته کړه او نوره مو سيلو خپلو کې تقسيم کړه، سلطان چې د تشې کاسې وړلو ته راغلی و، کله چې کاسه ډکه وليده، ښله دې چې له مور د نه خوړلو وپوښتي، وويل مور هم همدا ډوډۍ خورو، ده زياته کړه، دلته درې دېگونه پخېږي، يو دېگ دا چې دا مور او تاسې يې خورو، دا خدای وهلې وريجې، بل د عبدل چريک لپاره ځانګړی دېګ او ډوډۍ او د هغه باډيګارډانو ته بيا جلا دېګ او ډوډۍ پخېږي.

## مرګونې پوښتنه:

د قبلې اړخ ته دېخو خښتو نوی ديوال او په وړوکې دروازه کې ولاړ، ښلر پر هماغه لومړۍ ورځ مور ته پوښتنې راپورته کړې...

دوه درې واره مو چې د شپې له بيلرو د وسله والو اوښتو راوښتو ته پام شو داسې مو ګڼله لکه د دېوال له شا د ښځينه وو ماشومانو چيغې اورو، څکه خو دغه پوښتنې لکه د تلوسې ښه خپله کړې وه...

سلطان مو وپوښت، لکه تبه يې ونيسي، لړزه پرې راغله، په زاريو شو، چې دا پوښتنه له چا ونکړو، دده په وينا که چا ورځخه واورېده ژوندی به ونه وځي...

څلورمه شپه وسله وال د نورو ورځو په پرتله زيات وتل ننوتل، چيغې او ژړا انگولا څرگنده وه...

نيمه شپه پرله پسې ډزو ټول په ځای کې راکينولو، کړکی ته مو منډه کړه، لږ وروسته يو کوماز راغی، بيلر لرې شوي وو، د کوماز د باډی شا يې له دروازې سره ولگوله، څه کم يو ساعت به ولاړ و چې گړندی له دروازې ووت.

څه خبر دا به د گلم جمو قصابخانه وه، که د جنرال مجيد صحرايي محکمه کې د اعدام شويو قتلگا، او پليگون، خو د پخو خښتو دغه دېوال شاته يوازې د مرگ حکم چلېده، څوک د حزب تورن، څوک د خلق گناهگار، ځينې د پيسو صراف، تجار، پانگوال او... د ټولو پر وړاندې د مرگ برخليک کومی شلولی و...

د مرگ پرېکړه په خورا اسانۍ د سترگو وروځو په اشاره او د خولې په څو ټکو اعلانېدی شوای، آن چې د ټوکو مسخرو او تفريح لپاره هم د مرگ پرېکړه صادرېدی شوای پاکستان روان کو... تيرش کو... او داسې نورو شفرونو او نښو د مرگ حکم عملي کېده...

## د گړونگو شرنگ:

سلطان له کوټې په وتلو لا قفل نه و اچولی، چې دوه موټر د ودانۍ له لويې دروازې ننوتل، يو هماغه زموږ دوه سيټه پيک اپ او بل د هغه بلې کوټې د بنديانو يو سيټه، له موټرو څلور ښځې چې رنگين لباسونه يې اغوستي، کوزې او د عبدل د کوټې په خوا په يوه باډيگارډ پسې گړندۍ وخوځېدې، دواړه پيک اپ په بيړه بېرته له دروازې ووتل، نيم

ساعت وروسته موټر ببرته راوګرځېدل او د سازيندو څو تنه ترې کوز شول، لږه شېبه پس د ګړونګو شرنګ او د ساز غږ پورته شو، خدای خبر د نڅا او ساز دا لوبه څه وړ او څومره روانه وه، چې زموږ د کوټې تر مخ د پښو ښکالو، او کش او ګیر موږ ته بیا پوښتنې پیدا کړې، د شپې پاو باندې دولس بجې وې، له کړکۍ مو چې وکتل، د عبدل څو باډیګارډانو، بندي ډګروال ورسره په مخه کړی، کېدی شي د څه پوښتنې او تحقیق لپاره به غوښتل شوی وي، د شپې دوه نیمې بجې وې، چې بیا مو ګونګسې او د پښو ښکالو واورېد، موږ له کړکۍ دباندې د کتو هڅه وکړه، که ګورو له ډګروال سره څوک خبرې کوي، ډګروال په بیره کوټې ته ننېستل شو او دروازه ورپسې قلف شوه، سهار چې د جماعت لپاره بلې کوټې ته ولاړو، نو د ډګروال د کوټې څلورو بندیانو غوږونه نیول، توبې یې اېستلې، خو موږ لا د موضوع په حقیقت نه وو پوهېدلي او راز راز پوښتنې او شکونه راسره پیدا کېدل.

کله چې سهار شاه محمد دروازه ببرته کړه، داسې معلومېده لکه له چا سره یې د باندې څه ټوکه کړې وي، چې متوجه شوه خبره د ډګروال وه، احمد سینا پوښتنه وکړه، ډګروال یې تحقیق ته غوښتی و؟ شاه محمد وویل: چې تحقیق بادیګاردای عبدل از پیشش بوجی ساختن.

# درواغجنه هیله

د سهار ۹ بجې وې، چې چا د باندې زما نوم واخیست، خوشاله شوم، لکه څوک راباندې خبر شوی...؟

ما خپلو ملگرو ته ډاډ ورکاوه، که کوم جمعیتی خبر شي، بیا هیڅ غم نشته، اخر دا څه خوشباوري نه وه، ما لس کاله جمعیت کې صادقانه خدمت کړی، د جمعیت مرکزي اخبار مې چلولی و، کتابونه مې ورته لیکلي او څو ځله مې ددغه خدمت په جریان کې مرگ هم په خپلو سترگو لیدلی.

استاد رباني او د جمعیت ټولو مسوولینو او غړو پېژندلم، د اخبار او مجلې داسې گڼه نه وه چې زما په کې څه نه وو خپاره شوي، په تېره له فاضل سره خو مې د وختونو بلکې مودو اشنایي وه...

کوټې ته یو غټ او دنگ سړی راغی، له ماسره یې غوړ روغبړ وکړ، ځان یې معرفي کړ، چې د عبدل معاون دی، د خوست د فتحې پر وخت نیول شوی، ده خپله خوله زما غوږ ته نژدې کړه، ویې ویل: ما له ډېرو خلکو سره کومك کړی، له تاسې سره هم کومک کوم، پوښتنه یې وکړه قلم کاغذ لرې، ما ویل نه؛ ده له جېبه قلم راویوست ویل: زه درنه ځم، ته چې هر چاته خط لیکې ویې لیکه، زه یې ور رسوم، ما ورته وویل: که استاد رباني ته یې ولیکم، ده خپله سینه وډبوله، چې ولې نه، حتماً یې وررسوم او له دې سره له کوټې ووت، موږ له یو بل نفر سره چې د حزب وحدت غړی او ډېر ووت ننوت خبره کړې وې، چې که امکان

ولري، زموږ خط يوسي، ده وويل ولې نه خو چې په داسې سيمه کې وي، چې زموږ تګ امکان ولري، ما ورته وويل، دولتي مطبعه کې زموږ ملګري دي، خط مې د قانع، فاضل او... په نومو وليکه، ما ويل چې هر يو پيدا شي، خط به ورکړي، نور ته خلاص يې، ما فکر وکړ چې په دې کې يو هم پيدا شي، خبره جوړه ده.

قانع مې نېغ سترګو ته ولاړ وي... وايم دی دې د چوکۍ او رياست مزې اخلي، زه دې د مرګ کومي کې لاس پښې وهم... به تېره چې نور عليشاه راته ووايي: چې کونې خبر شې، خبره خلوصه ده... څکه خو مې د قانع هره ژمنه او خبره پر زړه اوري: که سپوره وي که پورې، ګډه به وي... دده ژمنې، په وينو لاسليکونه د طاغوت پر وړاندې د مبارزې او بغاوت سوګندونه...

نادر خان چې کابل ونيو د لښکر ځينې مشران يې اعزازي جنرالان کړل... اعزازي دا چې فرقه او غونډ کې يې دنده نشواى ترسره کولاى... يواځې جشن کې يې پوځي دريشي اغوستې او ځينې مراسمو کې برخه اخيستی شواى... د نادر خان له مړينې وروسته پخواني پاچا هم يو دوه کاله دغه دود پاله... او د خپل پلار دغسې انډيوالان يې دربار ته بلل...

يوه ورځ د غرمني پر وخت کوم مشر په ناپامۍ او بېړه مړۍ خولې ته کړه، دومره ګرمه او سوځنده چې پر ژبه يې پولۍ راخېژولې... خو ده بيا هم خپله خوله ټينګه کړه... له سترګو يې څک څک اوښکې راغلې... ددې لپاره چې خپلې اوښکې توجيه کړاى شي وويل: نودر خون دې تېرې خورې خورې مېړ دې دولته غوېښې نغاړو...

حاجي نسيم راته کړه: ته له قانع مناسب غواړې...؟ له لېوني يې مه غواړه، مه يې ورکوه...

قانع به ټوله ورځ پر مېز له طبله وهلو سره سندره کوله:

الله گل دانه، دانه دانه دانه دانه

شهرت گله تېروه دې جېلخانه...

الله گل دانه دانه

## وېروونکې خوښي، د وېر په تیارو کې:

ماسپښین په داسې حال کې چې عبدل چریک په کوم ښکار پسې وتلی و، یوه ملېشه موږ ته وویل، هغه سړی چې له دروازې راننوت پاکستانی دی، تاسې ورسره خبره وکړئ، که څه کار مو پرې وشي.

لږ وروسته په ونه مندرۍ تک سور او کوسه سړی، کوټې ته راغی، له خبرې داسې معلومېده، چې گنې کوم عصري گلم جم وي، موږ ته یې د میرانشاه والو په لهجه وویل: د کیم زوی یوئ، ما ویل، موږ د بېلا بېلو ځایونو یو، خو له حقاني صاحب سره کار کوو، دده خبره په رښتیا وېروونکې وه، چې له گلم جمو سره یې پوره ورته والی درلود، ځکه خو مې ترې پوښتنه وکړه، تاسې د کوم ځای یاست، ده بیا هم د میرانشاه والو په لهجه خبرې کولې، خو خبرې یې گوډې ماټې راته ښکاره شوې، داسې لکه له ځایه پښتون نه وي، ده وې زه د میرانشاه یم او کور مې ډنډو کې دی، موږ ته یې وویل تاسې څه-ثبوت لرئ، چې د حقاني کسان یئ، ما ورته وویل ثبوت څه ډول وي، موږ یې د فرهنگي دفتر مامورین یو، ده ویل خنکی پېژنې؟ ما چې هر خومره فکر وکړ، خنکی مې ونه پېژانده، پیر صاحب ته مې ویل، ته خنکی پېژنې، ده ویل خانکی پېژنم، خنکی نه.

بیا یې وویل خلیل پېژنې، موږ ورته وویل، ولې نه، ویل څوک دی؟ موږ ویل یو حاجي خلیل خو د حقاني صاحب ورور دی، ویل منشي یې څه نومېږي، موږ ویل سرحدي، ده یو څل بیا سر تر پښو راته ژور وکتل، بیا یې وویل تاسې یو خط ولیکئ، زه یې ورسوم، که خدای کول مازیګر مو بیا احوال اخلم.

خط مو ولیکه، خو ډېر محتاط، که عبدل یا مجید ته یې وښیې زموږ د الزام څه تکي په کې پیدا نه شي کړی.

کله چې دی له کوټې ووت، عبدل زموږ پیک اپ کې راورسېد، له ده سره یې یو څه خبرې وکړې او بیا دواړه په موټر کې ووتل.

موږ کرل او رېبل، کله به خوشاله شوو، او کله سخت خواشیني او وارخطا، هسې نه دا سړی او خط مو د بلې بلا په خوله ورکړي.

مازیګر چې د اوداسه لپاره وتلی وم، کوټه کې مې د کومې مجلې پر دوو پاڼو نظر ولګېد، بې اختیاره پرې ور ټیټ شوم، شکېدلې پاڼې مې راپورته کړې، په غالب ګومان د کابل مجلې د کومې ګڼې پاڼې وې، د مرحوم استاد الفت شعر مې په کې ولوست:

وربـــل یـــې مـــا پـــه خـــوب کـــې پرېشـــان لیـــدلی دی
ســـتا بخـــت خـــو مـــې رقیبـــه دغـــه شـــان لیـــدلی دی
له دامه که دې خلاص کړم په قفس کې دې ایسار کړم
صـــیاده مـــا خـــو څـــو رنګـــه زنـــدان لیـــدلی دی
تعبـــیر یـــې کـــړی مـــا پـــه ظالمـــانو بـــه چپـــه شي
چپـــه کاکـــل مـــې خـــوب کـــې د جانـــان لیـــدلی دی

حسب حال شعر و، په رښتیا هم چې د استاد الفت شاعري د

عمرونو او زمانو شاعري ده، زه په همدې سوچونو کې وم، چې شاه محمد غږ کړ، راوځه؟ چې ورنژدې شوم، په گواښمنه لهجه يې وويل، هوښيار سړی يې دا څه کوې، نه گورې قوماندان راوتلی، اوس به ځان هم پرې څب څب کړې او موږ هم...

يو بل ملېشه چې لطيف نومېده، د مزار اوسېدونکی او ډېر ور و، له موږ سره په خواخوږی مخامخېده، دده خبرې که څه هم خوږې وې، خو په عمل کې يې له ناغېږی ځان ډېر ناتوانه ښوده، حتی د يوې عادي خبرې او ضرورت ښه مو پرې نه کېده، لطيف زموږ کوټې ته راغی، ويې ويل دا سړی قوماندان ته ډېر نژدې دی (مطلب يې هغه مخکېنی سور ږيری و)، کېدی شي ستاسې کار وشي، ده زياته کړه: هغه بله ورځ قومندان يو موټر مهمات او کلاشينکوفونه دغه سړي ته ورکړل.

سړي چې مازيگر يې د احوال اخيستو وعده کړې وه، درک معلوم نه شو، سبا مو هم دده انتظار وکړ، خو څه پته يې ونه لگېده، موږ ته اوس د هغه په اړه ډېر شکونه پيدا شوي وو.

د بند په درېيمه ورځ يې قضا مازيگر يو بل ځوان هم زموږ کوټې ته راتېل واهه، خورا وارخطا معلومېده، ژبه يې په خوله کې داسې وچه کلکه وه، چې په ډېرې سختۍ يې ښورولی شوای.

په موږ چې دا حال تېر شوی و، ددې لپاره چې زړه ونيسي، د مينې او خواخوږۍ خبرې ورسره پيل کړې، که څه هم لومړی احمد ضيا او سينا غوښتل ټوکې او خندا ته زمينه جوړه کړي، خو د همدردۍ عنصر پرې غالب شو او له هغه سره يې د خواخوږۍ په لهجه خبرې راواخيستې.

ده په نه زړه او وېره خبرې کولې، ځان يې اصلاً د کندهار

اوسېدونکی او فعلاً په کابل کې د دفاع انقلاب په اوپراتیفي غونډ کې ضابط او نوم محمد صادق ښود، ښه دري یې ویله، داسې لکه د کابل اصلي اوسېدونکی وي، خپله کیسه یې داسې پیل کړه: میوند واټ کې روان وم، بایسکل راسره و، ملېشو ودرولم، راته ویل یې، بایسکل نه اخلې؟ ما ویل کوم، زما خپل هغه ته یې اشاره وکړه، ما ویل دا خو زما خپل بایسکل دی، په غوسه شو، ویل خبره خلاصوه په موږ مه ناوخته کوه، که نه یې اخلې لار دې وهه، ما غالمغال وکړ، په دې کې څو تنه نور راغلل، په کنداغونو یې ووهلم، جېبونه یې راتش کړل، ساعت یې هم رانه واخیست او په هغه دو سیټه ډاډسن کې یې راواچولم، پیر صاحب ویل، زموږ په موټر کې یې راوړې، خو د صادق په خبره ملېشو ویل، دا موټر یې له حزبیانو یوه جګړه کې نیولی، لس تنه حزبیان وو، اووه کسه مو ترې ووژل او درې مو ژوندي ونیول.

احمد سینا چې زموږ د دفتر زنده دل او ظریف ځوان دی او په ډېرو سختو حالاتو کې به هم دده خوله په ټوکو خلاصه وه. پټه خوله و، لکه ګونګه روژه یې وي، دده به پر ځان عسکري ستر کوټ اچولی او تر هغې لاندې داسې پټ و، لکه له سره په کې دمه نه چلېږي، موږ به که هر څو ورته وویل، چې څه درباندې وشول، ستا خو خوله له ټوکو او خندا نه ټولېده او دلته دې خوله نه چوله کېږي، دی به ایله تر عسکري وړین بالاپوښ لاندې، وښورېده او له نصوارو ډکه خوله به چوپ پاتې شو، ښه و د صادق په راتلو دده په زړه کې د خبرو او یوې نیمې ټوکې زړی زرغون شو.

صادق ښه ځوان و، هره ټوکه یې په خندا ټېروله، دده خندا خپله یوه ټوکه وه، چې موږ به یې نور هم خندولو.

د جماعت په لمانځه کې مو په اشارو او سترگو سترگو کې له هغو ځلورو بندیانو سره پوهول، چې وضعه او حالات څه وړ دي او بېگا څه تېر شوي، ځکه له دوی سره د گلم جم پینځه تنه او ډگروال بندیان وو.

## د مرگ پر پوله:

د سهار ۸ بجې دي، چې د عبدل معاون مو له کړکۍ ولید، پیره دار ته مو وویل، ورته اواز کړي، هغه راغی، زه یې بلې کوټې ته بوتلم او هلته ورو ورو راته لگیا شو: زه خو پرون بل چېرې تللی وم، ستاسې خط رانه پاتې شو، تا خط لیکلی ما ویل هو! د استاد رباني په نامه مې لیکلی، ده خط واخیست او نور هم رانژدې شو او ډېر ورو یې راته ویل:

زه له دغو ازبکو سره گېر راغلی یم، څه وکړم، ځان نه شم ترې خلاصولی، هلته مې په وطن کې بچیان د دوی په ولکه کې دي، خپل وار ته به گورم، چې وار مې پرې برابر شي، کار به یې وکړم، بیا یې وویل گورئ دا ډېر وحشي خلک دي، زه ډارېږم چې تاسې مړه نه کړي، د مرگ له نامه سره زما په خوله کې لاړې وچې شوې، رنگ خو مې نه شوی لیدلی، چې څنگه به و، ماته دده خبرې یوه توطیه ښکاره شوه، زړ مې ځان راټول کړ، په جدي بڼه مې ویل: زموږ مرگ دومره اسانه نه دی، موږ داسې واړه خلک نه یو، چې له مرگه وروسته دوی څوک داسې کرار پرېږدي، موږ علاوه له قومي او سیاسي پشتیوانۍ له موجوده حکومت مجددي، رباني، مسعود او ټولې حکومتي دستگاه سره روابط لرو، چې موږ یو وار خوشې شو، بیا به معلومه شي.

ده د خپل ماضي یادونه وکړه، ویل یې گوره غر په غره نه ورځي او

بنیادم په بنیادم ورځي، زه درسره کومک کوم، خیر که بیا کوم وخت په لوکس موټر کې زموږ له مخې تېر شې او خوا ته مو ونه گورې، ما ورته ویل انسان د احسان تابع دی، ستا ددغې خواخوږۍ او خبرو احسان به موږ هېر نه کړو.

ده راځخه د استاد رباني په نامه لیک واخیست، ویې ویل: دا ټول ازبک یې چې ټول کړي په همدې یې ټول کړي، چې د غلا چور چپاول اجازه یې ورکړې، که نه څوک خو لېوني نه دي...؟

ده وویل: زه چې څه کوم یا مې کړي، وایم چې کړي مې دي، زه هم خلک لوټم، خو داسې خلک چې لږ چاغ او ښه غوښه ولري، په بېچاره وو لاس نه پورته کوم، ده وویل: زه درې وارې شوروي ته تللی یم، رتبه مې جگتورن ده، تر دوولسمه مې تعلیم کړی، خو زه چې د دوی په زړه برابر نه یم، رتبه یې نه ده رالوړه کړې.

له کوټې د وتلو پر وخت یې په جگ اواز خبره بدله کړه: د مریض غم مو خورم، زه به قوماندان ته ووایم، تاسې بې غمه اوسئ.

## ترخې شپې، خواږه یادونه:

که څه هم په کوټه کې ډېر تنگ او د پښو غځولو ځای مو په سختۍ پیدا کولی شوی، خو د هغو درېو کسانو په ملگرتیا چې زموږ کوټې ته یې رالېږدولي خوشاله وو، هغوی د لمانځه اوداسه پابند او د ښو اخلاقو خاوندان دي، ظاهراً یوه ځان ډېرور بل مستري او درېیم د کډې خاوند باله، هغه ځوان چې ځان یې ډېرور معرفي کاوه، خپل نوم همایون ښوده، ښکلی ځوان و، گردۍ توره ږیره، غټې سترگې او له رنگه

سپين و، د ښې روېې خاوند او تعليم يافته معلومېده، ده ماته وويل، ستا مضامين مې لوستي او په غياب کې مې درسره معرفت درلود.

ده خپله کيسه داسې وکړه: د موټر پرزه مو لټوله، دا مستري هم راسره و او له دغه بل صوفي سره مو د هغه د کډې راوړلو بيه خلاصه کړې وه، کله چې له پرزه فروشی راووتلو، ملېشه راڅخه تاو شول او دا پېنځلس ورځې کېږي، چې دلته پراته يو، په دوی کې هغه ځوان چې د کرايې والا په نامه يې څان ښوده، ډېر وارخطا و، سترګې به يې له خبرو سره له اوښکو ډکې شوې، داسې معلومېده، له ژوند يې تمه پرې شوې، خو ډرېور او مستري داده معلومېدل.

همايون ويل، چې له موټر تېر يم، که په موټر خلاصېږو، زه به خط ورکړم چې دا موټر مې په ۴۰ لکه په عبدل خرڅ کړی دی.

شپې ته بيا د عبدل د نشو او تماشو پروګرام و، ښځې وې، ساز و نڅا او فحشا، موږ په دغه شپه کې له نويو ملګرو سره په خوږو خبرو د خوب په اسره سترګې پټې کړې، دوی کيسه کوله چې يو ماښام يې له يوه دوسيته ډاډسن سره څلور کسه راوستل او له راوستلو سره يې په هغه چمن کې په ګوليو غلبېل کړل.

دوی ويل عبدل هرې دوې يا درې ورځې وروسته د نڅا او فحشا پروګرام لري او دا نور يې په خپلو کې سره اخته وي، دوی به خپلې ګوټې غوږو ته يووړې توبې يې ايستلې، بيا به يې په داسې انداز کې لکه نه شي ويلی او دا خبره پرې ډېره سخته تمامېږي، وويل قمار، چرس، شراب، زنا او لواطت د دوی کار دی. د شپې دوې بجې وې، چې د ځنځير له غږ سره دروازه په ډېر زور خلاصه شوه، درې کسان کوټې ته ننوتل، ويل يې هغه پيسې ببرته راکړئ، ژر کوئ، ټول ګوته په ماشه ولاړ وو، موږ هم

ژر ژر پیسې ورته کېښوې، ما یو بنډل وګرځاوه، چې ګنې پام یې نه شي او یا دومره پسې ونه ګرځي، خو هغوی چې د پیسو بنډلونه وګڼل، ویې ویل یو بنډل کم دی هله، او داسې مې هغه بنډل هم وروغورځاوه.

موږ پوه شو، چې مخکنۍ لوبه او د پیسو راکول ددې لپاره و، چې باډیګارډانو پرې عبدل نه و خبر کړی او ټولې یې خپلو جېبونو ته کړې وې.

سهار ۹ بجې یې ددغو بندیانو پر پک اپ د جمعیت شین بیرغ ودراوه، څو کسان په کې سپاره شول او له دروازې ووتل، همایون ویل: زموږ موټر یې مزار ته بوتی، ده وویل ښه شو، کېدی شي موږ هم خوشي شو.

همایون وویل تاسې باید هغه سره سرې ته چې له عبدل سره یې اشنایي ده، او دې بل ته خط نه وی ورکړی، ما ورته وویل خطونه مې په ډېر احتیاط لیکلي، داسې څه په کې نه شته، چې د کوم تور پلمه ترې جوړه شي، ده وویل دا خلک په پلمه ملمه پسې نه ګرځي، موږ هم په خطونو پښېمانه او وېرې اخیستي وو، خو شوی کار و اوس مو هېڅ نه شوی کولی.

## د اندېښنو توپاني څپې:

د پیر صاحب وضعې موږ ټول پرېشانه کړي یوو، داسې معلومېده چې کوټه کې یې دمه بندېږي، کله به وغځېد، کله به د پښو په سر کېناست کله به یې کړکۍ ته منډه کړه او کله به یې ور ټکاوه.

رنګ یې په هېڅ توګه د ژوندي نه معلومېده، کله کله به یې له ځان

سره لاسونه خوځول، په خوب کې به یې هم خبرې کولې، په تېره کله به چې زموږ پک اپ له دروازې دننه یا دباندې وويستل شو، د پير صاحب حال ښخي كوما ته رسېده.

په زړه پورې دا چې کله به د پښو په سر ناست او سر په گونډو تکیه کړی و، ناڅاپه به یې زه د پښې تر غټه گوته ونيولم، وبه یې ښورولم او چې ما به سترگې ور پورته کړې، ده به په وارخطايۍ سره وويل: چې غم ونکې ننگیول سویب: او بیا به یې بېرته سر په گونډو کېښود، لږ وروسته به یې بیا دا عمل تکرار کړ او کله کله به یې دا هم ورسره زیاته کړه، سر دې وخوري پیسې، ښې شوې چې وایې خیستې، دغو پیسو ضرور میږ ته غم جوړاوه. موږ اندېښمن وو، چې هسې نه کوم عصبي شوک پرې راشي، ځکه له نورمال او عادي حالت د باندې و.

یوه ورځ یې یو څه سپینه سیلو ډوډۍ راوړه، احمد سینا په خندا خندا کې وویل، نن موږ صاحب منصبان شوي یو، ما ويل څنگه...؟ ده وويل دا د صاحب منصبانو سيلو ده، خو د صاحب منصبانو سيلو په موږ داسې کانه وکړه، لکه گولۍ نژدې وه، تر کلمو مو پورې ورې وخېژي.

د مستري په نامه بندي په تاخچه کې دغه ډوډۍ، گولۍ، شيرينۍ او څه نور شيان ايښي وو او زموږ د پام غلطولو لپاره به يې ويل، دا زما دوکان دی، احمد سینا چې په وره کې له څپليو او بوټونو سره پروت و، ويل زه د څپلو دوکان لرم، څوک چې د باندې وتل له ده به يې یوه جوړه څپلۍ رانيولې.

اوس نو موږ له پوره نهیلۍ سره مخامخ وو، د حزب وحدت ملېشه چې پیسې او خط مو ورکړي و، په حوېلۍ کې گرځېده او هېڅ ځان یې

نه پوهاوه، د عبدل معاون هم درک نه و او د هغه سور ککي هم پته نه لګېده، موږ داسې ګڼله، چې لا تر اوسه په موږ نه جمعيت خبر دی او نه څوک.

## هغوی ازاد شول:

موږ هغو دريو تنو ته وويل، که تاسې خلاص شوئ، زموږ احوال به رسوئ او که موږ خلاص شو، ستاسې احوال به رسوو.

په دغه ورځ بيا مزار ته زموږ د وړلو اوازه شوه، سلطان ورو وويل: لکه تاسې مزار ته وړي، خو بيا يې ژر دا خبره ورسره مله کړه، مزار ښه دی، هلته که دوستم خبر شي، تاسې ضرور خوشې کوي، مازيګر درې بجې دي، چې د کوټې دروازه خلاصه شوه، موږ ته يې غږ کړ، چا ورته وويل دا نه هغه بله ډله، موږ يې بېرته کوټې ته ننيستلو او هغه درې تنه يې ورسره وايستل، موږ له کړکۍ کتل، عبدل چې د خپلو باډيګارډانو په مينځ کې ولاړ و، له دوی سره لنډې خبرې وکړې او له لږ ځنډ وروسته يې خوشې کړل، خو موږ پوه نه شو، چې له دوی سره به يې څه ويلي وي موږ د دغو دريو تنو په خلاصېدو خوشاله شو، چې زموږ احوال به هم تر يوه ځايه ورسوي.

له دغو انډيوالانو سره مو د مينې او وروري داسې اړيکې ټينګې وې، لکه د کلونو پېژندګلوي او اشنايي مو وي، له همدې امله وه، چې د دوی د بېلتانه دوك مو هم تر ماښامه احساس کړ. موږ له صادق سره ډېرې کيسې کړې وې، د خوستوالو خبره ښه جمه مو جوړه وه، دلته په يوه ساعت کې د بنديانو ترمينځ داسې اړيکې جوړېدې، لکه عمرونه چې پرې

تېر شوي وي، څکه خو زموږ ترمینځ هم د اخلاص لورېينې او صداقت یوه پخه رابطه ټینګه شوې وه.

دا شپه مو هم څه په ویښه څه په خوب او ډېره په سوچونو او خیالونو کې تېره کړه، ما به چې خپلو ملګرو ته وکتل، نو هر یو به ویښ پروت و، که زموږ پر ځای هرڅوک وای، همدا حال به یې و، موږ د ژوند له یو سخت امتحان سره مخامخ وو او د الله تعالی له دربار پرته مو د نجات هېڅ لوری نه لیده او هېڅوک مو په حال نه خبرېدل.

له سهاره تر غرمې د معمول مطابق وخت تېر شو، احمد ضیا پر دې ورځ ډېر ناکرار و چې هرڅوک به یې ولیدل، په جان او قربان به یې د خپل خلاصون عریضه ور وړاندې کوله او چې هغه به ورڅخه ولاړ، نو ورو ورو به یې کنځل پیل کړل، عیسی خان چې اوس له موږ سره بلد شوی و وویل: د قوماندان عبدل ورور راغلی، که هغه مو څه غم وخوړ، د عبدل په ورور پسې یې غږ وکړ، هغه راغی ستړي مشي یې وکړل، احمد ضیا ورته پیر صاحب وبلود، چې مریض او وضعه یې خرابه ده، تور زېړي نیولی، که تاسې مهرباني وکړئ، قوماندان صاحب ته سفارش وکړئ.

عیسی خان هم ورته وویل، دا بېچاره ګان کومه ګناه نه لري، پر پرده چې اختر په خپلو کورو کې تېر کړي، زموږ هر یوه چې څه زده وو، هغه مو وویل، د قوماندان عبدل ورور چې له ده مشر او څه معتدل مزاجه معلومېده، وویل، خوب شو یک چاره میکنم.

## د وحشت دېوان، د ښاپېريو په هوس کې:

د شپې نهه نيمې بجې دي، د عبدل يو باډيګارډ چې عبدالقيوم نومېده، دروازه بېرته کړه، ويې ويل، راوځئ، موږ وارخطا شو چې په دې توره شپه کې بيا له څه بلا سره مخامخ کېږو، پوښتنه مو وکړه، ويې ويل، قوماندان غوښتي ياست، کله چې د قوماندان د اطاق په پوړۍ مو پل کېښود، يوه څلور کنجه ستره کوټه مو مخې ته راغله، چې نوې رنګ شوې، له دې وړاندې بله کوټه ده، کله مو چې د هغه پر درشل پښه کېښوده، داسې مو وګڼله لکه بلې دنيا ته راغلي وو، سرې فکر کاوه، د کوم اروپايي کلب فلمي ننداره کوي او يا هم په کوم خارجي ناول کې د هغو کلبونو عيني تجسم ويني، دا نسبتاً لويه کوټه ده، دېوالونه يې تازه په شنه روغني رنګ ښکلي شوي، لاندې د مور غالی غوړېدلې، چې هغه ستره کوټه يې له يوه سره پوښلې، شاوخوا مدرن او ښکلی فرنيچر پروت دی، عبدل په يوه اوږده سيټ، يوه ښکلي توس او بالښت ته ډډه وهلې، د کوټې په چت د څراغونو ډېرې قيمتي او ښکلې قبې ځړېدې، په چت او دېوالونو رنګينو څراغونو مسلسل سترګکونه وهل.

چې کوټې ته ننوتلو، عيسی خان هم په يوه کسيزه سيټ کې بوخ ناست دی، سلام مو ورکړ، د ننوتلو اجازه مو غوښته، په ډېر ادب او مظلوميت کوټې ته ننوتلو. عبدل لاس را اوږد کړ او له هر يوه سره يې ستړي مشي وکړل، موږ ودرېدو، ده راته د کېناستو اشاره وکړه، موږ لاندې په فرش ګونډې ماتې کړې، خو عبدل کوچونو کې د کيناستو اشاره وکړه، سينا ووېل همدا ځای ښه دی صاحب، خو عبدل چيغه کړه: بر کېنئ، سينا له ټولو وړاندې پر کوچ وروغورځېد، په مېز يو

ترموس، څو پیالې او په قابونو کې خشتي قند او گاو چاپي پولنډي چاکلېټ پراته وو، عیسی خان ته یې د چای اشاره وکړه، هغه پاڅېده، خو ترموس تش و، قیوم ته یې غږ کړ هغه چای راووړ او موږ ته یې یوه یوه پیاله کېښوه.

زموږ نظر په کوټه کې ورک شو، په بر کونج کې د قبلې خوا ته، وي سي آر چالان دی، یوې ښځینه سندره ویله، په الماری کې ډېر ټیپونه ((ځینې په کې د موټر)) ایښي، زموږ هغه وړوکی ټیپ هم پکې لیدل کېده، د کوټې منظره فوق العاده جالبه او حیرانوونکې وه، شاعرانه نه وه، خو عاشقانه او مستانه ضرور وه.

عبدل په لاس کې د تلوېزیون ریموټ اړاوه را اړاوه ماته یې مخ کړ: نغمه دې لیدلې؟ ما که څه هم د نغمې د حسن اورېدلي وو، خو تر هغه وخته مې په وي - سي - آر څېره نه وه لیدلې، نغمې په وي- سي- آر دا سندره کوله:

ډکې لارې دي را روانې د خیبر نه
کله به راشي له پېښور نه

د نغمې سندره حسب حال وه، له خیبر ډکې لارې څغلېدې، له پېښوره زموږ غونډې دوزخي پردېسیان د جنتي وطن په مینه راستانه شوي وو، خو دلته د مرگ او ډار هیولا له پخوا زیات کومې شلولي، هماغه اووه دوزخونه وو، چې هرڅه یې ایرې کړي و.

څکه خو له دې ځایه هم د خیبر په لور ډکې لارې یوه پر بله پسې روانې وې، داسې چې ددغو دوزخونو په مینځ کې څوک تلل او څوک راتلل.

عبدل خپلو خبرو ته دوام ورکړ: نغمه اوس ډېره چاغه او غټه شوې، پخوا ډېره ښکلې معلومېده.

ده د نغمې د بدن د هرې برخې په هکله خبرې کولې او د هغې جوړښت او کچه یې تشرېح کوله، بیا یې خوله له خندا تر غوږو جینګه کړه، ویې ویل: زما یې دا غاړه ډېره خوښېږي.

زه حیران وم، چې دده د خبرو په رابطه څه ووایم، که چوپ پاتېږم، هسې نه بده یې وګڼي او غوسه شي او که څه وایم نو خدای حاضر دی، په دې هکله راسره د ویلو هېڅ نه و، ما دده سترګو ته کتل چې کله به له عادي حالت ووتلې، سترګې به یې وګډېدې، تکان به یې وخوړ او د خبرو لړۍ به ترې ګډه وډه شوه، زه پوهېدم چې ددغسې وګړو جنایات، وژنې او ظالمانه اعمال دوی په نورمال او عادي حالت کې نه پرېږدي او هره لحظه امکان لري، وړه خبره یې هم ډېر خطرناک اقدام ته اړ کړي، څکه خو دده په اړه زما په زړه کې نوره وېره پیدا شوه.

خو احمد سینا د خبرو وار ړومبی کړ، په وارخطایی یې له خولې ووتل، اوس "نغمل او منګه" هندوستان ته تللي، داسې سندرې یې ویلې او هغسې فلمونه یې ډک کړي، عبدل یې خبره غوڅه کړه، ښه ده چې تللي که نه اوس به یې له دغو ړیرورو خرو سره څه کول؟

ماته یې په کتو زیاته کړه: دا ړیرور خره ملایان ګورې، کله چې په تلوېزیون کې د ښځې خېره راځي، په ځای یې ګل ښکاره کوي، ما ویل ګل ښه بدیل دی، ښه ده، بل څه نه ښیي، په زړه کې وایم کاشکې له احمد سینا سره یې سترګې مخامخ شي، زه دده د پوښتنو په رابطه څه ویلی شم؟

ده په ریموټ فلم له سره کړ، یوه بله سندرغاړې چې ده ورته د

رحیمې نوم واخیست، سندرې ویلې د هغې په هکله یې هم ډېر څه وویل، خو ښه و، سینا ورسره لګیا شو، دروغ رښتیا یې ورته بادول.

ده بیا د نغمې خبره راواچوله، ویې ویل پخوا به چې زه کابل ته راغلم، حتماً مې ورسره لیدل، سینا ورته وویل، قوماندان صاحب نغمې تا سره خبرې کولې؟ ده په ډېر غږ او جدي بڼه وویل: هو! زما له پیسو سره یې خبرې کولې، سینا به ضرور دده د خبرې په مقابل کې یو څه بادول ما په زړه کې ویل، خدای دې خیر کړي، په کومه خبره د سینا بریک ونه شلیږي او په غم مو وانهړوي. ده بیا ماته سترګې ونیوې، که څه هم ما کوښښ کاوه، له ده سره مې سترګې ونه لګیږي، خو تصادف ته ګوره، زما او ده سترګې به سره مخامخ شوې.

په دې وخت چې یوه بله سندرغاړې د تلوېزیون پر سکرین ښکاره شوه، دده خوله بیا تر غوږو جینګه شوه، ویې ویل: دا (ستاره) ده، یره دا م قلف مال دی، بیا یې ماته مخ راواړاوه، ویې ویل دا موټر حقاني تاته درکړی، ما ویل زما خپل دی... ویل، دا چې په ګولایي کې په تېزۍ سره تاوېږي د چپه کېدو خطر یې خومره دی، ما ددې لپاره چې موټر یې تر پام بد کړای شم، وویل فوق العاده زیات، دغه ماډل ډېر ژر اوړي، له دې هغه مخکینی ښه دی، هغه چې کله په تېزۍ سره ګرځي، ټایرونه یې پلن او مایل شي او نه چپه کېږي، ده وویل سرعت یې خومره دی څه نورې پوښتنې یې هم وکړې، ما ویل زه د موټر په رابطه ډېر معلومات نه لرم، ده ویل: چا شاړه ((چلاوه)) پیر صاحب مو په ګوتو ورکړ، څه پوښتنې یې ترې وکړې، خو هغه هم داسې ځوابونه ورکول، چې که دده زړه له موټر تور کړای شي، ده د موټر د قیمت پوښتنه وکړه، ما یې قیمت هم کم وښود، په دې وخت کې بلې سندرغاړې ته وار ورسېده،

ده بیا د تلوېزیون خوا ته اشاره وکړه: دا ژینوس ده (کېدی شي ما یې نوم سم نه وي اورېدلی او یا ده سم نه وي تلفظ کړی) او اوس یې له یوه سرمایه دار حاجي سره دوبۍ کې واده کړی.

ده په خبرو خبرو کې د خپل ژوند کیسه وکړه، ویل زما خور څوک دولتزي یې وښودل، ټنبټولې وه، زموږ زور ورسره برابر نه و، بیا چې تره کی راغی، زه له مجاهدینو سره شوم او د حزب اسلامي سرګروپ شوم، خو هغه زموږ دښمنان هم مجاهدین وو، زه له یوه میل کلاشینکوف سره حکومت ته واوښتم، تر یوه وخته په یوه پوسته کې وم، خو بېرته له دریو کلاشینکوفو سره حزب ته تسلیم شوم، دا ځل د یوې ډلې قوماندان شوم، خو څه موده وروسته بېرته له حکومت سره یو ځای شوم او له دوستم سره مې انډیوالي شوه، دا دی تر جنرالۍ ورسېدم.

ده وویل: زه مخکې ډګروال وم، خو کله مې چې کابل کې له حزبیانو سره په جګړو کې هغوی ته ماتې ورکړه، او له ارګه مې وایستل جنرالي یې راکړه، دده په وینا: دا خره دي، حکومت نه شي کولی، دوستم په مزار کې له ایران، شوروي او هندوستان سره روابط ټینګ او قراردادونه امضا کړي، موږ څه وخت ګورو که حالات ښه نه شول، بیا سالنګ بندوو، هلته مو خپل حکومت او واک دی.

د عبدل په وینا له کابله حزبیان ده شړلي، اول دا ځای دا غونډۍ ټولې حزبیانو نیولې وې، ما حمله پرې وکړه، کسان مې هم لږ وو، په یوه ساعت کې مې دا ټوله سیمه ترې پاکه کړه.

یو شمېر مې چې ژوندي ونیول... له دې خبرې سره یې له ډېرې غوسې څېره توره و ابښېده په لږ څنډ یې په ټینګو ټکو وویل... ټول مې سلې خلا (خلع السلاح) او په هماغه ځای چانماري کړل.

دده په خبره کله مې چې له ارگه حزبيان وايستل، يو ځو کورونو ته ورغلم، هغه کورونه د هندوانو وو، هندوانو ته مې ښه جزا ورکړه، خو دا يې ونه ويل ځرنگه جزا؟

ده ويل: زما درې ښځې شته، خو دوې نورې هم کوم، يوه هندوه کوم او بله مې چې هر وخت قدرت ورسېد، که سپين ږيرى هم وم، له هغه کورنۍ ځخه چې زما خور يې تښتولې...

ده وويل: زه مو خوشې کوم، خو د فرقې معاون مو نه خوشې کوي، احمد ضيا دده په توصيف خوله خلاصه کړه، ويل چې تاسې وغواړئ د فرقې معاون هېڅ نه شي کولى، موږ ته معلومه شوه چې ستا په مخ کې جنرال دوستم هم نه شي درېدلى، ستا خپله پادشاهي ده.

ده له موږ د تنظيمونو پوښتنه وکړه، په ده د تنظيمو او د هغې د مشرانو غيبت ښه لگېده، ځکه خو سينا ته د خبرو وخت په لاس ورغى، يوه له غره او بله له سمې (له همدې ځايه وه چې احمد ضيا ورته د رحيم پوف لقب ورکړى و) دده په وينا ننگرهار کې يو سړى رحيم نومېږي، ډېرې لافې شافې او درواغ بادوي، خلکو پرې د رحيم پوف نوم اېښى، خو سينا مو چې وليده، رحيم پوف يې په گرد پسې نشواى رسېدى) داسې څه يې بادول، چې نژدې وه په هغه خطرناک وخت کې له غمه په کړس کړس وخاندو.

سينا په خپل تقرير کې د سکته قلب خبره وکړه، عبدل تکان وخوړ، فکر يې وکړ سکته قلب به څه بده خبره وي، ويې ويل، سکته څه...؟ سينا چې دده گډېدلې سترگې وليدې، لاړې يې خوله کې وچې شوې، په وارخطايۍ يې وويل، زز زره د، درېدل داسې معلومېده لکه په دې خبره هم د عبدل سر نه وي خلاص شوى، خو نور څه يې ونه ويل.

د سینا په خبرو عبدل من من غوښې اخیستې، ده وویل دا ډېر بېغیرته خلک دي، گوره دا خو شپې تاسې دلته بندیان یئ ته وایې دوی به نه وي خبر، ولا خبر دي، گوره ستاسې پوښتنه قدرې هم ونه کړه، سره له دې چې تاسې به د دوی لپاره څومره منډې کړې وي او څومره خطرونه او سختی به مو په ځان تېرې کړې وي.

سینا ته بیا د خبرو وار ورغی، ویې ویل: موږ ته معلومه شوه، چې دوستم تا دوستم کړی، تا هغه ته دا نوم گټلی، داسې دې کړي او هغسې دې کړي دي. ده له سینا پوښتنه وکړه، د کوم ځای یې، سینا ویل د جلال آباد، عبدل په جلال آباد کې د خپلو جگړو او ۸ میاشتنیو عملیاتو یادونه وکړه، چې هلته مو داسې وکړل، داسې وجنگېدو او داسې مو اشرارو ته ماته ورکړه، یوه ورځ داسې وشول او بله ورځ هغسې. سینا لږ شانته چوپ شو، لکه په کوم ژور سوچ کې ډوب وي، په ډېر غور یې وویل: ولا ستاسې نوم مې اورېدلی، هلته ټول ستا له نامه سره اشنا دي، ټول دې یادوي او ټول دې پېژني، ستا کیسې کوي، عبدل په کوچ کې کېناست، ځان یې جدي ونیو، لکه دنیا ټوله دده پر ښکر ولاړه وي، ویې ویل: ښنگه به مې نه پېژني، د اشرارو بېخ او بنیاد خو په جلال اباد کې ما ایستلی.

ده ویل: مسعود دا دومره کاله ولې کابل ته نه شوای داخلېدی، دوی ټولو ښه زور وواهه، خو ویې نه شوی کولی، چې نجیب له مینځه یوسي، خو موږ وکولی شوای هغه ختم کړو، اصلي قدرت له موږ سره دی، مسعود هسې برای نام خبره ده، اوس که موږ وغواړو مسعود به نه وي او چې موږ د مسعود حمایت پرېږدو مسعود ختم دی.

ما خپله داسې گڼله، لکه د اور په تبی ناست یم، هره لحظه مې

ساعت ته کتل، دولس بجې شوې، له جنرال عبدل مو اجازه وغوښته، خو ده ویل: کېنئ خبرې کوو، موږ ویل: تاسې به ستومانه وئ، د ارام وخت به مو وي، خو ده بیا تکرار کړه، کېنئ؛ سبا مو خوشې کوم، دده له خولې د خوشې کېدو په اورېدو مو ځانونه داسې وګڼل لکه همدا اوس خپلو کورو کې اوسو.

دا وخت چې په وي- سي- آر یوې هزاره ګۍ سندرې ویلې، عبدل عیسی خان ته وویل: په تاسې هزاره ګانو کې هم د کندهاریانو خبره نامي ښځې شته، هغه په ذلیل او حقیر انداز وویل، صایب افتخار است، صایب افتخار است، بیا یې وخندل، لکه دا خبره یې هسې په ټوکه او د ظرافت په حساب کړې وي.

عبدل د هزاره ګانو د عسکري تعلیم خبره راواخیسته ویې ویل، کله چې هزاره ګان تعلیم کوي، د یو - دوه په ځای یکک، دوکک، یک دوکک، واز جفت وایي، عیسی خان به له خندا شین شو، که به خندا نه ورتله هم خوله به یې داسې شکولې وه، لکه ښه د زړه له تله خاندي.

عبدل یو ځل بیا ماته خپلې خونکاره سترګې په یوه مرموزه ښه راواړولې، ویل: دا مردګاوان زموږ کسان ولې له ښاره تښتوي او وژني؟ ما ویل څوک؟ ویل: ګلبدین او سیاف زه بیا وارخطا شوم، ما ویل لکه بیا یې د حکمتیار او سیاف په تور ونیوې، ومې ویل څه خبر؛ ښه نه کوي، ده ویل موږ هم کولی شو ان د سیاف او ګلبدین د اوسېدو ځای په یوه مرمۍ ایرې کړو، خو دا کار نه کوو، په زړه کې مې ویل: دریغه دا کار مو کړی وی...

له یوې بجې هم څو دقیقې تېرې وې، ماته شکونه او اندېښنې رامخې ته شوې، چې دا دومره کېنول څه معنا؟ عبدل له یوه لنډ

سکوت وروسته راته کړه: ما خو ویل چې سبا به مو خوشې کړم، خبره دا ده چې سبا موږ بیا پروګرام لرو، هغه مېله او سیل به راسره تېر کړئ بیا به ځئ، موږ ترې مننه وکړه، چې اختر ته دوې ورځې پاتې دي، ایله خپلو کورو ته ورسېږو.

احمد ضیا وویل، ما په کور کې د دوو شپو خبره کړې اولس ورځې ووتې، په کور کې به مو قیامت جوړ وي، عبدل ویل، داسې سات به مو تېر شوی وای، چې تر عمره مو یاد پاتې وی چې کابل څنګه کابل دی، نن مې هم موټر او سړي لېږلي وو، خو کار سُر نه و نیولی.

عبدل عیسی خان ته مخ واړاوه، ویې ویل: زه خو له دې خپلو کوکریو (باډیګارډانو) عذاب یم، چې کله څه مېله جوړه کړم، دوی په کړکی کې سرونه نېغ نیولي وي.

احمد سینا ورته ویل: قوماندان صاحب کړکی ته پرده ونیسه، ده لکه د سینا خبره له سره نه وي اورېدلې، خپلې خبرې ته یې دوام ورکړ، ته وګوره هغه بله شپه ما هېڅ ونه کړل، ته ماته ګوره هر طرف به مې چې مخه کړه، نو دا کوکري به راپسې وو.

د چا نوم یې واخیست، ویې ویل هغه شپه ... اراموني خپل کار کړی و.

د ساعت عقربه دوو بجو ته نژدې کېده په داسې حال کې چې دده د خبرو په اړه مو هېڅ دلچسپي او معلومات نه لرل، پرله پسې، لګیا وو، ایله یې راډو ګړی ته وکتل، ویې ویل: اوهو څومره وخت تېر شوی، موږ له ځایه پاڅېدو، ده ویل: اوس ورځئ، سبا مو خوشې کوم.

چې کوټې ته راغلو، صادق همدا پوښتنه کوله، څه یې ویل: موږ رښتیا خبره ورته وکړه، چې سبا مو خوشې کوي، ده په ډېر عجز او

مظلومیت وویل، زه به یو خط درته ولیکم، د خدای لپاره چې هېر مې نه کړئ، مور ډاډ ورکړ، بېغمه شه، ستا احوال به حتماً مور په خپله رسوو او داسې د خوشې کېدو په خوشالۍ کې مو سرونه ولګول د خوب په تلوسه مو سترګې پټې کړې، خو خبره به د نه منلو راته ښکاره شوه، کله به مو زړه ښه شو او کله به بېرته د مایوسۍ څپو په سر واخیستو.

سبا له لمر خت سره ټول کړکۍ ته ولاړ وو، زموږ موټر چې عبدل خپله دده خبره شاړه، چالان شو، د عبدل ورور مزار ته روان و باید تر هوایي ډګره یې رسولی وی، موټر له دروازې ووت، عیسی خان راغی، ویې ویل چورت مه وهئ، خوشې کوي مو، قوماندان راګرځي، له ورور سره یې ولاړ.

یوولس بجې وې، چې موټر بیا راغی، عبدل خپلې کوټې ته ننووت او باډیګارډان یې خپلې ته، تر دریو بجو هېڅ پته ونه لګېده، تر دریو بجو پینځه دقیقې تېرې وې، چې عبدل موټر ته وخوت او له دروازې ووت، زموږ په زړه د نهیلۍ لمبې بلې شوې او دا مو یقین شو، چې د عبدل بېګانی وعده ډرامه او یا هم څه توطیه وه.

احمد ضیا خو داسې بې تابه و، چې نه یې په ناستې طاقت کېده نه په ولاړه او نه هم په کړکۍ کې په درېدو - ساړه ساړه اسویلي وو چې له سینې یې یو په بل پسې ختل، یو وار به ودرېد، لکه د لېوني کړکۍ ته به یې منډه کړه، بیا به خملاست او بېرته به کېناست، ویل یې نور مې زړه چوي، دا ځل چې عبدل راشي په زوره زوره چیغې کوم.

څلور نیمې بجې وې، چې درې تنه راغلل او زموږ د کوټې دروازه یې بېرته کړه، عبدل چې زموږ له موټر سره وتلی و، لا نه دی راګرځېدلی.

په دوی کې یو تن هغه و، چې موږ یې پر لومړۍ ورځ له دې ځایه

هوایي ډگر ته وړي وو، دوه تنه نور مې له یاده وتلي، د همدې قرارگاه وه، که بهرني؟

موږ یې له کوټې وایستو، نه پوهېږم چا څه خبره وکړه، چې یوه تن ورته وویل، امر قوماندان صاحب اس، کله چې دروازې ته ورسېدو، هغه ملېشه چې له ما یې پیسې اخیستې وې، هلته ولاړ و، ما نه غوښتل ورته وگورم، خو دی راوراندې شو، ویل خدا حافظ، بخشش باشه.

## اسیر کابل ، آزاد یادونه:

د قرارگاه له دروازې راووتلو، خو نه پوهېدو پر کومه ولاړ شو، داسې معلومېده، لکه ماغزه او حواس راڅخه مرور شوي، یو ځل به مو یوه لار غوره کړه او بیا بله، ډار او وارخطایي اخیستي یوو، هسې نه د گلم جمو په بله ډله واوړو، ما خپل ملگري ټول له نظره تېر کړل، خو لکه د ازادۍ پر دې نېکمرغۍ شکمن وي، هغسې چې یو انسان خپلې ازادۍ ته خوشالېږي، نه معلومېدل.

د نندارتونو ودانۍ له یوې مخې نړېدلې، کابل ننداري سوځېدلې د ژوند پر مرۍ، د مرگ خپسې منگولې لگولې دي.

د جشن له سیمې د عیدگاه پر لور وخوځېدو، چمن ته چې ورسېدو، بېرته دوه زړي شو، چې پر کومه ولاړ شو، هېڅوک نه ښکارېدل، لارې واټونه تش دي، یو ځل مو د چمن د مینځ لار خوښه کړه، که گورو په چمن کې ټانکونه ولاړ دي، بېرته راوگرځېدو او مخامخ روان شو، د فرخي نړېدلې سینما له څنگه مو یو ټکسي وموند، د چهلستون مو ورته وویل، دوه زره افغانۍ یې غوښتې، په ۱۸۰۰ سره سلا شو، حرکت مو وکړ،

چلوونکي ته مو وویل: په داسې لار مو بوخه چې ګلم جم نه وي، څه یې ونه ویل، نېغ یې پر جاده روان کړو او په هماغه سر چوک تېر شو، چې موږ یې ترې نیولي وو، دوه ټانکونه او ګڼ ملېشه ولاړ وو، په جاده کې یواځې د دوی جیپونه ځغلېدل، د اپارتمانو له کړکیو د ښکار په تمه د شاوخوا په څار لګیا وو.

چهلستون ته غځېدلې لار له ګذرګاه وړاندې جګړو په کنډواله اړولې، د ژوند ډیوه په کې وار له مخه ګل وه.

لوړ مازیګر ټکسي د چهلستون بڼ په مخه کې کوز کړو، د باغ له دروازې په ننوتو مو شاوخوا وکتل، څوک پېژندګلوي مو ونه لید، مخ په وړاندې روان شو، په لار کې د پیر صاحب یو ملګري ستړي مشي وکړل، له سوځېدلي قصره چې تېر شو، که ګورو برنډه کې ضابط اکبر شاه له خو نورو ملګرو سره ناست دی، زموږ په لیدو له ځایه پورته شو او په چا یې زموږ د راتلو زېری وکړ، حاجي خلیل الرحمن او نور انډیوالان برنډې ته راووتل.

چې کوټې ته رسېدو، بیا ټول مخې ته راوتلي وو، ډېر زیات خوشاله وو، په کوټه کې کېناستو، حاجي خلیل چای راوغوښت او د خبرو سر مو راونیو، پوښتنه یې وکړه، موټر کتابونه یې هم در کړل، موږ ویل نه، ده ویل خیر دی چې تاسې خدای تعالی راخوشې کړئ.

حقیقت دا و چې سور ککي سړي زموږ خط راوړی و، هغه په میرانشاه کې د وسلو سوداګر و، چې له ګلم جمو یې وسلې پېرودلې، څکه خو یې له عبدل سره هم یارانه ټینګه وه، نوم یې نصرالدین او اصلاً د مزار و، نیمه کورنۍ یې ایران کې وه، کېدی شي د وسلې له تجارت پرته په نورو لینو کې یې هم لړ او ډېر اغېز او رول و.

هغه درې تنه چې له موږ سره بندیان او ځانونه یې مستري، دریور او کدوالۍ معرفي کول، زموږ احوال چهلستون ته رسولی و، چې که همدا نن مو غم ونه خوري، مزار ته وړل کیږو.

حاجي خلیل دفاع وزارت ته اخطار ورکړی و، چې نور چهلستون درپاتې دی هغوی صبر او زغم ته باله.

موږ ته حاجي خلیل او نورو ملګرو ډاډ راکاوه، چې په جهاد کې تکلیفونه راځي، د الله تعالی فضل دی، چې تاسې ژوندي راووتلئ، په موټر پسې دې بلا وي، تولو ویل چې تاسې شکر وباسئ چې عیبي کړي یې نه یاست، نور خو یې چې نیولي داسې یې وهلي چې سر او لاسونه یې پرې مات کړي، رانده کړي یې دي او د یوه تن خو یې یو لاس دوه ځایه مات کړی دی.

د خوستوالو په وینا غیوګینه پېزې یې ترې لندې کړې...

له چای وروسته مو د ازادۍ هوا چکر په زړه ووربده، باغ ته راووتو، داسې معلومېده لکه سړی خوب ویني، موږ په باغ کې یوه بله خوا ګرځېدو، خو ذهن او خیال مو اوس هم د ګلم جمو د محبس په هغه تنګه تروشه کوټه کې ایسار و، موږ د اوداسه په اوبو پسې شو، چې سینا په بیړه را روان دی، په خندا خندا کې وايې: د باغ له دروازې وړاندې د دوکانو تر مخ د سړک پر غاړه پر تبخي د یني کباب دی، ماخو غاښونه پرې تاوده کړل، ستاسې څه زړه دی، زموږ زړونه داسې سولېدل، لکه څوک یې سوان کوي، ځکه خو مو په هغه لوري مخه کړه، که ګورو دوړو او خاورو کې یو ځوان لګیا دی، د ینې توټې، پیاز او رومي بانجان یې په پلته یې اشتوب ایښي سره اروي را اروي یې، ما او پیر صاحب هم د دوو خوراکو وویل او هغه په یوه واره پلاستیکي قابکۍ کې

یو دوې ځمځی راواچول، د پاسه یې پرې د سرکې یوه کاشوغه تاو کړه او موږ ته یې ونیوه، موږ دده هغه د دوو خوراکو په حساب خواړه، په دوو درېو مړیو کې پوپنا کړل او دغه وړ مو د زړه سولېدل څه ناڅه په کرار شول.

پروگرام داسې شو، چې سبا به له قانوني سره گورو، زموږ جامې د خیریو او خولو له لاسه د کتلو نه وې سر او صورت مو هم داسې و، لکه بل پوست مو راباندې غوړولی وي، ځکه خو حاجي خلیل الرحمن راته خپلې جامې راکړې، موږ ځانونه ومینځل جامې مو بدلې کړې دا شپه مو ښه د خوند او ارام خوب وکړ.

از آن دیار مرا یـــــاد میدهد امروز
که مردمانش اسیرند و مملکت آزاد

(پژواک)

## له قانوني سره لیدل:

ډگروال سید نعیم شاه له وړاندې قانوني سره ارتباط نیولي و، چې ابوحنیفه مدرسه کې مو یو ځای درس وایه، پلار یې یوسف خان د مدرسې د لیلې سر معلم و، یوسف خان د ټولو و، په ده هم گرد زده کوونکي منلی وو، ټولو ته یې لکه د پلار حیثیت درلود، هماغسې مینه او تلوسه یې ښوده، قانوني ډگروال سید نعیم ته زما د ملگرتیا ویلي و، خو د څه اقدام زړه یې نه و کړی.

ډگروال سید نعیم له جنرال مجید سره هم لیدلي و، خو هغه ورته ویلي و، چې موږ ورسره اسناد نیولي، زموږ پر ضد یې کتابونه خپاره کړي او اخبار، مجلې یې مسلسل زموږ پر خلاف مضامین چاپ کړي،

ځکه دا کار تحقیق او وخت غواړي.

موږ پرېکړه وکړه، تر ټولو وړاندې له قانوني سره وګورو، پیر صاحب راته کړه، ډګروال صاحب دې یوازې ولاړ شي، ته ښار ته مه ځه.

خو ما له کتابو زړه نه شوی صبرولی. پیر صاحب ویل: په دې خلکو باور نه شته، ځکه خو یې له خپلې ملتیا غاړه کړه کړه، چې نور داسې خطر ته اوږه نه شي ورکولی.

زه او قانوني همصنفیان او سره ملګري وو، خو قانوني له ما یو ټولګی وړاندې شو... دا چې څرنګه یو راز دی چې افشا کېدن ملي ګټې زیانمنولی شي...؟

زه او ډګروال صاحب له چهلستون ووتلو، د ملي امنیت په مخه کې ډګروال صاحب له یوه سور رنګه سړي سره چې د تورن په نامه یې یاداوه، ستړي مشي کې، د قانوني پوښتنه وکړه، تورن ویل: نن نه دی راغلی، کورنۍ یې له پېښوره رارسېدلې، ممکن رانه شي. ډګروال ورته وویل: دا ننګیال دی، تورن ماته سر تر پښو ځیر ځیر وکتل، بیا یې وویل ښه دا ننګیال دی، لکه په زړه کې یې تېره شوې، دا خو چندان شی نه دی.

ډګروال صاحب د موټر او کتابو خبره ورسره وکړه، ده ویل زه ستاسې په کار پسې ګرځم، خو دا ډېر رذیل خلک دي، منطق نه ورسره ویل کېږي، هغه بله ورځ چې دواړه هوایي ډګر ته تللي وو، له ما سره وېره پیدا شوه هسې نه تا رانه تاو کړي.

موږ بېرته چلهستون ته ستانه شوو، د پیر صاحب سترګې د سر په کاسه کې له اندېښنې غار غار معلومېدې، زموږ په راتلو هومره خوشاله شو، لکه د ګلم جمو له محبس نه په خوشې کېدو...

# ضایع شوي کتابونه، اسناد او خپروني...

د کتاب شوق موږ ته په میراث پاتې دی، پلار مې له کابله د هرې میاشتې انیس، اصلاح ستپلر کلي ته راوړل، تر پېښور، لاهور او ایران یې کتابونه ځارل، چې له چا به یې د کوم کتاب ستاینه اورېدلې وه، له لټون او موندنې یې زړه نشوی راتولولی.

د مدرسې وختو کې له کوره را اخیستی جیب خرڅ په هماغو لومړیو کې د کتابو په رانیولو راڅخه لګېده، چې بیا به په میاشتو بې خرڅه سپېره پاتې وم.

د مهاجرت لومړیو کې یې موږ مجردانو ته د میاشتې ۳۰۰ معاش راوټاکی- سم نیمایي به مې په هماغه لومړی ورځ یونیورستي بک

ایجنسي کې منشي عبدالرشید ته پر میز کېښوې، په څو میاشتو کې مې د کوټې الماری ډکې شوې.

یو وخت چې پولیس په هوټلونو، سرایو کې په مجردو افغانانو پسې لګېدلې وو، دغسې یوه چاپه کې زما کوټې ته هم راننوتل، خو چې پر کتابو یې سترګې ولګېدې، باور وکړئ چې د پېښور هغه بدغوني پولیسان یې داسې اغېزمن او رام کړل، چې نه یوازې له شره یې خلاص شوم بلکې احترام ته مې هم رامات شول، د کتاب د دغه هیبت او کرامت له امله ما ټول ژوند او امکانات کتاب- ته وقف کړل.

استاد رفیع دغه شوق پر یوه نشه او خمار راواړاوه، او د کتابو، پاڼو او اسنادو په ټولولو معتاد شوم.

تاسې ته دې وویل شي، چې د مهاجرت څوارلسو کالو کې داسې کتاب، مجله، اخبار، پوسټر نه و، چې ما نه وو، راټول کړي، ان چې د تنظیمو د خپل منځي ناندریو په اړه مې د دوی شبنامې او تبلیغاتي پاڼې او پوسټرونه هم راغونډ کړي وو، پردې سربېره مې د پېښور، اسلام اباد او لاهور کباړخانو او د زړو کتابو سټالونوکی نایاب کتابونه موندلي وو، (تاج التواریخ) لومړنی چاپي نسخه مې د لاهور جمعه بازار له کتابپلورنځیو رانیولې، ما او هاشمي صاحب به د جمعې له سهار تر مازیګره د انارکلې بازار زړو کتابو کې اړوله.

استاد رفیع د کاغذي پیسو کلکسیون کې د سقوي دورې نوټ نه درلود، دا له ماسره و، له بده بخته چې ده ته مې ورنه کړ، دغه نوټ هم په دغه حادثه کې له لاسه ووت.

د تنظیمي مشرانو د خپل منځی ناستو، پرېکړو او دې ته ورته اسنادو لویه برخه د مجلو، اخبارونو ډېری کلیکسیونونه د مهمو

تصويرو البومونه، خطي نسخې، د جهادي مشرانو ليکونه، کسټونه له منځه ولاړل.

د اخوانيانو له خوا داودخان ته د جاسوسی په تور نيول شوي انجينر جان محمد د پلټنو او صحرايي محاکمې دوسيه چې د اوازو له مخې يې ديگ کې د پخولو پر سزا محکوم کړی و، په ۱۳۵۴ لمريز کې پاکستان ته د اخوانيانو له اوښتو وروسته د دوی د فعاليتو، غونډو، پرېکړو او پلانونو ريکارډ، د غونډو د تصاويرو راجستر، چې د استاد رباني په قلم ليکل شوی، داود خان ته د استاد رباني له ليکونه او بلا نور اسنادو سره...

د احمدشاه مسعود او حقاني صاحب د مخابروي اړيکو دوه کلن کليکسيون چې د حساسو پرمختياوو پر څرنگوالي (۲۱) کسټو کې راټول وو...

تنظيموته د I S I له خوا د وسلو د سهميي د لوړتيا او څوړتيا د معيارونو کچه... د دغو وسلو د وېش د بېلا بېلو فورمو يوه يوه بېلگه... نظامي کمېټې ته يې د سپارلو د ثبت کتاب او رسيدونه او د دغې لړۍ نور اسناد او مدارک...

هغه کتابچه چې د مشهورو څېرو شخصيتونو، ليکوالو، شاعرانو، سياستوالو، سندرغاړو... د دوی پخپل قلم او لاسليک خاطرې او يادونې مې په کې راټولې کړې وې... له مېرمن رخشانې راواخله تر استاد پژواک، شهيد عزيز الرحمن الفت ډاکتر طبيبي، ډاکتر يوسف خان، ډاکتر صمدحامد، جنرال ساپي استاد رفيع، کشاف، فايز، کشککي، استاد پسرلي، حمزه بابا، مولوی خالص، استاد رباني او...

دحاجي صاحب د ژوند او خاطرو په اړه زما د بېلا بېلو مرکو، ناستو،

مجلسونو کسټونه «ځينې مې په پټه ثبت کړي وو» چې پر مختلفو پرمختياوو او پېښو زما د سختو، حساسو او گستاخانه پوښتنو راټول وو... د کسټونو دغه کليکسونو په باور سره ارزښتناک تاريخي او لومړی لاس مواد برابرولی او گڼ نا ويلي رازونه، تاريخي واقعيتونه اوحقايق برسېره کولای شوای...

د مولوی خالص د چاپ او ناچاپ شعرونو ټولگه، د عبدالهادي هدايت د مقالو مجموعه او ...

ما پنځلس کاله د دغو اثارو، مدارکو په موندلو راغونډولو اړولي او د مهاجرت په بې کوريو کې خوندي کړی وو، په حقيقت کې دغه اثار او اسنادو زما د ژوند بيه او يواځينی پانگه وه، ځکه خو مې ترې زړه نشوی راټولولی.

## اختر د وير او غم په تيارو کې:

د اختر لمونځ د چهلستون بڼ کې وشو، يوه ملا په خپلو خبرو کې ويل: پخوا دلته چا کتلی نه شوی، له فسق او فساد پرته په کې بل څه نه کېدل، خو نن د الله تعالی فضل او کرم دی، چې مجاهدين په کې د اختر لمونځ کوي.

دغه ملا به څو رژيمونه، حکومتونه دغسې ستايلي غندلي وي... څو به نور ستايي غندي...؟ والله اعلم...

حاجي خليل د اختر په خاطر د مجاهدينو لپاره پسونه او غوايي رانيولي، هغه يې تقسيم او هر چا خپله کټوی بار کړه.

له لمانځه پرته داسې نه ښکارېده، چې د اختر د خوشالی کيفيت

ترې څرگند شي، د هېڅا په څېره کې د اختر کومه نښه نه معلومېده. پر موږ د اختر درې ورځې په سوچونو او اندېښنو کې تېرې شوې، داسې چې اختر هم راځخه هېر و...

حاجي خليل ويل: ما زياتره اخترونه په سنگرونو او مرکزو کې، تر بمباريو لاندې په سختو جگړو کې تېر کړي، خو بيا به هم خوشاله وم، ده ويل، زه په خپل ټول عمر کې دومره نه وم خواشينی، لکه دا څه موده...

## په بې قانونه دستگاه کې قانوني اکټونه:

محمد يونس قانوني د کابل ښار د امنيتي کمېسيون رئيس دی، ډېرې ادارو ته بېلا بېل امرونه او سپارښتنې ورکوي... له يادو او ښادو حکومتي څېرو گڼل کېږي، څکه خو له اختر وروسته د دولتي امنيت وزارت کې د ده ليدو ته ولاړو، له ښه بخته دا ځل مو ښاغلی قانوني لاندې کړای شو، که گورو د خو کسانو په منځ کې فاتحانه وزارت ته ننوت، زما په ليدو يې په موسکا ووېل، نصيب دشمنا، ستړي مشي يې وکړل، موږ يې خپلې کوټې ته بوتلو، غالباً دا به د جنرال يعقوبي دفتر و، په چوکيو کېناستو او دی له مراجعينو سره په خبرو بوخت شو، هره يوه ته يې يوه ورقه امضا کوله، چې ډېرې يې پر سر کاري هوټلانو کې د مېشتېدنې پاڼې وې، داسې ده په دغه وزارت کې د ډېرو وزارتونو او ادارو کارونه اجرا کول، کله چې زموږ وار راورسېد، بيا يې له سره پوښتنه وکړه، ويې ويل له تاسې سره خو د حزب اسلامي څه اسناد نه وو؟ ما ويل که له اسنادو مو مطلب له حزب سره د انسلاک او تعهد هغه وي،

نه او که مو کومه نشریه، کلکسیون وي، کېدی شي.

د قانوني خبرې او اکتونه د دپلوماسی هغه وختل له دې امله چې یو خو مې د مدرسې تولگیوال و او بل مو د هجرت په کلونو کې هم له نژدې لیدل، په ساده لهجه وویل: هیله ده، په تشه کاغذي کاروایی مو تېر نه باسې، ما خو دا گڼله چې تاسې به خپله قانوني اقدام وکړئ جنرال مجید ته به ورشئ کتابونه، موټر به را خلاص کړئ...

مدرسه کې د قانوني منلي کرکټر ما ته ډاډ راکاوه، چې خپل زړه پرې تش کړم، خو دا وخت زړو ته د زړونو خبرو لار نه شوی موندی زما خبرې د اقتدار د ادابو او پرنسیپ خلاف ښکارېدې، په لږ غوسه یې وویل! زه چې څومره امر صاحب ته احترام لرم، همدومره حقاني صاحب ته هم احترام لرم، زه چې دلته ناست یم، ستاسې او نورو خلکو د مشکلاتو په خاطر ناست یم، که نه څه مجبوریت نه لرم، زما چې له لاسه څه وشي، هغه کوم.

په دې کې یې پر کاغذ څو کرښې ولیکلې او ماته یې ونیو، په هغه کې یې جنرال مجید ته لیکلي و، د ننگیال د موټر او کتابونو د استرداد په هکله له خپل لطف او مهربانی کار واخلئ، ما چې دده خبرې واورېدې او کاغذ مې ولوست، پوه شوم چې اشنا بل موډ کې دی، څکه خو ما هم ځان کنټرول نه شوی کړی، ورته ومې ویل! تا زموږ د مشکلاتو د حل خبره وکړه، خو دا مشکلات پیدا کړي چا دي؟ دا مصیبتونه تاسې پر خلکو راوستي، اعتراف وکړئ، چې ستاسې له وسه پورته دي، زه دا نه وایم چې تاسې ائتلاف کړی او که هغوی درسره کړی، تاسې هغوی کابل کې تم کړي یا تاسې هغوی د کابل پر تخت کېنولي یاست، خو دا هرڅه چې دي مسوولیت یې ستاسې پر غاړه دی، دا مصیبتونه تاسې پیدا

کړي، تاسې خپله ويلي ملېشه د اسلامي پوځ برخه ده، اوس څنګه د خپل وس خبره کوي...

ډګروال صاحب چې وضعه وليده، مينځ کې راولوېد او په يو دوو خبرو يې دې ته زمينه مساعده کړه، چې يو له بله خدای پاماني واخلو.

زه له وزارته راووتم، ډګروال صاحب څه ځنډ وکړ، چې راغی ويې ويل: وروره حوصله کوه، مجبوريت دی، که نه ولا چې موږ له داسې خلکو سره خبرې نه کولې، ده ويل له ما سره هغه تورن وعده کړې، چې جنرال مجيد ته راسره ولاړ شي، هغه د څه عاجل کار لپاره د باندې ځي، خير دی، موږ به ورته انتظار وباسو.

دلته مو د بدخشان يو فرهنګي ځوان عبدالسلام چې د جهادي نشراتو د ټولولو په رابطه يې له ما سره تعلقات لرل او د مرحوم شارقي له مخلصينو و، مخې ته راغی، عبدالسلام د راديو تلوېزيون موټرو ته د تېلو لپاره ښاغلي قانوني ته راغلی و.

دی زموږ په کيسه نه و خبر، خدای شته له زړه خواشينی شو، ويې ويل قانوني چې کوم خط ليکلی په داسې خطو څه نه کېږي، ده وويل، جنرال مجيد مزار ته تللی، که نه ما به څه لاره ورته جوړه کړې وه... ما ده ته خپل ادرس د چهلستون د ټيليفون شمېره ورکړه، د فاضل او نورو پوښتنه مې وکړه، ويل هغوی کابل هوټل کې اوسېږي، د کابل هوټل شمېرې مې ترې واخيستې او خدای پاماني مو وکړه، تر دولسو بجو مو د تورن انتظار وکړ، خو درک يې معلوم نه شو، دا چې له قانوني څه نه جوړېږي، تورن هم په وعده ولاړ سړی نه و، ځکه خو مو نور انتظار بېځايه وګاڼه او بېرته چهلستون ته راوګرځېدو.

## په ارګ کې د واکمنۍ زېږه پانه:

سلا مو وکړه، له احمد شاه مسعود او مجددي سره هم وګورو، لس بجې ارګ ته ورسېدو د ارګ عمومي لویه دروازه تېرل شوې، له هغې کوز ختیز اړخ ته یې بله دروازه پرانیستې، چې ترمخ یې د خلکو ډېره ګڼه ګوڼه لیدل کېده، ساتونکي خورا بې نظمه پنډ وو، چې شور او زوږ یې سږي ته د زنانه حمام اصطلاح ور په یادوله.

څلورو پینځو کسانو چې هر یوه جلا پوزېشن درلود، یوه یوه مخابره غوږ ته نیولې، له دوی نه یوه کوم چینل ته زموږ د راتلو خبر ورکړ، ویې ویل دلته دوه نفره راغلي وايي، موږ د مولوي حقاني نماینده ګان یو.

له دې سره یې موږ ته د وړاندې تلو اجازه راکړه، لږ وړاندې بله پیره ولاړه وه، هغوی زموږ موټر وکوت او د دې لپاره چې حتما باید یو څه ووايي، خو لنډې پوښتنې وکړې، ساتونکو عجیبه دریشۍ اغوستې، د چا پر سر د وسپنې خولۍ، د چا پکول او چا به څه توټه له سره تاو کړې وه، دریشۍ تنګې لنډې او هسکې تېتې، چا د ډګروالۍ او چا د جنرالۍ نښې لګولې.

موږ مخ پر وړاندې حرکت وکړ، ما تر اوسه ارګ نه و لیدلی، دڅور کودتا سره یې خلکو ته د ارګ د نندارې اجازه ورکړې وه، ډېرو دوستانو ارګ په هماغه حالت کې لیدلی و، چې د وژل شویو وینې لا له ځمکې او فرش نه وې مینځل شوې، خو ما په هغه وخت کې هم ارګ ته لار پیدا نه شوی کړی.

د ارګ بنه سپېره او الوتې، ما د ارګ په رابطه بل تصور درلود، زموږ موټر ورو روان و، د سړک دواړو خواوو ته د خښتو ټوټې، وچ خس او خاشاک او د کاغذونو ټوټې، پلاستيکي کڅوړې پرتې وې، چې باد يوه بله خوا ځغلول په يوه برخه کې چې موټر بايد بېرته پر يوه ګرځندي د عمومي سترې دروازې لارې ته وګرځي، د ترافيکو يو افسر په نه زړه او بېزارو سترګو موټرو ته اشاره کوله، که څه هم هډور ځوان و، خو څېره يې داسې نه معلومېده، لکه په ارګ کې د يوه موظف افسر.

له ګلخانې سره نژدې له موټره کوز شو، د ګلخانې تر مخ تر لويه ونه لاندې پر سپېرو خاورو خلک پنډ وو، داسې معلومېده لکه پېښور کې د کوم تنظيم د دفتر مخه، يوې خواته لوکس فجارو او لنډوکروزر موټر درېدلي، د ترافيکو يو بل افسر داسې زموليدلی ولاړ دي، چې سړي به ورته کتل، زړه يې پرې درد کاوه.

سخت بيرو بار و، مراجعين دومره نه وو، خو ساتونکو غوبل جوړ کړی او ساتونکي هم بيا په يوه خوله نه، يوه به يوه خبره کوله، بل بله، له هر يوه سره مخابره ده، که په لومړۍ دروازه کې يې درته ويل حضرت صاحب له چا سره ملاقات نه کوي، دلته به يې ويل له خارجيانو سره ګوري، بل به ويل له غرمې وروسته يې پوښتنه وکړئ، بل به بيا له سکرتر سره د رابطې خبره کوله.

عمر اثير چې يو وخت يې د محاذ او بل وخت د جبهې موسمي اخبارونو د مهتمم په توګه لاهور کې څو واره له موږ سره ليدلي او پېژندګلوي وه، د حضرت صاحب د سکرتر په توګه کار کاوه، ډېر ښه قد او قواره يې ايستلې، رنګ يې په سپينوالي کې يو ډول غوړه سرخي پيدا کړې، زموږ له مخې څو واره تېر و بېر شو، سترګې به مو هم سره

ولګېدې، خو کتل يې داسې و، چې د پېژندګلوۍ کوم اثر نه شوی په کې لیدل کېدی.

نژدې یو ساعت مو له ډېرو سره په تېر تېر کې وهلو وروسته معلومه کړه، چې له حضرت صاحب سره لیدل که د بل چا لپاره نه وي، زموږ لپاره ناشونی دی.

د ډګروال صاحب خو اعصاب داسې خراب و، چې نژدې وه له ډېرو سره خبره سوک څپېړې ته ورسوي.

## دفاع وزارت کې د ګټې او بایلات حقیقت:

## د مسعود ملاقات:

موږ له ارګه ووتو او د عمومي لويې دروازې سره مخامخ ودانۍ ته چې له خلقيانو دمخه دفاع وزارت او وروسته لکه د مرکزي کمېټې دفتر و، اوس بېرته د دفاع وزارت مقر او د احمد شاه مسعود دفتر دی ور وګرځېدو.

د دفاع وزارت تر مخ د اسلم وطنجار ټانک چې د ثور انقلاب د برۍ سمبول ګڼل کېده، بې درکه دی، خو د ټانک لپاره ډېزاين شوی ستيج پر ځای دی، خو کودتا کې يې د وژل شويو کسانو د نومونو ډېرليک راغورځولی...

موږ دلته بیا په دروازه کې له ساتونکو سره څو دقيقې بحث وکړ، ترهغې چې د تلو اجازه يې راکړه، په دې شرط چې موټر د باندې لېرې ودرول شي، چا موږ ته کيسه کړې وه، چې يوه ورځ د ګلم جم ملېشې څو ټانکونه د يوه وزارت له مخې تېرېدل که ګورې د مجاهدينو څو

ښکلي موټر ولاړ دي، ټانکونه یې ودرول کیبلونه یې راخلاص کړل موټر یې پسې وتړل او د سترګو په رپ کې پناه شول.

نه پوهېږم د ډګروال صاحب په ربښتیا اعصاب خراب و او که اعصاب خرابی اکټ یې وکړ، خو ساتونکي یې داسې ووېرول، چې سملاسي یې د موټر اجازه ورکړه.

موږ د احمد شاه مسعود سکرتریت ته ننوتلو په مخه کې یوه چوکاټ ډوله اله ایښودل شوې، له دې په وتو د سکرتر په کوټه کې کېناستو، مسعود درې سکرتران او یو ضابط امر درلود، د یوه سکرتر نوم یې همایون د بل نجیب او د درېیم رانه هېر دي.

د همایون په نامه سکرتر یې ښه رویه کوله، که به چا کومه ترخه خبره ورته وکړه، په موسکا یې تېروله، ستوغه او تونده یې په خوله نه راتله، په خبرو کې یې د غوسې او اعصاب خرابی نښه نه لیدل کېده.

ښاغلي همایون موږ ته وویل امر صاحب له چا سره ملاقات لري، ورپسې ستاسې نوبت دی، پنجشیریان او نظار شورا متعهدین احمد شاه مسعود ته امر صاحب وایي او اوس چې د دفاع وزیر په چوکۍ ناست دی، دوی ورته هماغه د امر صاحب نوم اخلي.

د سکرتر پر مېز اته لس ټیلیفونونه ایښي، کله نا کله به دې کې متردد شو، چې زنګ د کوم ټیلیفون دی، ډېری به یې د هغه ټلیفون غوږۍ پورته کړه، چې زنګ یې نه و وهل شوی، د مسعود بل سکرتر نجیب ، برګه پړانګي دریشي له یوه برګ جمپر سره اغوستې د جانب مقابل پر وړاندې د یو ډول غوراوي چلند لري، که به چا عریضه او د خپل کار په رابطه ټینګار وکړ او د ده په خبرو به یې سر خلاص نه شو، نو ده به ورته سترګې او وروځې وګډولې، لاسونه به یې لکه د اجراګانو

وښورول پر ځانګړې اکټ او د تمسخر او غوسې په ګډه لهجه ستغ ځواب لکه دده عادت و...

کله به چې د وزیر د دفتر دروازه بېرته شوه، نو مخامخ به احمد شاه مسعود ښکاره شو، چې د مثلث په بڼه ایښودل شوي مېز شاته ناست دی، د مېز شاوخوا نورې چوکۍ هم پرتې وې.

احمد شاه مسعود په خپل هماغه زاړه اکټ خو نوي انداز د مېز تر شا داسې معلومېده، لکه د وجود په رګ رګ ځنګ ته د ناست سړي خبرې اوري.

له لږ ځنډ وروسته همایون موږ ته اجازه راکړه، زه او دګروال صاحب چې شعبې ته ننوتلو، مسعود هماغسې پکول پر سر کوږ ایښی و، برګ جمپر او شین چک پتلون یې اغوستی، د پتلون پایڅې یې په پولیسي موزو کې ننیستې، له موږ سره یې په غېږو تود روغبړ وکړ، دګروال صاحب ورته وویل، ننګیال د حقاني صاحب د فرهنګي دفتر مسول.

زموږ هېواد کې ځینې خبرې په غلطه مشهورې شي، یوه خبره چې خوله پر خوله ګرځېده دا وه چې حکمتیار له احمد شاه مسعود غوږ پرې کړې، ځکه پکول کوږ ږدي، چې پرې کړی غوږ پټ کړی شي...

مسعود ماته داسې په ځیر وکتل، لکه عجیبه ورته ښکاره شوی وم، داسې چې د خپلې توقع خلاف څه ویني، له ده سره زما لنډ ملاقات هغه مهال شوی و، چې حقاني صاحب ورته پېښور کې مېلمستیا کړې وه، ما په جهاد هینداره کې د ده له خولې دا ټکي را اخیستي و، چې د قوماندانانو شورا په جوړېدا، نظار شورا ته اړتیا نه شته، خو د ده تصویر د اخبار لاندې برخه کې راغلي و، حقاني صاحب راته وویل: میلمه دی دا عکس به دې لږ لوړ چاپ کړی و.

ما ورته خپل کیسه او په دې رابطه لیکلې پاڼه وړاندې کړه، دی لکه له وړاندې خبر وي، په یوه پاڼه څه ولیکل دا پاڼه یې له هماغه طلایي رنګه چاپي کتابچې بېله کړه، چې ښاغلي فاضل لاهور کې دفاع وزیر لپاره چاپ کړې وه، ده په خپل ضابط امر پسې څوک واستول، ماته یې په داسې لهجه چې ژور تاثر ترې معلومېده، وویل: زما چې ډېر بد راتلل، له بې نظمۍ او ګډوډۍ مې بد راتلل، خو دا دی اوس خپله ورسره مخامخ یم، خیر دی موږ او تاسې به لږ حوصله وکړو...

په دې وخت کې د ده ضابط امر راغی، مسعود لیک ورکړ، ویې ویل دا لیک جنرال مجید ته ورکړه، ننګیال هم درسره بوځه، هغه باید ماته ولیکي، چې موټر ورکوي، که نه چې، زما لپاره سند شي.

موږ د مسعود له دفتره راووتو، ډګروال صاحب ورسره پاتې شو، په دهلېز کې یو تور رنګه او بدشکله سړی ولاړ و، چوغې پړسېدلې سترګې یې وې له ضابط امر سره یې خبرې وکړې، ویل یې د ۵۳ فرقې پېشنهادونه یې د احکامو لپاره راوړي، ضابط امر ترې د جنرال مجید پوښتنه وکړه، ویل: مزار ته تللی او په ځای یې جنرال فاریابي کار کوي.

ضابط ماته وویل؛ زه بېرته امر صاحب ته ورځم، چې له دې جریان یې خبر کړم، ضابط ولاړ، خو زر بېرته راووت، دا ځل یې د جنرال فاریابي په نامه خط ورکړی و، زه په ضابط پسې روان یم، هغه مخ راواړاوه ویې ویل: ډوډۍ به وخورو، پخلنځي ته ولاړ، اشپز ته یې وویل، موږ ته ډوډۍ همدا اوس راکړه، اشپز وویل: له وزیر صاحب سره یې نه خورئ؟ ده ویل: موږ چېرته روان یو، دلته هم درې ځایه ډوډۍ پخېده، د وزیر او د هغه د سکرترانو لپاره جلا دېګ او جلا اشپزخانه وه، د لوړ رتبه افسرانو لپاره جلا دېګ او اشپزخانه او بله عمومي اشپزخانه چې

انظباطانو او عادي کارمندانو ته يې ډوډۍ تياروله.

څرنگه چې ډوډۍ خوړلو ته لا څه وخت پاتې و، ځکه خو يې موږ ته د لوړ رتبه افسرانو خوړنځي کې د ډوډۍ ترتيبات ونيول، د اشپزخانې له څنگه يوه اوږده کوټه ده، چې د ډوډۍ خوړلو يو ستر مېز او دواړو غاړو ته يې چوکۍ پرتې دي، په قابونو کې يې وريجې، غورمه او د وريجو په مينځ کې د غوښې يوه يوه بوټۍ ايښې، سلاد او کېلې هم ورسره وې، ضابط ماته ويل، موټر لرئ، ماويل زما په موټر پسې خو دا دی روان يوو، د ډگروال صاحب موټر کې کېناستو او په هماغه استقامت مو حرکت وکړ، چې موږ د جنرال عبدل مېلمستيا خوړلې وه.

د عبدل د قرارگاه سره نژدې کابل ننداري ته په غځېدلي سړک وگرځېدو، د برېښنا د يوه برج تر شا يوې ودانۍ سره له موټره کوز شو، دا يوازينۍ ودانۍ وه، چې څه نا څه جوړه وه، داسې معلومېده، لکه د مسعود سکرتر هم دلته له وېرې تخرگونه سوځېدل.

يو پنډ گلم جم پرې سختې پټکې وکړې، په دې وخت کې يو بل سړی راغی، هغه هم ورسره ترخې خبرې وغځولې، د دوی ترمينځ کومه خبره راغله، چې ضابط امر ورته په يوه دمه پينځه ځله قسمونه وخوړل، موږ ته يې د وړاندې تلو اجازه راکړه، خو د جنرال فاريابي د کوټې دروازه کې يې بيا ودرولو، يو مليشه له موږ مخکې ننوت، چې بېرته راووت ويل ورشئ.

جنرال فاريابي برگه عسکري دريشي اغوستې، که څه هم له سر او صورته مهذب معلومېده، خو د جنرال مجيد چلند زه داسې وېرولی وم، چې ده ته مې د لاس ورکولو زړه نه شوای کولی.

ضابط ورته د مسعود ليک ورکړ، ده ليک ولوست، ويل: سمه ده دا

موټر کتابونه او سامانونه له موږ سره شته، کتابونه سوځوو، نور به یې موټر ورتسلیم کړو، خو دا معامله له مجید خان سره ده، هغه مزار ته تللی، سبا بل سبا حتماً راځي، فکر مه کوئ.

د سوځولو په اورېدو، زما زړه ټینګه څړیکه وکړه، آخر کتاب سوځول کوم لامل لرلی شي...؟

## د منډیي د تالان ګواښ:

په دې وخت کې هغه سړی راغی چې وزارت ته یې د ۵۳ فرقې پېشنهادونه راوړي و، له جنرال فاریابي سره یې په ازبکي خبرې وکړې، چې موږ پرې ونه پوهېدو.

جنرال فاریابي د ټیلیفون غوږی پورته کړه، له خبرو پوه شو چې له لوی درستیز آصف دلاور سره خبرې کوي، ویل: مسعود ته مو پېشنهاد کړی، چې زموږ د افرادو لپاره د اعاشې او نورو مصارفو منظوري ورکړي، خو هغه ویلي تاسې د خپلو افرادو تعداد او قرارګاوې واضح کړئ، ده زیاته کړه، موږ مجبور یو چې همدا اوس خپلو قواوو ته امر ورکړو، چې له منډیي نه مواد راوړي، موږ د آصف دلاور خبرې نه اورېدې، خو جنرال فاریابي وویل: نه پیسې مو له کومه کړې، په زور به یې له منډیي راوړي.

کله یې چې د ټیلیفون غوږی کېښوده، دمسعود لیک یې بېرته ضابط امر ته ورکړ، خو هغه لیک قات او د مېز پر سر کېښود، چې راووتو ضابط امر ویل: ډېر سپي او رذیل خلک دي، موږ یې بدنام کړو... بېرته دفاع وزارت ته راغلو، معلومه شوه، احمد شاه مسعود

ډوډۍ خوري، ضابط امر ورغی، زه په دهلېز کې ودرېدم، له لږ ځنډ وروسته احمد شاه مسعود راووت، په ما یې غږ کړ، ډوډۍ مو خوړلې؛ ما وویل، هو! ده زیاته کړه ډوډۍ تیاره په مېز ایښې که اشتها مو وي مهرباني وکړئ، ما وویل مننه.

## په ناقانونه موقف کې:

ډگروال صاحب د فرملي په نامه د جمعیت له یوه قوماندان سره د باندې وتلی، زه د مسعود د سکرتر په اطاق کې د هغوی په انتظار کېناستم، که گورم استاد موسی توانا چې د جمعیت لپاره د پښت حیثیت لري، له څو کسانو سره راغی، زموږ د ځای یو ضابط طاهرخان په کوټه کې د جمعیت نماینده، قوماندان انور خان جگدلک او قانوني هم راغلل.

قانوني قوماندان انور خان ته په مخ اړولو، ویل: دا ننگیال دی، د حقاني صاحب فرهنگي آمر، دی هم زموږ انډیوالانو نیولی، او لس پنځلس ورځې یې بنه مېلمستیا ورکړې، موټر، کتابونه یې ترې نیولي دي، انور خان د حال احوال پوښتنه وکړه، ویې ویل: په هغه قرارگاه کې زموږ څو تنه مجاهدین او یو قوماندان هم بندیان وو.

بیا قانوني، توانا ته مخ واړاوه، ویل: ننگیال صاحب زیات اثار لیکلي، په تېره وینه په قلم کې ډېر عالي اثر دی.

توانا صاحب وویل: هغه کتاب چې د شاعرانو او لیکوالانو سوانح یې په کې راوړي، قانوني وویل: هو.

توانا پوښتنه وکړه: بل توک دې نه دی بشپړ کړی؟ ما ویل کار مې پرې شروع کړی و، خو د ځینو مشکلاتو له مخې مې یې تکمیل ته

فرصت نه دی موندلی.

بیا قوماندان انور خان، قانوني او هلته ناستو نورو کسانو زموږ د مجلو او اخبار ستاینې ته راوگرځېدل، دا چې ډېر د لوړې سويې نشرات دي، ډېر ښه مطالب خپروي په عالي صحافت چاپېږي تحليلي او تحقيقي اړخ يې له نورو دروند دی. داسې نورې ستاینې یې کتار کړې، ما ورته وويل: د هغې بدل دا دی په ازاد او ستاسې اسلامي افغانستان کې گورم، ټولو د افسوس په څرگندولو ويل: دا شیان نو راځي، یوه تن په کې لا دا هم وويل: دا دې نه دي اورېدلي، انقلاب خپل بچيان خوري...

په دې وخت کې ډگروال صاحب راورسېد، له دوی سره مو مخه ښه وکړه او له وزارت راووتو، اوس موږ ته دا پته لگېدلې وه، چې د کابل هره حکومتي ودانۍ يو زندان دی، يوازې د گلم جم ملېشو دومره زندانونه دي، چې په هره قرارگاه او پوسته کې تر لسو شلو د خدای تعالی مخلوق له لوټ وروسته، په شپو شپو اوونيو اوونيو بنديان ساتي، کانتينرونو کې یې غورځولي دگرځنده زندانو لړۍ يې غځولې، وزارت دفاع، امنيت دولتي او نورو ارگانو او لويو وړو قوماندانانو زندانو، کابل د زندانو پر يوه اوږده زنځير اړولی...

د څرخي پله زندان تش تور معلومېده، خو د کابل ښار په هر واټ هره کوڅه کې زندانو کومي شلولي...

يو راخلاص شوی بندي به دې چې ولید، ويل به یې بالاحصار کې وم، بل به ويل بيمارو کې وم، بل به پل محمود خان يادا وه، بل به ويل په جاده کې وم او بل به نور ځايونه ښودل، له دغه هر بندي سره به یې له كميس پرتوگ او بوټونو پرته نور هېڅ نه وو پرې ايښي، د ډېرو به چې خپلې او بوټونه نوي وو، هغه به يې هم ترې اخيستې و.


I'LL SEEK PEOPLE'S
MANDATE ON MY TENURE
ZAHOOR.

# له خانقا تر شاهي ارګه

## دوه بېل واقعیتونه؛ یو تریخ حقیقت:

## د حضرت صاحب سر مات و:

له ښاغلي مجددي سره ملاقات لرو، سهار ۹ بجې مو له چهلستون د ارګ په لور حرکت وکړ، داسې معلومېده، لکه زموږ ملاقات د یوه رسمي هیئت بڼه لري، د حاجي خلیل الرحمن په مشرۍ د موټرو په یوه وړه قافله کې ارګ ته ننوتلو، ساتونکو د موټرو کتار په لیدو، له پوښتنې پرته لار خوشې کوله، د ګل خانې دروازه کې د مجددي باډیګارډ د جنرالۍ په یونیفورم کې ولاړ دی، د حاجي خلیل یې تود هرکلی وکړ او موږ یې د انتظار سالون ته رهنمایي کړو، هلته څو کسه نور هم ناست وو، موږ کابو یو ساعت انتظار وکړ، خو د مجددي صاحب درک معلوم نه شو، د تشریفاتو له مسوولینو سره مو رابطه ونیوه، هغوی خپلې مخابرې چالانې او موږ ته اطمینان راکړ.

لږ وروسته د حضرت صاحب ورور حشمت الله مجددي سالون ته راغی، ښاغلي حشمت الله هڅه کوله، د حاجي خلیل پر وړاندې د خپلې مینې او صمیمیت څرګندونه وکړي، څکه خو یې هغه ته په مینه ناکه لهجه خلیل جان خطاب کاوه، له تودې پوښتنې وروسته یې د حضرت صاحب معذرت وړاندې کړ، په دې ټکو چې، حضرت صاحب ډېره هیله لرله له تاسو سره ملاقات وکړي، ستاسې په راتلو ډېر

خوشحاله شو، خو متاسفانه تشناب کې د غسل پر وخت له ښویېدو سره ستوني ستغ لوېدلی او سر یې مات شوی دی، اوس ډاکټر ورته سیروم چالان کړی، زه یې راولېږلم، چې تاسې سره خبرې وکړم او دده معذرت درته وړاندې کړم.

موږ هم ژر ژر تودې پوښتنې وکړې، چې ډېر خو به ژوبل شوی نه وي، داسې او هغسې...

ښاغلي حشمت خپلو خبرو ته دوام ورکړ: گیله له خپلو کېږي، موږ له حقاني صاحب نه خپه یو، ده په هر مجلس کې زموږ خلاف موقف نیولی.

حاجي خلیل لږ جدي شو، ویل: داسې کارونه چې د جهاد له روحیې او اهدافو سره مخالف وي، طبیعي ده چې باید مخالفت یې وشي، د دوستم ترفیع کېدی شي حضرت صاحب خپل واک وبولي، خو هغه ته د اسلام د قهرمان لقب ورکول د حضرت صاحب واک او اختیار نه شي کېدی، مجاهدینو د همدغو ملېشو له لاسه په زرگونو شهیدان ورکړي، د هغوی ورته موږ له گرېوانه نیسي.

حشمت الله وویل: دا د جناب حضرت صاحب بصیرت او درایت و، چې په داسې یوه عمل یې د افغانستان د تجزیې مخه ونیوله، که داسې یې نه وای کړی، قسم په خدای افغانستان تجزیه و.

بله دا چې د سمت شمال په سلگونو علماوو حضرت صاحب ته ویلي، چې دوستم د دوی په فتوی له رژیم سره د همداسې یوه پروگرام لپاره یوځای شوی و. مولوي منصور او مولوي ارسلا هم په هغه مجلس کې حاضر وو، د دوی په فتوی حضرت صاحب دا کار کړی.

ده وویل، دا خو حقیقت دی چې که دوستم د نجیب کمونیستي

رژیم نه وای نسکور کړی، په خدای که د مجاهدینو له وسه دا کار پوره وای.

ما ورته وویل: هېڅوک افغانستان نه شي تجزیه کولای، تجزیه د هېچا په گټه نه ده.

بله دا که دوستم غوښتي وی، افغانستان تجزیه کړي، نو بیا په یوه کاغذي ترفېع او لقب نه ورڅخه تېرېده، یو وخت زه د جمعیت مرکزي ارگان ((مجاهد)) مسوول مدیر وم، دا هغه وخت و چې نوې د دوستم ملېشه تشکیل شوې او مطبوعاتو کې د جوزجاني ملېشې په نامه یادېده، موږ هم دمنابعو په حواله یو خبرکې د جوزجاني ملېشي نوم اخیستی و، همدغو ملایانو او د جمیعت واکمنو ویل دا ملېشې د جوزجان او سمت شمال نه دي، بلکې د روسي جمهوریتونو هغه ازبک نژاده روسان دي، چې د افغانانو لباس کې یې رالېږلي دي، دا ټکی استاد رباني خپله بیانیه کې هم څرگند کړ، بیا یې پرې څه مقالې هم ولیکلې. حشمت وویل: د افغانستان خلک باید پر حضرت صاحب شکر وباسي، دا حضرت صاحب دی، چې له برکته یې آرامي راغلې، که خدای مه کړه حضرت صاحب نه وي، بیا به تاسې ته معلومه شي، ده په پای کې وویل: حقاني صاحب ته موږ دومره احترام لرو، لکه زموږ د خپلې کورنۍ یو محترم غړی دی، موږ سره پخوانۍ اړیکې لرو، موږ په دې هم گیله من یو، چې حقاني صاحب نه راځي، تاسې هم نه راځئ، خو زه وایم که تاسې نه راځئ په ما پسې تیلیفون وکړئ، ما دروغوارئ، په والله چې په توره شپه کې ځان در ورسوم.

موږ متقابلاً ډاډ ورکړ، چې ستاسې ترڅنگ ولاړ او هر خدمت ته حاضر یو، کله هم چې د جناب حضرت صاحب امر وي، د حقاني

صاحب قوتونه يې په خدمت کې دي.

حاجي خليل يادونه وکړه: جناب حضرت صاحب بايد په مجاهدينو متکي وي، مجاهدين د ده له قوماندې او هدايت سر نه غړوي، دی بايد په دوستم او نورو جنايتکارانو د اتکا په لټه کې نه شي، چې مجاهدين يې په کار رانه شي، دوستم ده ته وفادار نه شي پاتې کېدی.

په پای کې مو ورته د موټرو د نيولو خبره وکړه، ده وويل: د گلم جم په نامه اکثر زموږ خپل قوماندانان دي. حاجي خواني چې ۲۵ ورځې يې بالاحصار کې د گلم جم ملېشې بند کې تېرې کړې، موټر او هر څه يې لوټ شوي وو، ورته ويل: صايب تاسې چې د اختر پر ورځ هلته راغلي وئ، ما د دروازې له چاکه درکتل، ده وويل هو! کنه هغوی زموږ خپل قوماندانان دي او بيا يې په دې رابطه يو خط وليکه، څه باندې يوه بجه وه، چې له اسلامي جمهوري ارگه راووتلو.

تشناب کې د حضرت صاحب له ښوېدو او سرماتي په زړه پورې خبرې جوړېدای شي... راشه کيسه ډنډوره کړه خو زړه مې زور نه اخلي...

## د ارگ يو بل انتظار:

## د جنرال مجيد راتگ:

بيا ارگ ته روان يو، مامور هاشم هم راسره ملگری دی، مامور با جرئته سړی دی، ډېر وخت يې گرديز کې اداري چارې پر مخ بيولې، جدي دی او د بحث پر وخت ښه استدلال کوي، ده د مجددي صاحب يو کارت هم درلود، چې ساتونکو ته يې ليکلي: مامور صاحب هاشم د

ستر مجاهد مولوي حقاني نماينده دی، هر وخت چې غواړي د ملاقات لپاره راتلی شي، ده دغه کارت د ګيدړې قواله باله، که څه هم ددغې اصطلاح په پس منظر يې موږ پوه نه کړو، خو کله به چې محافظينو له موږ پوښتنه وکړه، ده به کارت ور وښود، هغوی به اجازه راکړه، ده به په موسکا وويل، ودې ليده د ګيدړې قواله.

کله به ده ځان غلی نيولی و، ساتونکو به موږ ته پلمې کولې، ده به جېب ته لاس کړ: ته ودرېږه، چې د ګيدړې قواله وروښيم، کله به موږ ورته وويل، مامور صاحب د ګيدړې قواله ور وښييه.




کارتون له فرنتیر پوست نه

دغه ورځ مو بیا هم د گل خانې ماڼۍ کې د مجددي د ملاقات په هیله د انتظار ترخې شیبې تېرولې، چې جنرال مجید د باډیگارډانو په یوه بې سر او پایه هجوم کې پر پوړیو راوخوت، د حضرت صاحب له زوی ډاکټر نجیب الله سره په خبرو شو، داسې معلومېده، خبرې په زړه پورې دي، دواړو به ښه په کړس وخندل، یوه بل ته به یې په لاس ورکولو پر اوږو وټپول...

جنرال مجید چې په فاتحانه بلکې احمقانه غرور په پوړیو راختلی و، په بې اعتنایۍ د مجددي صاحب زوی له مټ نیولی، هغه په دوو پښو لکه عسکر ولاړ دی، زه په باور سره ویلی شم، چې جنرال مجید به په داسې غرور او کش فش د نجیب الله په وخت کې د ارگ له مخ هم نه وای تېر شوی، د هغه اعتبار، نفوذ او حیثیت دومره لوړ شوی و، چې جمهوري ارگ داسې ورته ښکارېده، لکه د خپلو افرادو پوسته.

موږ ورنژدې شو، چې جنرال مجید په همدې ځای کې ونیسو او د موټر او کتابو مسئله ورسره یکطرفه کړو، جنرال مجید، نجیب الله مجددي ته وویل، تو کار مره کو، مه کار توره میکنم، تو مرا ملا بگو مه تورا حاجي... موږ پوه نه شو چې د دوی څه ډول کار و، چې یو بل ته یې د خلاصولو خبره کوله، جنرال مجید ته مو سترې مشي ورکړل، ماته یې ویل: ادم سیاسي استي، ډگروال صاحب ورته د موټر وویل، ده ځواب ورکړ، خیر دی د حقاني صاحب دا یو موټر چې له ما سره وي، څه کېږي، تاسې ډېر په کې گرځېدلي یاست، پرېږده څه وخت موږ هم په کې چکر ووهو، ډگروال صاحب ورته وویل: حقاني صاحب چې راشي، تاسې ته به یو ښه موټر ورځخه واخلو، ده ویل، زه له ښه موټره تېر یم، په همدې قانع یم، ما ورته ویل: جنرال صاحب تاسې خو زما پر

مرۍ پښنه ږدئ، ده ته مو د حشمت مجددي مکتوب وښوده، پرې وې لیکل، محترم جنرال فاریابي در مورد استرداد موتر اقدام نمایید.

جنرال مجید ویل: کمره دې له ما سره لاندې په موټر کې ده، هغه خو نه درکوم، کتابونه دې ضبط دي، هغه ته په خپل لاس اور واچوه.

ما داسې ګڼله لکه راته وايي خپل ځان ته اور واچوه، په ژوندوني پر ځان اور بل کړه، په زړه کې مې تېره شوه، که کتابونه يې رانه کړل، دفاع وزارت تر مخ پر ځان اور پورې کړه... لا له را قسم دادم، که رادو را نسوزان، له کتابو وړاندې ځان لوخړه کړ...

سبا د جنرال فاریابي قرار ګاه ته ورغلو، خو دا ځل يې يوازې ډګروال صاحب پرېښود، زه دروازې سره سیوري ته کېناستم، د خلکو ګڼه ګوڼه ده، عریضې په لاس ولاړ دي، د چا زوی تښتولی، د چا نور خپلوان بندیان دي، د چا يې موټر نیولی، د چا هتۍ لوټ دي، د ځینو هغسې خبرې په خوله دي، چې زه يې لیکلو ته توري ټکي نه شم موندلای.

دلته مې د عبدل د قرار ګاه ځو ملېشه ولیدل، ووېرېدم، مخامخ د ونو په مینځ کې مې ځان ورک کړ، خو يو ملېشه راپسې راورسېده، راته کړه يې که بل ځل مې ولیدې ددغه کلاشینکوف دېرش مرمۍ به دې سینه کې سرې کړم، د مسعود پلار دې نشي خلاصولی... درته وایم والوځه- بیا دې ونه وینم... سړک ته په راوتو چا زما نوم واخیست، زړه مې درز شو وښوېده، ما ویل څه خبره ده، ویل دننه راشه، د جنرال فاریابي دفتر ته ورغلم، څو کسه نور هم ناست وو، ډګروال صاحب ته يې د چای پیاله پر مېز ایښې.

که ګورم هغه د ملېشې ډګروال هم راغی، چې د عبدل په قرار ګاه کې بندي و، ده عسکري دريشي اغوستې، اوږې يې له نښانونو ډکې دي،

جنرال فاریابي ته یې څه کاغذونه ورکړل او په ما کې یې سترگې ښخې کړې، ما مخ بله خوا واړاوه.

جنرال فاریابي له موږ سره یو منصبدار چې برگه عسکري دریشي یې اغوستې او صالح نومېده موظف کړ، چې د ملېشې په ټولو پوستو او قرارگاوو مو وگرځوي، یو ځل چې د موټر درک ولگوو، بیا یې اخیستل دومره سخت نه دي، که داسې ونه کړو هېڅوک هم په دې نه قانع کېږي، چې موټر ورسره دی، موږ لا له دروازې نه وو راوتلي چې د حاجي خواني پک اپ راغی، عسکري رنگ یې ورکړی، خو لاندې یې سور رنگ جوت و، موږ ورته ویل، یو موټر خو همدا دی، هغه په کاغذ یو نوم ولیکه، چې زما له یاده وتلی، بیا له موږ سره په موټر کې روان شو، یوه بله خوا یې وگرځولو، خو دا هسې زموږ د تېر ایستو ډرامه وه، چې له یوه یې بل ته پاس کولو، د وخت اړولو لوبه یې راسره را اخیستې وه...

صالح ماته په ځیر ځیر کتل، راته وایي: ما چېرې لیدلی یې، ما ورته ویل ستا څېره هم راته اشنا ښکاري، زه بیا وډار شوم، هسې نه د بل چا په گومان د هغه په حساب راسره چلند وکړي، خو ده ویل ممکن په تجارت خانو کې مې لیدلی وې، ما یو وخت له تجارانو سره کار کاوه، ما یوازې دومره ویل ممکن.

دی مو بېرته خپلې قرارگاه ته ورساوه، ماته یې د ټیلیفون شمېره راکړه چې ورسره په تماس کې وم، موږ هم د موټر د رنگونو، نومرو او مشخصاتو په اړه لیکلی یادښت ورکړ.


WE CONDEMN FOREIGN HANDS'
MEDDLING IN AFGHANISTAN
BANOOR.

# بیا هم د آمر صاحب ملاقات

له احمد شاه مسعود مو د ملاقات وخت اخیستی ، د وزیر اکبر خان مېنې یوه کور کې دده لیدو ته روان شو، د کور مخې ته لسگونه گلم جم پنډ دي، مانی ته په ننوتو، پوه شو جنرال مجید، جنرال فاریابي او د ملېشې افسران له مسعود سره ملاقات لري، موږ په دویم پوړ کې د انتظار خونې ته بیول شو، خو هلته خالي چوکۍ نه وې، څو تنه کندهاري مجاهدین هم د ملاقات منتظر وو، موږ لاندې په غالۍ کېناستو، کندهاري مېلمنو ته چای ایښی، پر مېز کلچې، شیر پېرې، تازه مېوه او نور شیان پراته دي، دا څل له موږ سره د منه گل په نامه یو څدران مجاهد هم ملگری دی، مازیگر لمونځونه مو په هماغه ځای کې وکړل، وروسته منه گل خپله له مېز چای کلچې راواخیستل، ویل: شرم مې کوت بیخ مې خوت...

محمود فاراني هم په یوه کونج کې ناست دی، ستړي مشي مو وکړل، ویل څه درباندې شوي، ښځي پېژندل کېږي نه، لکه کارونو له پښو غورځولی یې، ما څه ونه ویل، خو ده بیا پوښتنه وکړه، څنگه دي نشرات، دفتر مو رانقل کړی که نه، ما ځواب ورکړ، نشرات مو دوام لري، خو په هغه پخواني سرعت نه.

دفتر مو لا پېښور کې دی، موږ غوښتل کابل ته یې راولېږدوو، خو حالات سم نه دي، ده زما د اوسېدو پوښتنه وکړه، د چهلستون مې ورته ویل، فاراني صاحب وویل هغه بله ورځ مطبعې ته تللی وم، ستا پوښتنه

یې کوله، ښه شوې اوس دې درک ورکوم، د اخبارونو وضعه خرابه ده، ما ورته ویل فاراني صاحب! د مملکت او نظام وضعه چې خرابه وي، د مطبوعاتو به څنګه سمه شي؟ داسې معلومېده فاراني صاحب زما د شکایت او انتقاد خبرې دلته ښې نه ګڼي، خبره یې په بله واړوله، پوښتنه یې وکړه؟ په څه شي کار کوې، ما ورته ویل هماغه د اخبار او مجلې کارونه، ده وخندل ویې ویل، له کومه وخته چې له حقاني صاحب سره کار کوې، فنا فی الاخبار او مجله درڅخه جوړ شوي.

فاراني د پښتو دري غوره لیکوال او پیاوړی شاعر دی، دري شعرونه لیکنې یې درنې، پخې او استادانه دي، مصر کې یې لوړې زده کړې کړي، غالباً د استاد رباني ټولګیوال دی، ۱۳۵۹ لمریز کې استاد ورسره فرهنګي کمېټې ته راووست، زړه یې و په جمعیت کې دننده واخلي، خو د فاراني پر زړه نه اوارېده.

ډېری اسلام آباد کې اوسېده، د قلب آسیا په نامه یې یو اخبار خپراوه، کله به دې مډرنو لوکسو ګاډو کې لیده، کله به خړ پړ یوه بس کې ورسره مخامخ شوې سړی نه پوهېده څه کوي، بوختیا یې څرګنده نه وه...

د ثور له کودتا وروسته زنداني کړی شو، خو د څرخي پله له دوزخي زندان وتښتېد.

دده په نیولو تره کي وویل: یو مجرم مو نیولی حیران یو، له مخه یې حلال کړو که له څټه...

له دغه ملاقات څو ورځې وروسته کابل کې اوازې خپرې شوې، چې استاد فاراني د کودتا پلان درلود، خو څرنګه کودتا، له کومې لارې، د کوم پوځ او پوځي څواک په تکیه؟

هرڅه چې و، له دې وروسته استاد فاراني له مسعود لېرې شو او له مقربینو د معتوبینو لست ته وغورځول شو.

وایي د احمدشاه مسعود نه دوستي ښه ده نه دښمني، د آس له شا مه تېرېږه د زورورو ترمنځ... له استاد فارابي علاوه گلاب الدین شیرزایی هغه پانگوال و، چې د مسعود یاراني شنه لوخړه کړ... شیرزایي، امر صاحب ته دومره نژدې شو، چې لومړنی بانک یې پرانیست... خو ډېر ژر یې تر منځ د تورې پیشو په تېرېدو داسې دښمني جوړه شوه چې شیرزایي دیوالیه او ماشوم یې ټوپکیانو وتښتاوه... ښکر به گټې سر به بایلې خبره شوه...

قضا مازیگر و، چې مسعود برندې ته راووت، له ده مخکې جنرال مجید او جنرال فاریابي راوتلي وو، د جمعیت له یوه قوماندان ملا عزت سره یې خبرې کولې، لمر په لوېدو و، مسعود برنډه کې په لمانځه ودرېد، جنرال مجید او جنرال فاریابي بې اعتنا ولاړ وو، موږ بیا جنرال مجید ته خپله خبره وکړه، هغه جنرال فاریابي ته مخ ور واړاوه، ویل: د دوی موټر عبدل نیولی، هغه ور تسلیم کړئ، فاریابي ښه وویل او د سبا وعده یې وکړه، د ماښام له لمانځه وروسته ډاکټر عبدالله له موږ سره کېناست، چې له احمد شاه مسعود سره یې د خپلو خبرو په جریان او تفصیل خبر کړو، ډگروال صاحب زه ورمعرفي کړم، هغه ماته وکتل، په شونډو کې موسک شو، ویې ویل، ښه دا ننگیال دی.

ما په ده ښه زړه تش کړ او د حاجي خلیل الرحمن هغه لیک مو ور وسپاره، چې باید چهلستون دوی ته، د حزب مورچې حزب او د دوی، دوی ته وسپاري، چې د سولې پروسه نوره تخریب شوې ده، ډاکټر عبدالله زموږ خبرې په غور او زغم واورېدې کوښښ یې کاوه، موږ قانع

او ددغه د تصميم مخه ونيسي، ده وويل: په رښتيا هم تاسې له ډېرې حوصلې کار اخيستی له ډېرو مشکلاتو سره مخامخ شوي ياست او ډېر تاوانونه مو ليدلي دي، تاسې لږ حوصله نوره هم وکړئ، ان شاء الله حالات به ښه شي، ستاسې چې څومره موټر نيول شوي، موږ يو هيئت ټاکلی، هغه ته به خپل اسناد او کاغذونه وسپارئ، هغوی به پسې وگرځي او ستاسې موټر به پيدا کړي.

منه گل په پښتو لگيا شو، داسې منطقي خبرې يې وکړې، چې د ډاکټر عبدالله خوله وازه پاتې شوه.

له دې وروسته له مسعود سره د ليدو لپاره د ودانۍ لاندني پوړ يوې کوټې ته ورغلو، دا کوټه د طعام خورۍ د کوټې له څنگه وه، مسعود له ستړي مشي وروسته خبرو ته خوله جوړوله چې ډاکټر عبدالله ورته زموږ د خبرو لنډيز بيان کړ، مسعود دا ځل بل پوستکی په ځان راخپور کړی و، ويل زموږ نن څلور پينځه کسه وژل شوي او تاسې د موټر او کتابو په غم کې ياست.

ما ورته وويل: ستاسې کسان چې وژل شوي، پادشاهي مو نيولې ائتلاف مو کړی دغه بلا ستاسې له لاسه مينځته راغلې، زموږ په کې څه دي...؟

په دې وخت کې د ملکي هوانوردۍ وزير ډاکټر عبدالرحمن له جيب خط راويوست ويل: زما خپل موټر يې هم نيولی، ليك يې خلاص کړ، د جنرال مجيد له خوا چاته ليکل شوی و، چې موټر وروسپاري.

دلته مسعود، لکه له خوبه پاڅېدلی وي ويل: موږ هيئت ټاکلی، خو کوم موټر چې ملېشې خرڅ کړی، يا يې مزار ته وړی، هغه خو له لاسه وتلی او امکان نه لري، چې تر لاسه شي، هغه چې مزار ته يې بېولی او يا

يې خرڅ کړی، له هغې تاسې تېر شئ او په نورو پسې به وگرځو، ما ورته د جنرال مجيد امرونه وښودل، ده په غور ولوستل، ويې ويل: ته خو سند لرې، ستا په موټر خو نه شي منکرېدی، که يې خرڅ او يا مزار ته بېولی هم وي، بايد تاوان درکړي، مسعود وويل: له دې وروسته به دا ډول مسايل نه پېښېږي، دده په وينا خپله دوستم ښه سړی دی، له دې کارونو بد وړي، دوی ته يې توصيه کړې، چې نور دا ډول کارونه ونه کړي، مخامخ په مېزونو باندې ډوډۍ کېښودل شوه، مسعود د ډوډۍ وويل، ټول د مېز خواته وخوځېدو، ما او مامور هاشم غوښتل لاسونه ومينځو، خو د لاس مينځلو مخه مو ونه ليده، په اشپزخانه کې مو گوتې لمدې کړې، مسعود مخامخ او موږ د مېز يوې او بلې خواته کېناستو، پر مېز يې پلو، چرگان، د پسه قورمه، مستې، سلاد او تازه مېوې ايښې وې، د مشروباتو پر ډبو په عربي بيبسي ليکل شوې، مامور هاشم ماته د تازه مېوې لوښی مخې ته کړ، ويې ويل: ماته بي بي سي ونه رسېده، خپلو ځانو ته يې کشکول، د مېلمه په کيسه کې نه دي....

حاجي صاحب د زړه غوښې ورته اېښودې...

د ډوډۍ پر سر خبرې د حضرت صاحب په اړه وې، چې په ټوکو او مسخرو کېدې، هر يوه به له مجددي سره د خپلو ملاقاتونو او دده د اقتدرا د مېنې يوه خندنۍ خاطره بيان کړه، ټولو به په کړس کړس وخندل، احمدشاه مسعود ويل: مجددي په رتبه بخشيو ځوک خپل نشوی کړی... افغانستان يوولس جنرالان او يو ستر جنرال درلود... ده له زرگونو واړول، په داسې حال کې چې ما خپله د جنرالۍ رتبه قبوله نه کړه...

د بانک رئيس راته وايي فزيکي پيسې نه شته، خو دې د مليونو

امرونه ورکوي...

جلال اباد کې يې يوه قوماندان ته د څو زره جريبه ځمکې فرمان ورکړی، د ده څه حکومت دی، حکومت هغه دي چې دملت په رايه ټاکل شوی وي، ده غوښتل د دوو مياشتو حکومت يې دوو کالوته وغځيږي، ما ډېره حوصله وکړه، خو ده زما له شرافت ناجايزه گټه اخيسته... خو زه مسووليت لرم که استاد رباني له څلورو مياشتو خپل حکومت وغځوي خلاف قانون دی، زه به يې مخه نيسم.

يو څوک راغی، چې له چهلستون د موټرو يو کاروان روان دی، وايي د (استاد سياف) اتحاد غړي دي، اجازه ورکړو، که نه؛ مسعود ورته وويل، ويې دروئ زه له انجينر احمد شاه سره رابطه نيسم.

ساعت ته مو چې کتل، د شپې يوولس بجې او له گرځبنديز دوه ساعته تېر شوي، ډاکټر عبدالرحمن ته مو وويل، چې يا خو موږ ته د شپې نوم راکړئ او يا څوک راسره ولېږئ، هغه چاته وظيفه ورکړه، چې له موږ سره ولاړ شي، په يوه زاړه روسي والگا کې څو تنه له موږ مخکې او موږ پسې حرکت وکړ، څو ځايه يې په لوړ اواز د دريش غږ کړ، موټر به چې ودرېد يو تن به ورکوز شو او په غوږ کې به يې څه ورته وويل او بېرته به موټر ته وخوت، موټر به روان شو، د گذرگاه پله ته په ورسېدو، د موټرو يو اوږد کتار ولاړ دی، چې ومو کتل د قاضي محمد امين وقاد قافله ده.

دوی يې له ډېر وخته درولي، زموږ موټر هم ودرېد، يو تن سر له موټره جوت کړ، ويې ويل: زموږ غم هم درسره وخورئ، ډگروال ورته وويل، ښه موږ به ورته ووايو، چې په راگرځېدو له تاسې سره ولاړ شي.

منه گل نه پوهېږم له توکې که رښتيا، په دې تېنگ و چې دا موټر ترې

ګرځوو او دا کسان پرغمل نیسو، تر هغې چې زموږ موټر یې نه وي خلاص کړی، نه یې پرېږدو، خو موږ ورسره ونه منله.

## وروستی پاڼه د مرګ ګواښ:

د جنرال فاریابي قرارګاه ته ورغلو، پرونۍ خبره مو ور یاده کړه، د ټیلیفون غوږی یې راواخیسته، د عبدل د نومرې پوښتنه یې وکړه، نومره یې ډایل کړه، ویې ویل عیسی خان یې، عبدل، چېرې دی؟

د هغه لوري ځواب موږ نه اورېده، خو ده وویل پیش معاون صاحب رفته، غوږی یې کېښوده، نیم ساعت وروسته یې ټیلیفون وکړ، بیا لکه چې له عیسی خان سره مخ شو، ویې ویل، تاسې څه موده مخکې یو موټر او کتابونه نیولي وو، هغه موټر مو څه کړ؟

جنرال فاریابي په غوسه ویل، مجید خان خط رالېږلی چې موټر ورته مسترد کړي او ته وایې له مجید خان سره دی، د هغه لوري خبرې موږ نه اورېدې، خو جنرال فاریابي په غوسه غوږی کېښوده، موږ ته یې وویل تاسې خپله ورشئ، له جنرال مجید سره خبره وکړئ، جنرال مجید هسې ماته جنجالونه جوړوي، موږ د جنرال مجید پوښتنه وکړه: ویل هوايي ډګر کې دی، له جنرال فاریابي سره د حربي ښوونځي د وخت دوه تنه همصنفیان ناست وو، چې یوه د استاد سیاف په کچه ږیره درلوده، د پاکستان د هجرت تاپه یې خوړلې او په جمعیت کې یې ډېر وخت کار کړی و، دوی په خپلو کې ټوکې کولې او د تحصیل د وخت خاطرې یې راسپړلې.

جنرال فاریابي وویل: ګلبدین په څه موږ کافر بولي او په راکټونو مو

ولي، موږ وایو تېر په هېر، ترڅو به یو بل وژنو، خو دی د قدرت لېونی دی او نه کرارېږي.

جنرال فاريابي چې د معقول او مهذب کرکتر څرگندونه کوله، د جنبش ملي اسلامي مرامنامه او د پرېکړو اسنادو مجموعه، ماته ونیوه ویل، وگوره په دې کې د کفر څه دي؟

ما د مجموعې پاڼې واړولې، لړ لړ مې ولوسته، پوه شوم اصطلاحات یې د پرچم له مغزو او د حزب او جمعیت د اخواني ستمیانو له خولو راوتلې، تکي لغتونه دي، چې د کابل په دولتي مطبعه کې د جوزا په میاشت کې چاپ شوې.

د کارملي پرچمیانو سرببره د حزب او جمعیت اخواني ستمیانو وکړای شول پر دوستم خپل سیاستونه وتپي، له حزب مهدي او له جمعیت کریمی او... پر دوستم ورټول شول، دوستم د لېډرۍ پر نشه او هوس واړول شو... خوله خپل جامد جنگي چوکاټ اوتنگ چاپېریال ونشوی وتلی.

دوستم ته یې د سیاستمدار نستوه، رهبر خردمند و دانشمند القاب وتوړل، خو خپلې اجنډا ته یې استخدام نه کړی شو... هغه وه، چې څه موده وروسته د یاراني غزېدلې مزې پرې شول...

دوستم خپله منله چې پوځي اوجنگيالی دی... دروند ژورنالیست او پیاوړی لیکوال محمد نذیر بشارت کیسه کوله، چې د همغږۍ شورا په جوړېدا مو مزار ته د تلو پروگرام درلود، غوښتل مې له جنرال دوستم سره د مرکې مخه ومومم... له عبدالعلي مزاري مې په دې اړه سپارښتپانه وغوښته... مزاري راته کړه: د دوستم بېسوادي پام کې نیسه او دا ژورنالیزم چې دلته کوې، مه ورسره کوه، چې هغه د خپل

شخصیت او کنګال چاپېریال له کلا بندی نه شي وتلی...

مزار ته په رسېدو مې له دوستم د تلویزیوني مرکې وخت واخیست... جنرال یوسف راته کړه لیکلي پوښتنې ورکړم... ما ورته ویل: زه پوښتنې نه لیکم یواځې لنډ نوټ راسره وي... ویل یا به ټولې پوښتنې راسپاري یا به له مرکې تېرېږې...؟

پر لاره مې له کود برق تر جنګي کلا خپلې پوښتنې ولیکلې چې لومړی یې داوه:

جنرال صاحب!

کله چې پر هغو ورځو سوچ کوي، چې له روسانو سره به ګډ جګړې ته وتې او له هغه رژیم دې دفاع کوله چې د پردیو لپاره د خپل ولس پر خلاف جنګېده، څه احساس درته پیدا کېږي، ستاسې په نظر ملي خیانت څه شي دی، او پخپل تعریف کې ببرک کارمل چېرې دروې...؟

تر یو څه ځنډ وروسته د دوستم سکرتر راغی، ویل مرکه نه کېږي...

څو شېبې وروسته جنرال دوستم چې کوم ځای ته روان و، برنډې ته راووت... پر ما یې غږ کړ... هی تو فکر کدی، فکت مه کدام سیاستمدار یا عالم باشم، مه یک جنګي ادم استم، اې ګپا راچه بفمم...

زما په فکر د دوستم خپل سیاست دی، تر هغې چې ده خپل سیاست پخپل اصلي رنګ سوچه او طبعي ساتلی، ډېری یې پر یوه ګوته ګډولي، خو چې د پرچمي او اخواني ستمیانو د اجنډا وو پر ملاوت یې لړلی، سیاست یې زنګ نیولی ملي شر ګرځېدلی... د وینو پر سر سیاست یې د سرونو تجارت رامنځ ته کړي...

فاریابي خپل زیرور ملګري ته وویل: تاته یې څه ترفیع او رتبه نه ده درکړې، هغه وویل درې کاله مخکې استاد د جنرالی ترفیع راکړې او

اوس په ارگ کې کار کوم، دا جناب له دغې اوږدې ړیرې او څو کلن هجرت سره د جنرال فاریابي پر وړاندې څان دومره حقیر گاڼه چې موږ له شرمه پورته نه شوی کتلی.

موږ ترې د یوه خط غوښتنه وکړه، چې میدان ته مو پرېږدي، ده خط ولیکه او موږ د عبدل د قرار گاه تر مخ د هوایي ډگر پر لور حرکت وکړ، هوایي ډگر ته په رسېدو د شورای نظار پوستې زموږ موټر ودراوه، د جنرال فاریابي لیک مو ورکړ، د تلو اجازه یې راکړه، وروستی پوسته د گلم جمو وه، هغوی هم ودرولو، لیک مو ورکړ، ویل د چا دی موږ ورته کړه د جنرال صاحب فاریابي.

لیک یې واړاوه راواړاوه او په نه زړه یې د وړاندې تلو اشاره وکړه، موږ چې د هوایي ډگر احاطې ته ورسېدو، توله سیمه فجارو، لنډکروز او لوکسو موټرو نیولې، په دغه ورځ استاد رباني له خپل بهرني سفر راستنېده او د هرکلي لپاره یې دا محشر جوړ شوی و.

د هوایي ډگر په دروازه کې د گلم جمو پیره ولاړه وه، زموږ د وړاندې تلو مخه یې ونیوله، خو د جنرال فاریابي د لیک له توضیح وروسته یې ایله ډگروال صاحب ته د ننوتو اجازه ورکړه، نژدې نیم ساعت وروسته ډگروال صاحب بېرته راوگرځېده، له غوسې وه که له وېرې رنگ یې تک تور اوښتی، ویل جنرال مجید، راته کړه لاس مو خلاص موټر موږ سره نه شته... چې وي هم نه یې درکوم، که بل څل مو ولیدئ، ژوندي مو نه پرېږدم، که ژوند غواړئ له موټر تېر شئ پښې باسئ.

ما کله هم ډگروال صاحب دومره تلولی او وېرېدلی نه و لیدلی، ده به چې شوروي اتحاد او ختیزه اروپا کې د خپلو پوځي زده کړو، برياوو کیسې راسپړلې، داسې به دې گڼله لکه همدا اوس د دېرشو پنځه

دېرشو کالو کوماندو په ټرېننګ بوخت دی.

ورته څېر شوم، څادر يې له ځان تاو کړی، له خولې يې پر وښکي راغلي وينې ډنډ دي، ژړ ژړ پر شونډو ژبه تېروي، توکاڼي چې وغورځوي پښه پرې کېږدي...

موټر ته په ختو پټه خوله دی، تر چهلستون يې خوله چوله نه شوه، کوټې ته په ننوتو پر بستره وغورځېد، مخ يې څادر کې ونغښت، زه پټه خوله له کوټې ووتم، لږ شېبه وروسته چې کوټې ته راغلم ده له جاغې خپله اوږه را ايستلې، تکه شنه ده، تنې يې شلېدلې... زه پوه شوم، نوره پوښتنه مې ونه کړه، لکه له سره مې ليدلی نه دی، ځان مې ناګاره کړ، بېرته له کوټې ووتم.

موږ بيا هم بايد د مسعود د څرګندونو له مخې خپل کاغذونه په ګارنيزيون کې ټاکلي هيئت ته سپارلي وای، ځکه خو سبا ګارنيزيون ته ورغلو، جنرالان او افسران يوه خوا او بله خوا ګرځېدل، موږ يې يوې کوټې ته بوتلو، هلته مو د قوماندان ګدا پوښتنه وکړه، ګدا پنجشېر کې د مسعود قوماندان و چې اوس يې ورته د جنرالۍ ترفيع ورکړې، ويل په مجلس کې دې دغه کوټه داسې معلومېده، لکه د ګارنېزيون د قوماندان سکرتريت، دوه کسه ژني چې برګې کوماندويي دريشي يې اغوستې، د مېز تر شا ټيليفونو ته ناست وو.

موږ د قوماندان ګدا په انتظار کېناستو، چې يو سور ږيرې سکرتريت ته راغی، چا ويل قوماندان ګدا دی، موږ ورته د خپل مشکل توضيحات ورکړل، ده يوه تن راوغوښت،کاغذونه مو ورکړل او هغه راته يوه اوونۍ وروسته د پوښتنې وويل: په دې کې يو غټ پرېږ سړی راووت، قوماندان ګدا ته يې په ستغه لهجه وويل، دا مسخرې نه دي چې ته هر ځای له

خلکو سره ولاړ وي، اوس گدا نه يې، جنرال يې، قوماندان گدا ورمنډه کړه او موږ هم له سکرتريت ووتلو.

## د احمد شاه مسعود بلنه:

د چهلستون بڼ په هغه ودانۍ کې چې لانه ده نړېدلې، ميشت يو، قضا مازيگر چې له ودانۍ بڼ ته راووتم، د دروازې تر مخ لس، دولس ځانگړي موټر سايکلونه ولاړ دي، دا د تشريفاتو هغه دي چې مېلمانه بدرگه کوي، تر يوې ونې لاندې محمد يونس قانوني ولاړ دی، له چا سره په تودو بلکې توندو خبرو بوخت دی، زما په ليدو رامخې ته شو، ويل ښه شوه چې ومې موندې، امر صاحب، مولوی حقاني صاحب ته مېلمستيا کړې، تر اوسه يې له کوم رهبر سره نه دي ليدلي غواړي تر تولو دمخه له حقاني صاحب سره وگوري...

ما حقاني صاحب ته خبره وکړه، خو هغه له وړاندې په جريان کې و، چې خو بېرته راوتم د ماښام اذان وشو، قانوني ته مې کړه، له لمانځه وروسته حرکت دی...

د حقاني صاحب عادت دی چې بلنو ته يوازې نه ځي، دا يې هم نه خوښېږي، چې ځو تنه له ملگرو ورسره بوځي او نور پرېږدي، چې څوك حاضر وي ورسره روان وي، نژدې دېرش، څلوېښت موټر او يو نيم سل کسان تگ ته چمتو وو، قانوني وارخطا شو چې دا څه وشول دومره کسان...؟

وړاندې له دې چې زه ځواب ورکړم يو ځدراڼ ورته کړه: د پوه شويونو ولمستيه دو، ديمره کسون نه دی، وور مه خطو کوه...

څلور موټر سایکل سواره د حقاني صاحب د موټر ښي، څلور کیڼ، څلور تر مخ او څلور تر شا حرکت وکړ ورپسې د موټرو یو اوږده لیکه جوړه شوه.

د قانوني په غوښتنه مو د دارالامان لار خوښه کړه، په لومړني پاټك يې دریش کړو، له څېرو د ملیشو او دوستم کسان ښکارېدل، قانوني په یوه بل پسې منډې وهلې که اجازه ورکړي، خوله وچه، رنګ زېړ، شونډې پتري، کله یوه ته ولاړ، کله بل ته... ختې ختلې... خجالت، زهیر... زموږ ملګرو داسې وګڼله چې له کومې دسیسې سره مخامخ شوي، څکه خو د مقابلې لپاره چمتو شول، نژدې په یوه لوی شر اوښتي وو، زه ډېر وډار شوم، څلوېښت دقیقې معطل وو، تر هغې چې مخابره کې احمدشاه مسعود د دغو ملېشو عمومي قوماندان سره رابطه وکړه، او بیا هغه دلته خبر ورکړ او موږ ته د تلو اجازه، قانوني موږ د وزیر اکبر خان یوه کورته چې غالباً د شمالي کور یا سفارت و، او احمدشاه مسعود زموږ انتظار کاوه، ورسولو، د سفارت کومه ښېه او تصویر نشوی تر سترګو کېدی، ودانۍ کې دومره لوی لښکر نه شوای ځائیدای یوازې موږ پنځلس تنه حویلی ته ننوتو، ضابط عمر خان، اختر محمد ټولواك، عبدالرحیم اخوندزاده او... دروازه کې د حقاني صاحب بادي ګارډان.

نور ملګري يې له څه ځنډ وروسته خاد ته بوتلل، هورې يې ورته له کوم ځای د قراونې ډوډۍ راوړې وه.

احمد شاه مسعود د حقاني صاحب تود هرکلی وکړ، خپله يې د دوستم، ملېشو او پرچمیانو پر خلاف خوله خلاصه کړه، له حکمتیار يې سر وټکاوه، له استاد رباني يې هم شکایت درلود، مجددي يې په ټوکو یاد کړ، له حقاني صاحب يې وغوښتل عدلیه وزارت کې په کار پیل

وکړي او د پکتیا قول اردو چارې سمبال کړي... مسعود له حقاني صاحب مننه وکړه، چې خپل قوتونه او مجاهدین یې د دوی او حکمتیار تر منځ ځای پر ځای کړي دي، ده د حقاني صاحب د سولې له پروگرام ملاتړ وکړ، له ډوډۍ وروسته اختر محمد تولواك وویل ښه به وي نورې خبرې چې د راز هغه به وي ځانګړي تر سره شي، هغه و چې مسعود او حقاني صاحب یوې بلې کوټې ته ولاړل یو نیم ساعت خپلو کې په خبرو .وو

د شپې یوولس نیمي بجې مو له احمد شاه مسعود سره مخه ښه وکړه، دولس نیمې بجې چهلستون ته راورسېدو.

تر دې وخت ما له حقاني صاحب د دوی د ځانګړې مجلس پوښتنه نه ده کړې، نه پوهېږم دغسې پوښتنه مناسب ده که څنګه...؟

خو ماته د احمد شاه مسعود له لومړیو خبرو ددې پته ولګېده، چې دی په خورا مهارت د خولې خبرې نورو ته د زړه د خبرو په ښه ورانديې کولای او د زړه هغه تر خپله ژبه او تالو لاندې ساتلی شي، خپل ټول احساسات او تمایلات تر خپل پوستکي لاندې په خورا هنر پټولی شي... ماته داسې وبرېښېده چې دی له هیچا سره د زړه خبره نشي شریکولی، یا یې نه شریکوي، دی دمخه ددې درك لګولی شي چې مخاطب یې څه غواړي، څه خوښوي، له همدې ځایه د هغه په خوښه د خبرو لاره او لوری ټاکلی شي....

# پر حقاني برید

اړیکې د مخابرې له لارې نیول کېدی شي، تلیفون کله فعال، ډېری چوپ...

عبدالعزیز د مخابرې مسوول لکه ځانګړې ژبه ایجاد کړې، جدول ته ګوري، بر بر لګیا وي، ځینې ټکي، توري ډېر کاروي، زه یې په مطلب نه شم پوهېدای، یو له دې ((ګوشت او پلو)) دی...

د ډلو مخابرې ځانګړي نومونه، شفرونه او نومرې لري، چې له عبدالعزیز سره خوندي دي، عبدالعزیز ته وایم په دې ګوشت او پلو بل څه نه کوې زموږ د ګېډو آزار اخلي...؟

دی وخاندي، پر ځواب ځان غلی کړي.

عبدالعزیز له مودو د مخابرې مسسول دی، د هېواد بل سر کې چې وغواړي اړیکه ټینګولی شي، د مخابرې خپله دنیاګۍ ده، دوی سره لیدلي نه وي، خو یو له بل یې خورا توده پالي، کله کله مخابرو کې مخالفې ډلې سره ونښلي، ګیلو، پیغورونو، کنځلو او ترټلو ته خبره ورسېږي.

د ډاکتر نجیب الله رژیم سره دغسې مخابراتي نښتې ما ډېرې په زړه پورې موندلې یو ځل حاجي خلیل الرحمن ګردیز کې له یوه پوځي افسر سره د مخابرې په شخړه واوښت، بیا به هر مازیګر په بحث کېوتي وو.

افسر خوږ او درووند غږ درلود، په سړه سینه یې بحث کاوه، حاجي خلیل به کله جذباتي شو، خو چېرې هم ترې خبره ستوغه شوې نه ده،

یو مازیگر دغسې بحث کې حاجي خلیل پر افسر غږ کړ... تاسې بیخي په بدی نه پوهېږئ... موږ چې ستاسې څوک ونیسو، په درنښت یې رخصت کړو او تاسې زموږ هغه راډیو تلویزیون کې کېښولی وي...

یا الله! بدي هم پوهه، بصیرت غواړي، اسلام او پښتونولي څومره نژدې دي...؟ پښتونولي دبدی پوهه اړینه ګڼي، دښمني کې هم پولې بریدونه غواړي.

اسلام جګړو کې خپل اصول او قوانین لري، ښځینه خوندي ګڼي، پر بوډاګانو، ماشومانو به لاس نه پورته کوې، شنې ونې، کښتونه، ځنګلونه به نه ویجاړوئ، بندیان به نه وژنئ...

اسلام او پښتونولي مینه او جنګ کې هرڅه روا نه شي ګڼلئ، دواړو ته پولې بریدونه لري.

د حزب، نظار شورا او ګلم جم جګړې څه دي، چې کابل کې د وحدت او اتحاد جګړو یو بل غضب او عذاب رامنځ ته کړ، لکه سعودي او ایران خپل زور دلته زموږ پر خاوره ازمویي، زموږ خلک، وطن د نورو جګړو او ګټو قرباني کېږي، د حزب او اتحاد پر جګړو جمعیت او نظار شورا هم ورګډ شول، چند اول او افشار یې دوړه کړل، وحدت خپلو پوستو قرارګاوو کې د خمیني تصویرونه لګولي، مزاري د ملت غرب کابل شعار پورته کړ...

دریغه موږ پر بدی پوهېدلی، د حاجي خلیل خبره د کاڼي کرښه شوه، که موږ پر دښمني پوهېدلی دومره ورانی ویجاړی او بدمرغی به نه وی رامنځ ته شوې.

د وحدت او اتحاد شخړه څرنګه رامنځ ته شوه، غوڅه خبره ګرانه ده، خو واقعیت دادی، چې غوښتل یې دغه بهرني او پردیجګړه د

پښتنو او هزارګانو جګړه وګرځوي...

چا غوښتل، پوښتنه پر همدې ټکي راټوله ده...؟

یو مخکښ سعودي (پاکستان کې د رابطه عالم... مشر) کابل کې و... ده کابل کې څه کول، پخپل سر راغلی و، که د سرکار او استاد سیاف مېلمه و...؟

ددغه جګړې د اصلي لاملونو او پردې شاته لاسونو درک لګول ګران دي... چې غټان رښتیا نه وایي، اضافي خبرې کوي، له ګېډې او کولمو درته ګډ وي... د ځان درنه د بل سپکه...

ښه ده، د عادي کسانو خولې بوی کړم له خلکو وپوښتم له ولس ځواب ترلاسه کړم...

د معین خان وینا واقعیت ته نژدې مومم... دی د کابل له سقوط وړاندې ژمی د وردګو چک کې و... وایي کرې ژمی له هزاره جات دلې، دلې خلک رامات وو، هره شپه جوماتونه له دغو مساپرو ډک وو...

چې پوښتل مو چېرې مو مخه اخیستې...؟ ویل ایران ته په خواري مزدوري پسې...

له بهسودو هم دغه بهیر پر جرلیز او میدان ور ایله وو...

خو دوی ایران ته نه تلل ختیځ ته روان وو، لنډ به پر دشت برچي واوښتل قومي غونډو کې ځای پر ځای کېدل... هغه چې د کشتمد له وخته ایجاد شوي وو...

هغه وو چې د رژیم له سقوط د مخه دغه سیمې چې مزاري ملت غرب کابل باله د حزب وحدت جنګیالیو منګول ته لوېدلې وې... ځکه خو یې د سقوط په درشل کې شاوخوا پوځي تاسیسات، وسلې او د مهماتو زېرمې په اسانی لاندې کړی شوې...

خو جگړه څرنگه پیل شوه؟

میرویس میدان څلور لاري کې پر یوه ټانک د خمیني تصویر لگېدلی- له پغمان د عرب جنگیالیو د پک اپ په رسېدو یو عرب پر ټانک دراکټ ډز وکړ... ټانک ونه لگېد، خو د جگړې اور یې بل کړ...

وحدتیانو کابل کې سعودي سفارت چور کړ....

عرب جنگیالي کونړ کې د مولوی جمیل الرحمن او ځاځیو کې د استاد سیاف لیکو کې جنگېدل، څکه خو حکمتیار ۱۹۹۱ جولایي کې له افغانستان نه د ټولو عربانو د وتلو غږ وکړ...

(فرنټیر پوسټ ۱۵ جولایي ۱۹۹۱)

عربانو د جلال اباد جگړه کې جلا غونډ درلود، چې د استاد سیاف له شمشاد قرارگا بهېدل، هورې یې د وژل شویو هدېره ده... دوی کابل ته له استاد سیاف دمخه رسېدلي وو.

له پغمان تر میرویس میدان یې پک اپ ځغلېدل...

نظار شورا د وحدت او اتحاد پر شخړه د پښتنو او هزاره گانو د دښمنی ایرې وتپلې، بیا یې د شیعه، سني ټاپه ورکړه، چې له امله یې د پښتنو سرو کې میخونه ټک وهل شول، کورونه یې لوټ او د سیمې زرگونه بې گناه اوسېدونکي ووژل شول... ابوالحسن هم د وحدت منگولو ته ولوېد خو روغ رمټ یې پرېښود... په دې توگه یوه بله بې رحمه جگړه وتپل شوه...

له ابوالحسن سره یې افغان سکرتر اسدالله او د میاگل جان اغا لمسی فرید هم نیولی وو... د میاگل جان اغا یو لمسی سعودي کې د زده کړو پر وخت هورې واده کړئ، د پیری مرید قایل نه و... بیا لندن ته ولاړ او هلته وفات شو...

ویل کیږي د مېرمنې له خوا یې ابوالحسن سره خیښي وه...

حقاني صاحب چې د دوی ترمنځ موقتي اوربند رامنځ ته کړ داده نه دی، غواړي خبره پخه او کره شي.

د سهار ۸ بجې دي، د دایمي اوربند لپاره عبدالعزیز د حقاني صاحب له خوا د مخابرې له لارې له وحدت، اتحاد او نظار شورا ترمنځ د ناستې زمینه برابره کړې، چې د تلپاتې اوربند لپاره د سولې او جرګې پر تغر راټول شي، ۹ بجې مو له چهلستون حرکت وکړ، حقاني صاحب دوه سیټه پیک اپ ته وخوت، دویم هغه د جنرال ساپي شو، دوه د باډیګارډانو، پنځم زما دی، ورپسې د ساتونکو...

پر ښار ډاروونکې چوپتیا پرته ده، لکه ژوندیو ترې وار له مخه پخپلو اوږو خپلې جنازې لېږدولې او ښار یې د مرګ خاموشي ته سپارلې، لکه د ژوند نښو او هنګامو خپل سر خوړلی، واټونو کې یوازې د ملیشو او مجاهدینو جیپان او پیک اپ ځغلي، څلور لارو کې رامنځ ته شوې پوستې د مرګ زهر ویشي، کوڅه ډب سپې، په انګولا دي، نور نو ژوند له ښاره کډه کړې، مرګ او وېرې په کې ډېره اچولې...

له جوی شېر سره د سپو یوه لالهانده ډله وارخطا ودرېده، د ګاډو له تېرېدو یې بېرته په شا وځغستل، د غره په لور یوه تنګه کوڅه کې ورک شول.

ثانوي تخنیک چې پخوا یې کلای کلوخک باله د راټولېدو لپاره په ګوته شوی.

دهمزنګ کې د جنرال مؤمن ځواکو تم نه کړو، ثانوي تخنیک ته په رسېدو د هېڅا درک نه لګېده، کابو نیم ساعت تم شوو، اړیکه نه شوی ټینګېدای، ان چې د سمو معلوماتو ترلاسه کول هم ناشوني ښکارېدل.

څه وکړو، څنګه يې وکړو... چې برید پیل شو، مردکي دی چې راپريوځي، د درنو ډزو غورمبی پورته دی.

باډیګارډانو سملاسي مورچې ونیوې، حقاني صاحب د حرکت امر ورکړ، یوه شېبه کې موټرو ته وختو، له ثانوي تخنیک په راوتو لاره کې نوی خنډونه غورځېدلي، ډزې روانې دي، ګاډي تم شول، جنرال ساپي خپل پیک آپ له کتار راویوست د سړک ښي اړخ ته یې پر یوه لښتي وربرابر کړ، د دې لپاره چې موټرو ته یې د تېرېدو لار اواره کړې وي، ګړندی، له لښتی واوښت، بېرته په شا راوګرځېد، په خورا چټکی پر مخ ولاړ، لاره جوړه شوه، موټران پر سړک وربرابر شول.

زموږ پیر صاحب وارخطا شو، لکه یخني نیولی وی، زامې یې ګړېږي، موټر ترې ونښت، خو د باډیګارډانو د موټر له سختې دیکې سره راووت، جنرال رحمت الله ساپی د ټولو تر مخ په بلو څراغو لکه ګولی څغلي، لار باسي...

چهلستون ته په رسېدو څرګنده شوه، دوه ساتونکي لګېدلي، په موټرانو ګولی موښتې، د جنرال ساپي کوماندو په کار راغله، چهلستون کې مې ورته کړه، سردار ولي خو دې لاس تړلی داود خان ته وسپاره، ښه وه حقاني صاحب دې وژغوره... دا خبره اصل کې د ولسمل ده، هغه وخت چې جنرال ساپی د پیر ګیلاني د امنیت رئیس و، مجاهد ولس کې یې پسې لیکلي و، " پیر صاحب ته دې خیر وی" رحمت الله خان ساپي خو جنرال عبدالولي لاس تړلی داؤد خان ته وسپاره...

برید چا وکړ، پر سړک خنډونه چا غورځولي وو، بریدګرو ته دا اطلاع رسېدلې وه، چې حقاني زغروال ګاډی کې نه دی راغلی....؟

د اتحاد لاس دغه برید کې نه شي په ګوتو کېدی، خو دا چې یو اړخ

هم له خپلې ژمنې سره نه و راغلی له دغسې شک غاړې نه شي خلاصولی.

دا یوه توطئه وه که تصادفي پېښه او ناسم پوهاوی... حقاني صاحب نه له رسنیو سره مرکو کې او نه هم له موږ سره ناسته کې په کوم لوري د برید پړه وغورځوله، څومره زغم، څو نې ظرفیت...؟

حقاني صاحب له B.B.C سره مرکه کې ایله دومره وویل:... موږ د متخاصمو غاړو د ټینګې ژمنې له مخې غوښتل د جرګې پر تغر کینو، چې را منځ ته شوی اوربند و غځول شي، سوله ټینګه شي، خو متاسفانه دوی پر خپله وعده وفا ونه کړه... ماله موټر سره ورجوت کړ... بیا مې خپلو مجاهدینو ته وویل ډز ونه کړي.

(...) ډاکتر یوه لیک کې ماته کښلي:... دلته د ګاندي جي د سیاستونو ځای نشته...

زه چې میرانشا کې حقاني صاحب ګورم د ایپي فقیر میرزا علیخان راته بریښي. (...) ډاکتر یې کابل کې ګاندي جي ته ورته مومي؟

## کابل هوټل که کاروانسرای:

عبدالسلام د کابل هوټل د دریو کوټو نومرې راکړې وې چې فاضل او د جمعیت فرهنګي کسان په کې مېشت وو، درې واړه کوټې بندې دي، له دې مخکې ما څو څو ځله له کابل هوټل پر ټیلیفون د دغو شمېرو کوټو سره دارتباط غوښتنه کړې وه، هغوی به کله ویل کوټې ټیلیفون نه لري او کله دا چې موږ ته امر نه شته،کابل هوټل افغانستان بانک ته مخامخ دروازه تړل شوې، هوټل پر لارو جوړو شویو دوکانو او سماوارو

ته ورته ښکاري، هرڅه یې پر بل مخ اوښتي، د نصوارو توکاڼو پر دېوالونو او دهلېزونو عجیبه رسمونه او نقشونه جوړ کړي، هینداریې ماتې او کوټې له چریکي بسترو ډکې دي، په مطلوبو کوټو کې دا نه معلومېده، څوک شته او که له دننه قلف دي، له منیجر مې پوښتنه وکړه، ویل یې، موږ ته هم درک نه لګي، مخکې به چې مسافر له هوټل وتل، کلی یې موږ ته راکوله، خو اوس موږ نه پوهېږو، په کوټه کې شته که چېرې تللي دي. منیجر زیاته کړه، کابل هوټل اوس هوټل نه دی، د دېوانو کاروان سرای دی. د ده په خبره کابل هوټل پخوا ښه رونق او عایدات لرل، خو اوس په میاشتو کوټې بندې وي، داسې هم شوي چې یو تن کوټه بنده کړې بدخشان پنجشیر... ته تللی، بل چاته یې کلی ورکړې او هغه په کې اړولي وي.

د قلف له سوري مې وکتل، د بېړ کاغذونه تیت پرک پراته وو، یقین مې شو، د یارانو کوټه همدا ده، درې لیکونه مې ولیکل، د ټیلیفون شمېرې مې هم په کې ولیکلې او دروازې لاندې مې د کوټو دننه وغورځول.

یوه نیمه اوونۍ وروسته سهار اته بجې عبدالعزیز غږ راوکړ، ټیلیفون دی، فاضل خبرې کوي، د ټیلیفون غوږۍ مې واخیسته، فاضل په هماغه پخوانۍ مینه خبرې کولې داسې معلومېده، د کیسې په زور او زېر خبر دی، خو په دې یوه میاشت کې یې ولې پوښتنه ونه کړه او اوس یې څرنګه د ټیلیفون تکلیف وکړ؟

زما خبرې ترخې وې، خو ده ښه په اطمینان خبرې کولې، داسې معلومېده لکه په دې اړه یې ښه سوچ کړی وي، فاضل زما د احساساتي او انتقادي خبرو په ځواب کې وویل، پام کوه خبرې دې ثبتېږي.

ما ويل: پوهېږم، يوازې خاد سلامت او فعال پاتې دی...

فاضل دا هم وويل: تېره ورځ چې استاد رباني له خارجه کابل ته راتی، هوايي ډګر کې ستاسې له ملګرو يوه تن له جنرال مجيد سره د موټر خبره کوله، چې ورته کورټ منکر شو، په تهديد يې له هوايي ډګره وشاړه، هغه خو به ستا د موټر معامله نه وه، ما ويل کېدی شي.

خبره داسې شوه، چې فاضل به په خپل ټول وس له خپل اثر او رسوخ استفاده کوي او احوال به هم د ده له طرفه وي، په دې کې ښايسته ډېرې ورځې تېرې شوې، خو د فاضل احوال معلوم نه شو، ځکه خو مې د ښاغلي فاضل د دفتر ټيليفون شمېره پيدا او له دې په زيات کړاو مې ور سره د ټيليفوني خبرو چانس ترلاسه کړ.

ښاغلي فاضل ادرس راکړ، له بهرنيو چارو وزارت سره لګېدلی د ميهن جريدې دفتر يې د جمعيت فرهنګي چارو ته ځانګړی کړی...

ما هم په بيړه د فاضل او ميهن په لور مخه کړه، د دفتر په پيدا کولو کې له ستونزې سره مخامخ نه شوم، له فاضل سره مې په ټوکه کې وويل، عجيبه تصادف دی، چې د جمعيت فرهنګي چارې د ميهن دفتر کې غځېدلې، دا اړيکې موله پخوا وې که څنګه؟ ده وخندل، دفتر لا منظم نه و، مېزونه، کتابونه او الماری ګډې وډې پرتې دي، زه له فاضل سره کېناستم، دلته دا هم راته معلومه شوه، چې فاضل له دې دفتره علاوه په ټوله کې د (افسر به کار خاص) په توګه کار کوي.

فاضل که څه هم خبر و، خو له ما يې بيا د موضوع په اړه توضيحات غوښتل، ما هم لنډ معلومات ورکړل، اوس نو د دفتر هر غړی راځي او پوښتنې کوي، څوک خاندي، څوک سر وخوځوي او ژبه وټکوي.

د بدخشانيانو هجوم و چې دلته يې مخه کړه، اجر الدين وويل هره

غرمه دا حال وي، دغه دفتر ته يې له دولتي امنيت پخه کړې ډوډۍ راوړه.

ښاغلی انديشمند هم د ډوډۍ پر مېز حاضر و، د راديو تلوېزيون او دولتي ادارو د ښځينه مامورينو او کارکوونکو کيسې مشغولا ده، يوه ويل فلاني رياست کې هغې فلانۍ نجلۍ له فلاني د واده غوښتنه کړې، بل به ويل؛ فلاني په فلاني وزارت کې له يوې مامورې سره کوژده کړې، بس همدا خبرې او د همدغو خبرو په رابطه خنداگانې وې، چې دوی ترې له هغوی زيات خوند او لذت اخيست.

له فاضل سره مې د دوستم د جنبش د مرامنامې په هکله خبرې وکړې، چې د ليکنې له اسلوب او د لغتونو او اصطلاحاتو له انتخاب معلومېده، ببرک او پرچم خپل مرام ته د دوستم د جنبش کميس او پرتوگ وراغوستی وي، خو فاضل جدي شو، چې داسې نه ده، په جنبش کې هم داسې ککرې شته، ما ورته کړه، د خام کله وو ماغزه داسې نه وي، دوارو وخندل.

له فاضل سره مې پېژندگلوي ما قبل التاريخ وختونو ته رسېږي، که وواېم جمعيت ته مې د ده په سترگو غاړه ورکړې وه، بېځايه نه ده، د مدرسې دروند، لايق او ښايسته زده کوونکي، له اووم تر دولسم ټولگي اول نومره، له هماغه وخته له فرهنگ او ليکوالي سره پېيلې پر سياسي مسايلو او پرمختياوو خبر ځوان... د مدرسې ايډيالوژيک مسلط سياست متفکر ماغزه...

له نصابي کتابو د باندې يې پراخه مطالعه وه، پښتو ادبياتو سره يې هم پالل د استاد رباني د ترور زوی، چې له مهاجرت وروسته سعودي ته ولاړ، په بېرته ستنېدو دجمعيت فرهنگي کمېټه کې د ميثاق خون مجلې

چلوونکی او د فرهنګي انجمن رئیس...

له دغه مخینې سره مې خپل اخلاص او صمیمیت ته جمعیت کې د ده د زړه دړه بېرته ونشوی موندی...

څارنوال عماد الدین وثیق په پښبه ډېره خواشیني وښوده، ده فاضل ته وویل که موږ نه توانېږو د ننګیال موټر، کتابونه ورته پیداکړو، دا به ډېره بده خبره وي، اخر حکومت له موږ سره دی، قدرت موږ نیولی په داسې حالاتو کې موږ د عذر لپاره هېڅ جواز نه لرو، خو پر ښاغلي فاضل لکه د ده خبرې ښې نه وي لګېدلې، په ټیټ غږ وویل زموږ چې څه په وس کې وي هغه به کوو.

وثیق صاحب دا هم وویل، عباس کریمي کولی شي دا کار وکړي، هغه له دوستم سره بلد دی او مزار ته ورغلی و، که موټر یې مزار ته هم بېولی وی کولی شي هغه تر لاسه کړي.

عباس کریمي د ابوحنیفه مدرسې فارغ او لومړی په جمعیت کې و، بیا حزب ته ولاړ او هلته یې په یوه غونډه کې جمعیت په اصطلاح جمعیت اسلامي بللی و، خو بیا بېرته جمعیت ته ولاړ، له یاسر سره هم د پایخې رګ لري، له همدې امله هغه د خپل وزارت معین ټاکلی، اصلي نوم یې عبدالرحیم دی.

## د مرگ په زېري کې د خوښۍ ډزې:

سهار له لمانځه وروسته په خپلو بسترو کې غځېدلي يو، چې له شاوخوا د درنو او سپکو وسلو ډزې پيل شوې، لکه ډېر سخت او خونړی جنگ نښتی وي، ډزو نژدې نيم ساعت دوام درلود، موږ ټول حيران شوو، چې څه خبره ده، په دې کې چا د امريکا غږ له خولې ياده کړه، چې د رشيد دوستم او ببرک کارمل د سپرلۍ الوتکه غورځېدلې او دواړه له څو نورو پرچميانو سره وژل شوي دي، دا ډزې د همدې خوشالۍ ډزې دي، د مخابرې خونې ته مې منډه کړه... څه درک ونه لگېد... د ډزو په پای کې د ټيليفون زنگ راغی، غوږی مې پورته کړه، مقابل لوري بېله سلام په دري وويل، ښه شوه چې ستر کافران له مينځه ولاړل، ما وويل ستاسې په مطلب پوه نه شوم، ويل نه گورئ دوستم او کارمل وژل شوي، ډزې دې نه اورېدې، ما ويل اورېدې مې، خو له دې پېښې نه يم خبر، ويل نو دا ډزې چا کولې، ما ويل فکر کوم ډزې له هغو اړخونو کېدې، چې د حزب اسلامي او نظار شورا قوتونه پراته دي، ده ويل ښېگا به له تلوېزيون د دوستم بيانيه واورې، ښېغمه اوسئ او غوږی يې کېښوده.

په کابل کې اوازه وه، چې ببرک او ډله يې د دوستم په ملتيا د کودتا لپاره کابل ته راغلي، په ښار کې ځای ځای د دوستم او جنبش شعارونه ځړېدل، په ځينو دولتي موټرو هم د ۳۵ فرقې پرځای د جنبش ملي اسلامي ټاپې وهل شوې وې، د دوستم گڼ تصويرونه، پر موټرو او ودانيو لگېدلي، ځينو خلکو په مکروريانو او نورو برخو کې د ببرک کارمل تصويرونه او دده په پلوۍ شعارونه هم ليدلي و، زه نه پوهېږم دا خبره

به څومره حقیقت ولري، خو د تواتر حد ته رسېدلې...

بېگاه جنرال مجید له کابل رادیو تلوېزیون او بي بي سي سره په دې اړه مرکه وکړه او په هماغه برگه دریشی کې یې په ډېر طمطراق د الوتکې خبر تردید کړ.

که څه هم کارمل نوره بایللې وه، وروستیو کې د حیرتان ښارگوټي یوه کانتینر کې مېشت و، په همدغه کانتینر کې ومړ... حامد علمي لومړنی افغان ژورنالیست دی، چې د حیرتان ښارگوټي لمنو کې یې دا مو پر غاړو پر تودو شگو ولاړ کانتینر کې د کارمل پل موندلی...

سوځنده لمر، یوازیتوب، دوپجن کانتینر د کارمل ژوند ته د پای ټکی کوت...

د علمي په وینا د کارمل پر څېره د ناکامی، وېرې، غوسې، نهیلی، وحشت او یوازیتوب کرښې ورې کرښې ځغلېدلې وې...

روسانو ته په غوسه، له خپلو ملگرو شاکې، له ژورنالستانو گیله من کارمل په مات زړه علمي ته وایي: د روسانو بندیخانه کې هېڅا دده لپاره غږ پورته نکړ...

خپلو رټلي، پردیو شړلي کارمل هیڅ لوري ته د مخ اړولو سترگې نه شوی لرلی...

بشارت صاحب د جنرال حیدرخان اندرابي له خولې وایي... ببرک کارمل د لیدو نه و، هرشی یې بایللي و، حیرتان کې یې پالنه زما د دندې برخه وه، یوه ورځ یې راته ویل: د سیند خواته وزم...

زه (حیدرخان) خو گامه وروسته وم، ناڅاپه د سیند پر غاړه ودرېد، د وینا کولو پخپل دود یې آمو ته لاس ونیو، په ریږدېدلي اواز وغوړمبېد... ویریږم چې تا به هم له ما د نفرت دومره کیسې اورېدلې

وي، چې څېږ به دې خپله غېږ کې ځای رانه کړي...

دغه ټکي د پېغورونو د عذاب هغه نښې دي، چې دکارمل پر وجود او څېره یې خپلې نښې لکه د چیچک او کال دانې داغونه پرېښې... هغوی چې پردي له خپلو ښه گڼې انجام یې له دې پرته بل څه نه شي راختی...

## د دوستۍ تجربه، د دښمنۍ څکه:

د مسعود او مجددي اختلافات اوج ته رسېدلي، پر رادیو تلوېزیون او اخبارونو د جمعیت او مسعود کنټرول دی، ټول خبرونه او پروگرامونه د مسعود، رباني ملاقاتونو، ویناوو او بوختیاوو په هکله دي، کله نا کله د مجددي د وینا هغه برخې هم خپروي، چې یا خو ډېر احساساتي دي او یا هم د مسعود او جمعیت روېې داسې په غوسه کړی، چې دې ته یې پام نه وي، څه وایي او څه یې له خولې وځي.

مجددي جنرال عبدالرحیم وردگ لوی درستیز ټاکلی و، چې احمدشاه مسعود ویتو او پرځای یې جنرال آصف دلاور لوی درستیز اعلان کړ، کوم ۳٦ کسیز کمېسیون چې ټاکل شوی و، د مجددي دواړه زامن او د تنظیم یوولس کسان یې غړي وو، چې جمعیت او احمد شاه مسعود مسخره گڼه.

د مجددي د خبرو دا برخه ځکه جالبه وه، چې د لیدونکو اورېدونکو د یوې لنډې خندا او تبصرې لپاره یې زمینه برابرولی شوی، مجددي په خپل ټول قوت دا هڅه کوله، په قدرت کې د پاتې کېدو جواز او ځواک پیدا کړي، د ده سترگې دوستم ته اوښتې، چې گڼې د ستر جنرالۍ او د

اسلام فاتح لقب په صله کې يې پلوي شي، د اقتدار په لوبغالي کې د مسعود، مجددي ترمينځ د قدرت مسابقې يوه عجيبه وزلوبه روانه ده، خو برى د مسعود دى او مجددي ته يوازې د احساساتي انتقادونو او سپورو ستوغو مخه خلاصه ده.

حيرانوونکې دا چې حکمتيار هم مجددي ته د واک اوږدېدو پيغام او ډاډ ورکړى، مجددي له مسعود خوابدى دى، چې د ده لپاره يې د حکمتيار مخالفت وکړ، خو بيا هم دوى پوره واک ورنه کړ، رباني پرې وروغورځېد...

مسعود اندېښنه لرله، که دوستم په رښتيا د مجددي تر شا ودرېږي، ايران هم شايي حزب وحدت د دوى ننگې ته اړ کړي، ځکه خو يې ځان له يوې نوې ننگونې سره مخامخ گاڼه، له پاکستان د راگرځېدو پر مهال د مجددي پر الوتکه برید په همدې موخه وشو، چې پړه يې پر حکمتيار ولوېږي او مسعود د مجددي له شره ځان وژغورلاى شي.

د قيادي شورا يوه غونډه کې عبدالهادي ارغنديوال د حکمتيار په نيابت يوه طرحه وړاندې کړه، مجددي په احساساتي ټکو وويل: دا خو ټولې معقولې خبرې دي، اعتراض نه شي پرې کېدى...

استاد رباني پر مجددي غږ کړ: حضرت صاحب! لږ احتياط کوه، ته د حزبيانو د دوستۍ تجربه نه لرې.

مجددي په ځواب کې ورته وويل: ستا له دوستۍ مې څه ترلاسه کړل، ستا خو نه څوک پر هو پوهېږي، نه پر نه؛ حکمتيار چې هرڅه دى صراحت خو لري...

## له مسعود سره یوه بله ناسته:

## د حضرت صاحب دماغ خراب دی:

له حاجي خلیل سره د مسعود ملاقات ته ولاړو، د وزیر اکبر خان مېنې یوه کور په سالون کې یې کېنولو، نژدې یو ساعت مو انتظار وکړ، قاضي راز محمد دلیلي لکه ستن خوږلې ښکته پورته ځغلي... کله د مسعود خولې ته ناست، کله د ډاکتر عبدالله، ډاکتر عبدالرحمن او...

کله موږ ته راغلی، کله بل ته گونډه ماته کړي... مضطرب، تلولی، غلی، غلی، غل، غل، په همدغسې وارخطایی او غلا موږ ته نژدې شو... د پښتنو پر تباهی یې خوله خلاصه کړه خو برگه دریشي کې د یوه ژړې په راتلو لیرې وغورځېد....

د غرمې یوه نیمه بجه شوه، چې د مسعود سکرتر نجیب راغی، ویل یې تر اوسه ستاسې ملاقات نه دی شوی؟

لومړی ډوډی وخورئ، خو چې کتل مو چای او څه نخود او پسته یې پر مېز کېښودل، لږ وروسته مسعود راغی، خبرې شروع شوې، حاجي خلیل ورته د کودتا د اوازو وویل، مسعود د پوره ډاډ او باور څرگندونه کوله، ځکه خو یې په یوه فاتحانه موسکا وویل، زه خو داسې قدرت نه وینم، چې د کودتا اقدام وکړي، ده زیاته کړه، د دوستم ټول قوت او قدرت ور معلوم دی او هغه به هېڅکله هم دا کار ونه کړی شي، مسعود وویل، د کارمل پرچم ډلې په رابطه ما هم اورېدلي، خو د داسې اقدام امکانات نه وینم. د حزب په اړه یې وویل، حکمتیار یو ځل حمله وکړه ناکام شو، بیا یې حمله وکړه ناکام شو، که بیا حمله وکړي بیا ناکام دی، هغه هیڅوک نه لري، د مشرقي او شینوارو چې څومره

کسان ورسره وو، هغوی ټول ترې تللي، د ترياکو ټولولو وخت دی، يو هم نه دی ورپاتې.

ده وويل: خبره د افرادو د شمېر نه ده، اصلي خبره دا ده چې ځومره افراد سوق کولی شي، مسعود د حزب د ټانکونو او درنو وسلو احصائيه بيان کړه او د حزب دننه يې د اختلافاتو په رابطه خبرې وکړې، د قاضي امين وقاد او مزمل ډلې چې استاد سياف د تاميل پړانگان بلل له اړيکو يو اوږد داستان تېر کړ، د دوی پر ژمنو او تعهداتو وغږېد، دا چې له ده يې ځومره پيسې او امکانات وهلي ځرنگه وعدې يې ورسره کړې، د جلا حزب اسلامي د اعلان او حکمتيار د تجريد ټټر يې وهلی... چې حکمتيار، ختم دی، فيصله دی...

ماته په مخ اړولو يې وويل، معلومات مې څنگه دي، ما ويل بالکل کره چې دا معلومات نه، بلکې استخبارات دي، مسعود دا هم وويل، چې زه به له دې وروسته د وزارت دفاع کارونه شروع کوم، تر اوسه خو ما هسې د ملکی او اربابی کارونه کول، اوس مې پخواني افسران راغوښتي، چې د وزارت دفاع تشکيل وگوري، اضافي شعبې او څانگې چې رژيم پر سياسي او نظرياتي بنياد جوړې کړې، له تشکيله حذف کړي. مسعود پر حضرت صاحب انتقاد وکړ، ويې ويل د حضرت صاحب دماغ خراب دی، زه له تېرو څوارلسو کالو له حزب سره جگړې او جنجالونه لرم، نو چې زه حاضر يم، خپل جنجالونه ورسره حل کړم، دی يې ولې نه شي حل کولی، بيا که ورته وايې، چې سل تنه را معرفي کړه، چې له حزب سره وجنگېږي، يو هم نه شي پيدا کولی.

ده زياته کړه، دا نه شي کېدی، چې حزب له يوې مخې ختم کړو، نو چې دا نه شي کېدی او حزب نه شي ختمېدلی، بيا ولې ورسره مسايل

حل نه کړو، ده حاجي دين محمد هم په ستوغو ټکو ياد کړ... چې په درواغجنو ژمنو وعدو او لطايف الحيل پيسې ترې وهي... د لنبتي دواړه خوا وې خوري له حرکت او محمدي زامنو يې هم سر وټکاوه، چې امتيازات غواړي کار نه کوي...

ده د مجددي له ورونو او زامنو سر وټکاوه، چې حضرت صاحب ته غلطې مشورې او معلومات ورکوي، يوه ورځ د ده په وينا د حضرت صاحب زوی راديو تلوېزيون ته تللی و، د تلوېزيون منسوبينو ته يې بد رد ويلي و، چې د حضرت صاحب په رابطه خبرونه نه خپروي...

مجددي د خپل زوی په لاس يوه ليکنه د اعلاميې په بڼه د دوستمي جنرالانو په ملتيا راډيو تلويزيون ته لېږلې وه، چې د لويې جرگې تر جوړېدا به د ده حکومت دوام ولري... دلته نو ما جدي اقدام وکړ، د دې مخه مې ونيوه، ورته ومې ويل چې موږ جگړې ته چمتو يوو، بيا به دومره وينې توې شي، چې تر ټولو د مخه به حضرت صاحب ډوب کړي... د خدای په فضل د هغې فتنې مخه ونيول شوه...

## درنې ډزې؛ سپکې منډې:

د جمعيت فرهنگي دفتر کې يم، په دې ورځ حفيظ منصور، سيد حبيب شاه، خليل هدف او څو تنه نور پېژندوی هم راغلي، سيد حبيب شاه له چا سره پټې خبرې کولې، غالباً د کومې ماموري د ټيليفون په اړه غږېدل او له هغې سره يې د کړې وعدې او خبرو په يادونو د خپلو سترگو سړولو هڅه کوله.

دلته يو کندوزی جمعيتي له وضعې ډېر سر ټکاوه، مسعود او رباني

یې ملامت کړل، ویې ویل مسعود او رباني ته دا نه وو په کار، باید مسعود یو نظامي حکومت اعلان کړی وی چې مولوي حقاني جمهور رییس او دی یې وزیر دفاع وای، که داسې شوي وای، د پښتو او فارسي مثلنه هم نه راپیدا کېده، د کمونستانو مخه هم نیول کېده او چاته د مخالفت جواز او فرصت نه پیدا کېده.

حفیظ منصور ویل، په هوایي ډګر کې یو اشنا لرم، له هغه سره به مشکل مطرح کړو، که څه یې له وسه پوره وي، نه یې سپموي، د تیلیفون نومره یې ډایل کړه، خبرې یې ورسره وکړې، په پای کې یې ورته وویل، ګوره ننګیال زموږ جنرال فنا دی، چې فکر دې وي، موږ هوایي ډګر ته ورغلو، هلته مو بیا هم د ګلم جم ملېشو په یوه ډله سترګې ولګېدې، چې ګډوډ ببر سرونه، څوړند برېتونه، سرې سترګې پراته وو، داسې معلومېده لکه له یوې مخې نشه او یا هم بنه ستړي او بې خوبه وي، موږ د دوی په مینځ مینځ کې تېر شوو، ډېری سل ډزي، او راکټ ته تکیه وهلې وه، موږ ته یې په سرو سترګو کتل، داسې لکه زموږ جېبونو کې د دوی ورکه پرته وي.

موږ ته منصور له حبیب الرحمن سره د لیدو ننبه راکړې وه، حبیب الرحمن مو پیدا کړ، د پنجشېر اوسېدونکی او هوایي ډګر کې د نظار شورا استازی او د قوماندان فنا سکرتر دی.

حبیب الرحمن دروند، او پاک زړی څوان معلومېده، ما خپله کیسه ورته سر تر پایه تېره کړه، خواشینی شو، له وضعې او موجوده حالاتو یې شکایت وکړ، ویې ویل، په والله دغه وحشي ملېشې او د دوی قوماندانان له موږ سره داسې رویه کوي، لکه غلامان یا اسیران چې وو، چې څه ورته وایو په ډار ډار یې وایو.

ده وويل: زه به کوښښ وکړم، خو خدای خبر، بيا هم که څه وشول تاسې ته به خبر درکړم.

بله ورځ زه او پير صاحب بيا د جمعيت فرهنگي دفتر ته ورغلو، اجر الدين وياړ هم هلته و، يو ځل بيا انټريو او استنطاق پيل شو... څنگه چل و... چېرته، څه ډول او دې ته ورته نورې پوښتنې...؟

پوښتنې ښې نه لگېدې، ما يو ځل بيا ټوله کيسه له سره تر پايه په يوه دمه تېره کړه، وياړ خوله رانژدې کړه، ورو يې وويل بربادي ده بربادي څه به کوو...؟

په دې کې فاضل راغی، دی لېږې وغورځېد، ويې ويل پرون تلوېزيون کې ستا پر کتاب تبصره وشوه، که يوه ادبي مرکه درسره وشي څنگه به وي، ما ورته وويل، ستا له مهربانی مننه، خو په دغه فرهنگ دښمنی کې ادبي مرکه کېدی شي؟

په دې کې انديشمند هم راغی، ده هم پر کتاب د تبصرې خبره وکړه، ويې ويل، که له خپلو کتابو يو يو ټوک راکړې، نو بېلا بېلو پروگرامونو کې به پرې تبصرې وکړو، ما ويل: کتابونه خو ملېشو لوټلي، اوس بې کتابه گرځم.

له غرمې وروسته دا سيمه د توغنديو پر له پسې ډزو ولړځوله، فاضل او نور به کله لاندې منزل ته کوز شول، کله پاس ختل، د ټيليفون شمېرې به يې ډايل کړې او له يوې بلې خوا به يې پوښتنې کولې.

نه برېښنا وه او نه هم اوبه، د ماسپښين د لمانځه وخت و، څکه د اوداسه لپاره د جومات په لټه کې شوم، نژدې مو يو جومات پيدا کړ اوبه په پيسو وې، کوزه په (۵۰۰) افغانی... لمونځ مو وکړ، د توغنديو ډزې په لږ ځنډ رواني دې، څمکه او تعميرونه يې لکه د زلزلې لړزول.

له لمانځه وروسته بېرته د جمعیت فرهنګي دفتر ته ولاړو، چې که څه درک ولګېږي، چې جګړه پر کوم طرف ده، له دفتره مو چهلستون ته ټیلیفون وکړ، له عبدالعزیز سره مو خبرې وکړې، ویل یې له دې طرفه جنګ نشته...

سید حبیب شاه له ډاره داسې لړځېده، لکه د مني وچه پاڼه، د فاضل او نورو هم رنګونه تک زېړ تبنتېدلي، لکه وینه ترې زبېښل شوې وي.

ما په ټوکه ورته وویل د پادشاهي، مزې خنګه دي؟

دوی یو بل ته په اشارو څه زېړ زمیني زېړ زمیني یادوله، هغه و چې له څو سختو ډزو سره ووتل، موږ هم ورپسې منډه کړه، چې کتل مو د وخته موټرو ته ختلي او داسې کش لګولی و، چې له سلنګسر یې لکه د بخارۍ نل لوخړې ختې، ما اول فکر وکړ ګنې د توغندي د کومې ګولۍ په لګېدو اور بل شوی، موږ یې پر سړك بې اسرې پرېښوو، څه مو کړي وای، د توغندیو په لوګیو او غړمباکې مو منډه کړه...

نه موټر شته، نه ټکسي او نه څه بله وسیله، خلکو په لاسي کراچیو او شاوو زخمیان یوړه او بله خوا زغلول، موږ د ده افغانانو په واټ ووتلو او له نو اباد سره مو ایله یو ټکسي پیدا کړ، څو توغندي له پل باغ عمومي سره د ارین هوټل لاندې د موټرو تم ځای کې لګېدلی وو، چې ډېره مرګ ژوبله یې کړې وه، ویل کېدل توغندي د ائتلافیونو له خوا ددې لپاره فیر شوي و، چې د حزب په وړاندې د خلکو کرکه او نفرت وپاروی. والله اعلم.

پردې ورځ انجنیر حکمتیار او استاد سیاف د قیادي شورا د غونډې لپاره چهلستون ته تللي وو، خو استاد رباني د توغندیو ډزو داسې وېرولی و، چې د قیادي شورا، غونډه او ځای یې له یاده وتلی و.

## د گوليو په گډا کې:

# د ملگرو له قيامت، د ورونو محشر ته

د کابل پر ښکلاگانو د کمونستانو ناتار او شوروي تېرې وحشتونو اور لگولی، خو د فتحې او ازادۍ په نامه چې کابل په کوم دوزخ کې سوځېده، هغه له تېر څوارلس کلن وحشت او بربريت څو برابره زيات خوت.

دلته ده چې د غويي اتمې وحشت د ثور د اوومې ناتار مخ سپين کړ.

يو سړی چې ټوپکيانو د جيبونو په تشولو د ټوپکو په خولو او کونداغو واهه ډباوه، د اخ و آه پر ځای ويل: پر دې خوله مې وهئ، دا خوله راماته کړئ...

ټوپکيانو لاس ونيو، په خوله ولې، د خولې ماتولو څنگه...؟

سړی ورته وايي: په دې خوله مې ستاسې مجاهدينو د بري دعاگانې کړې، دا خوله ماته غواړم، ماته ښه ده.

په کابل کې یوازې د مرگ او ژوند جگړه روانه ده، خو برى د مرگ په طرف دى، پر هر لورى د مرگ بلا خوله وازه نیولې، په هر واټ، دفتر،کوڅه او کور کې مرگ په کمین کې دى، له هوا د مرگ باران اورېده، له ځمکې د مرگ زرې زرغونېدل ژوندي بنیادمان یې د ځمکې زړه ته کشکول، ډېرى شخصي ودانۍ ښوونځي، دفترونه، دوکانونه، پوځي پوستې گرځېدلې، راکټونو، ماشینگنو او کلاشینکوفو د مرگ ویر غړولو ته خپلې خولې خلاصې کړې دي.

کابل کې د هرڅه کاختي او قیمتي ده، یوازې د وینو او سرونو ارزاني او د مرگ پرېماني ده او هغه څه چې بې پیسو او بې قیمته پیدا کېږي، د توپونو مزایلو، راکټونو او ماشینگنو ډزې دي، چې د ځوانیو او ژوند لو یې گډ کړى دى.

خلک د جگړې بېگناه قربانیان په کورو او کوڅو کې ښخوي، کابل هدیره گرځېدلې، د سرې میاشتې عمله او امبولانسونه کاریزمیر کې ځغلي...

بله پرېماني په کابل کې د لیډرانو د عکسونو ده، داسې دېوال، دفتر، نړېدلې شخصي او سرکاري ودانۍ هوټل او ... نشته ، چې د یوه یا دوو لیډرانو تصویرونه نه وي پرې لگول شوي، د مسعود او رباني تصویرونو خو ښځي قیامت جوړ کړى، سرې به چې په نړېدلیو ودانیو او دېوالونو دغه بې شمېره عکسونه او د کابل ورانۍ او د جگړې په لمبو سوځېدلې ښې ته کتل، داسې برېښېده، لکه دغو کنډوالو خپل مجرمان د خلکو عدالت ته وړاندې کړي او د موست وینتېټ اشتهارونه لگېدلي وي...

د جگړې په لمبو د سوځېدلیو ودانیو په دود وهلو دېوالو لگېدلو

تصویرو د حال په ژبه د دغه واقعیت ترجماني کوله.

کابل کې که څه هم مسعود رباني او مجددي په ارگ، صدارت او وزارت دفاع کې ناست دي، خو له ارگ صدارت او وزارت د باندې د هغه چا حکمراني او پادشاهي چلېږي، چې ټوپک ورسره دی، په تېره هغه خو بې تاجه پادشاهان دي، چې یا یې د شورای نظار کوماندویي دریشي او برگ دسمال پر اوږه پروت دی او یا یې لکه د گلم جمو څوړند برېتونه، گوپیچه او څادر له سره تړلي.

کابل کې د (ملوک گلم جمي) او (ملوک القوماندانی) سیستم چلېږي.

د مجاهدینو حکومت په جوړېدو مکتبونه او پوهنځي تړل شوي، کابل پوهنتون، دارالمعلمین، پولتخنیک، د اجتماعي علومو انستیتیوت دا ټول د یوه او بل تنظیم له خوا اشغال او په نظامي پوستو بدل شوې، حتی د مجددي له خوا د لوړو ښوونو ټاکل شوی وزیر ډاکټر موسی توانا، چې غوښتل وزارت ته داخل شي، د حزب وحدت له خوا شاگرځ او له دروازې بېرته گرځولی و، د کابل تورخم لار د یوه اوږده ځنځیر بڼه لري، چې موټر په کې لکه لوېې وړې کړی پېیل شوي، له پاکستان د مهاجرو کورنۍ ازاد افغانستان ته یوه په بله پسې را روانې دي او له کابله د اسلامي حکومت له مرحمت نه په تېښته کورنیو پاکستان ته د هجرت هوا په سر لگېدلې، له پاکستان نه مهاجر تلل او له کابل نوي کډوال په نا معلوم لوري یوه او بله خوا تښتېدل، هجرتونه او پردېسی په وصال بدلېدلې او د نویو هجرتونو او اوارگیو لړی پیلېدلې، له کابل نه د اوارگۍ په دغه سلسله کې د پخواني رژیم له ائتلاف نه د باندې وزیران، افسران او گوندیان د امپریالېزم هغه ځالې ته پناه وړه، چې د

۱۴ کاله یې د خپلو ټوپکو قلمونو په خوله ورسره جګړه او مبارزه کړې وه.

له ټلوالې دباندې ګوندیانو او هغوی چې د امینیانو ټاپه خوړلې وه، سر او مال خوندي نشوی پاتېدی، محمود سوما، عبدالرشید جلیلي او ځو نورو حقاني صاحب ته پنا راوړه، ده ورته د خوندي میشتېدنې شونتیا برابره کړه، ډېره موده ښاغلو سوما او جلیلي له موږ سره چهلستون کې تېره کړه.

حاجي محمد ځمکنی چې څه موده جمهور رئیس و، له شاهي قصر نه د مهاجرو تر خېمو پورې لار ووهله، سندرغاړو هنرمندانو هم هغه وطن ته له خپلو ربابونو سره کډې وړې، چې کلونه یې په کابل رادیو کې مهاجرو ته د راستنېدو سندرې ویلې.

د امین صاحب دفتر یې پرده دی، چې له افغان کمشنرۍ زیات یې دغه نویو مېلمنو او د چا خبره تعلیم یافته اواره ګانو هرکلی ته غېږ پرانیستې ده.

## د فتحې په محشر کې لړزوونکي انکشافات:

میوند واټ کې یو تن ګلم جمو ودراوه، وروسته له دې چې جېبونه یې تلاشي او تش کړل په واسکټ یې هم مینه راغله، ورته ووېل شول، په ارامۍ خپل واسکټ تسلیم کړه، هغه له واسکټ سره خپل کمیس او پرتوګ هم وایستل او لوڅ لغړ یې خپل لاسونه د کامیابۍ له علامې سره پورته او چیغه کړه، زنده باد اسلام، زنده باد حکومت مجاهدین! خبره تر میوند واټ پورې راغله، د واټ د دواړو غاړو اپارتمانو نه چې یو وخت

د کرايي اطاقونو په توگه استعمالېدل اوس یې د کوټو کړکی ایستلې، د خالي کوټو له کړکیو به د گلم جم ملېشو یو دوه تنه راځرگند شول، داسې لکه دا کوټې او اپارتمانونه یې کمین ځایونه وي، ځار کوي چې که کومه غوړه گوله وويني، هره شپه د هټيو دروازې ماتېدې له چور وروسته یې اور ورته اچاوه.

پل محمود خان او چنداول کې خو د شورای نظار بريڅو دوکانونه، او هټۍ له یوې مخې چور کړي، جگړه د لوټ تالان پلمه هم ده هره جگړه کې یې د تجارانو او دوکاندارانو هم سته ایستله.

په مکروريانو کې د بربښنا د نشتوالي له امله له اپارتمانولاندې د اوبو ځاگان کیندلي، له هر اپارتمان سره پنځه شپږ واړه نغري او ورسره ناستې ښځينه لیدل کېدلې، چې د اور له بلولو سره به یې اوښکې په مخ روانې وې.

وروسته جگړو او لوټماریو دا سیمه له خلکو تشه او تر مودو د ملېشو او جگړمارو سنگرونه گرځېدلي وو.

پاټک او زنځیر د لوټمار ښه سمبول او کلچر گرځېدلی، د نامشروع اقتصاد سرچینه پېژندل شوې، تر دې چې په دې نامه (پاټک واچوه ما واخله) یو ډول توکر راوتلی او نوم یې په صنعتي ډگر کې تر لیرې غزېدلی دی...

## کتابونه په لمبو کې:

په ادارو، دفترو کې چې د مجاهدینو په نامه کومو ببر سرو اړولي، نه یوازې رسمي ریکارډ، اسناد او کتابونه یې د پخلي لپاره په نغریو کې سوځول، له کتابتون او ارشیفونو سره یې هم دغه چلند کاوه، مېزونه، الماري او چوکۍ هم بخاریو کې سوځول کېدې.

د اسلامي حکومت په لومړیو کې وزیرانو مجلس د اطلاعاتو کلتور وزیر ښاغلی صدیق چکري په وړاندیز د کتاب سوځولو په پرېکړه خپله فرهنګ دښمني ټولو ته ثابته کړه.

اسلامي حکومت اعلان کړه، چې باید په تېرو څوارلس کلونو کې چاپ شوي کتابونه وسوځول شي، په دې کې بیا نه ښو ته کتل کېدل او نه بدو ته، نه د ارزونې او تدقیق لپاره ورته څوک وټاکل شول او نه دې ته پام وشو، چې په اصطلاح د کمونستي کتابونو په تور د سوځولو دغه کمپاین له ځان سره نور آثار هم ایرې کولای شي.

د علومو اکاډمۍ دفتر چې د مجاهدینو کومې ډلې په اصطلاح فتحه کړی، د دفتر له کار کوونکو پوښتنه کړې وه، تاسې په دې دفتر کې څه کول، له کارکوونکو یو تن ویلي و، کتابونه مو چاپول، بیا یې پوښتلي وو، قرآن شریفونه مو چاپ کړي، ورته ویل شوي و نه؛ دغه "نه" د کفر او ړتلو څرګند تور ګرځېدلی و.

د جوزا پر ۱۴مه یوه ډله وسله وال یوه کور ته ننوتل، د کور مشر ته یې ویل: ستا لور مو د دریو ورځو لپاره په کار ده، پلار ورته ویل: تاسې لږ صبر وکړئ، زه ستاسې غوښتنه منم، کور ته ننوت، لور ته یې وویل: ژوندی دې ور وسپارم او که مړی، لور چې د عفت مرګ په دغه ژوند

غوره ګاڼه، وويل مړی.

کله چې د هندوانو پر کورو د لوټ تالان هنګامه توده شوه، ځو تنه دفاع وزير احمد شاه مسعود ته ورغلل، په خپل عرض يې د غور هيله وکړه، خو هغه ورته وويل، زه نور څه نه شم کولی، وسله درکولی شم، که له ځانه دفاع کولی شئ.

د افغاني هندوانو پر مال، عزت د تېري خبره تر دې حده ورسېده، چې په ځينو ځايونو کې يې زاړه هندوان سنت (ختنه) کول او ډېر ځله يې د يوې او بلې ډلې نيول شوي افراد زخميان او د جګړې اجساد په باغ وحش کې دوړو لېوانو، پړاګانو پنجرو ته اچول.

د جګړې له پيلېدو به د افغاني سرې مياشتې رييس او منسوبين په خپلو لنډکروزرو کې کاريز مير او پاکستان ته واوښتل، خو د سره صليب کارکوونکو د زخميانو په دارو درملو پسې په واټونو او کوڅو کې يوه او بله خوا ځغاستل، په دغو دريو خونړيو جګړو کې د افغاني سرې مياشتې امبولانس چا ونه وليد، چې کوم زخمي يې روغتون ته رسولي وي، خو د سره صليب منسوبين او امبولانسونه په سختو جګړو کې بېدفاع ښاريان روغتونو ته وړل.

تېری دا چې د سرې مياشتې امبولانسونه د نظار شورا پوځي فعاليتو ته استخدامېدل پوځي توکي مهمات يې لېږدول.

په کابل کې د بي - بي - سي خبريال سوزي پرايس هم خپل موټر کې د جګړې زخميان نقلول، خو د افغاني سرې مياشتې امبولانسونه د جګړمارو په چوپړ کې وو...

په کابل کې هر ببر سری او وسله وال ګلم جم دی، د اسلامي دولت هر برېخې او امنيتي مسوول د لوټ تالان په ښار کې دی.

ډېر څله چې د راکټونو د ډزو په لړه وقفه کې یو سر وهلی، بر وهلی کابلی د یوې ګولۍ قوت لا یموت په خاطر له کوره په وتو ځان اړ لیده، پر اوړه به یې چا لاس کېښود، د کلاشینکوف میل به یې ډډې ته ونیول شو او په دې لړ وخت کې به یې جېب کې د یوې مړۍ هغه ټوله متاع لوټ شوه.

خو د کورنیو چارو وزیر انجینر احمد شاه احمدزی امنیت قناعت ښوونکی ګڼي کابل ښاریانو ته له ډیرې، څښو او مجاهد له کلمې کانګې ورځي.

په کابل کې د غلا لوټ، چور چپاول بازار ګرم دی، نه د چا مال خوندي دی، نه عزت او ناموس.

اویا کلن ارسه سنګ په سرو سترګو کیسه کوله، چې د ده تربور پیاراسنګ ګلم جم وتښتاوه، له څو ورځو بند وروسته یې د ډېرش ملیونو افغانیو په بدل کې خوشې کړ.

مهرسنګ هم چې ګلم جم ملېشو تښتولی د شل زره ډالرو په بدل کې خلاص شو.

سردار سرن سنګ سوداګر د اتیا زرو ډالرو په بدل کې ګلم جم ملېشو له تښتولو وروسته پرېښوده.

رنجیت سنګ چې یو زلمی او روشنفکر ځوان دی او له پاکستان نه یې افغانستان ته مال وړ ووېل، یو ځل اتوګلم جمو ونیولم، داسې پوخ یې ووهلم چې له اخ او ټوخه ولوېدم له دې وروسته یې ټولې پیسې راخخه واخیستې مات او ګوډ یې همغلته پرېښودم.

د ګلم جم او نظار شورا قوماندانان نیول شویو کسانو په پلور، د انسانانو تجارت رامنځته کړی دی.

د لوګر اوسېدونکي حاجي خواني کیسه کوله، چې ګلم جم ملېشو په میوند واټ کې ودرولم، له موټر یې کوز کړم، په جېبونو کې مې چې څه و، هغه یې راڅخه واخیستل، زما د بندي کېدو پر دویمه ورځ یې دوه تنه نور چې یو په کې ځوان او بل خام هلک و راوستل، دواړه ورونه وو، د شپې پر لسو بجو دوه تنه ګلم جم راغلل او دغه هلک یې زموږ له کوټې ویوست، زه پوه شوم چې د څه لپاره یې ویوست...؟

حاجي خواني وايي، د هلک ورور په ژړا شو او ما هم له شرمه خپل مخ په څادر پټ کړ، درې ساعته وروسته چې هلک بېرته راغی، ورور یې پوښتنه وکړه، څو تنه وو؟ هلک په داسې حال کې چې ستونی یې له غریوه ډک و ویل اته.

کابل د سیاسي اقتدار د وزلوبې خونړی ډګر ګرځېدلی، د مجددي، رباني، مسعود، حکمتیار، دوستم، سیاف، مزاري ترمینځ د اقتدار په لوبغالي کې ډز او غپ روان دی، خو سر کاري راډیوتلویزیون د مرګ ژوبلې خبر نه لري، خبر یوازې د مسعود، رباني، مجددي لیدو کتو او ترفیعاتو لستونه دي، چې په لوستلو یې د خوارکي نطاق په خوله کې لاړې وچې شي.

د بېګناه ښاریانو یرغمل نیول، بېله دې چې د حزب وحدت، شورای نظار او اتحاد له ډلو سره تعلق او تنظیمي تمایل ولري جریان لري، کله به چې دغو ډلو په خپلو مینځو کې ګوتې واچولې، هغوی چې د څېرې، ژبې او قام له مخې له بلې ډلې سره ورته والی درلود وژل، پوزې او غوږونه یې پرې کول او په سرونو کې یې مېخونه ټک وهل، ځکه خو په کابل کې د ګرځېدو لپاره باید سړي څو کارتونه او تذکرې له ځان سره لرلی وای، له څو څېرو او نقابو یې له مخالفو ډلو سره د مخامخ کېدو

پر وخت استفاده کړې وای.

د جمعیت مطبوعاتي انجمن کمپوزر ما سره روان و، له زمبق طلايي هوټل سره چې جمعیت د خپلې دارالانشا دفتر گرځولی، د شورای نظار یوې پوستې له دې کبله چې پوزه یې پیته او سترګې چوغې وې وګرځاوه، خو د کارت له لیدلو وروسته یې پرېښود، د پوستې ساتونکو ویل، حزب وحدت یې ډېر کسان نیولي، اوس د هغوی په مقابل کې هزار ګان نیسو.

په کابل کې دولتي ترانسپورت په ټپه دربدلی، خو د پوځي مصارفو دا حال دی،چې وزارت دفاع هر ولایت او ولسوالۍ ته د فرقو تشکیل منظور کړی، هر قوماندان ته یې دومره پیسې په رشوت کې ورکولې، چې په موټر کې یې په لېږدولو پورې حیران وو.

احمد شاه مسعود یوازې دفاع وزیر نه دی، هرڅه دی، صدر اعظم، جمهور رئیس او ښاروال، په هر وزارت کې یې واک او اختیار چلېږي، د والیانو تقرر، د سفیرانو ټاکنه د ولسوالانو مقرري، ولایتي اداري وېش دا هرڅه ده بیک جنبش قلم سره لاندې باندې کېږي...

کله چې مسعود غوښتل د خپل زړه سرې د روغتیا وزارت پر یوه مهم پوست وټاکي، د روغتیا وزیر ډاکټر نجیب الله مجددي ورسره موافق نه و، خو مسعود ویل، مه سر پدرش ری نزدیم ای خو بچه ایش اس...

## د تاریخ پور:

کابل د قیامت نندارہ وړاندې کوي، قاتلان، لوټماران، مجرمان، جنګي بدغوني اوجهادي بدماشان د مرګ په ویش بوخت او د لوټ تالان په مسابقه لګیا دي...

د خلکو پر ژوند مال او برخلیک یې قبضه ټینگه ده...

جگړه مارو خپلو کې نه، د خلکو او هیواد پر ضد جگړه غځولې... د تاریخ پر وړاندې یې وسله پورته کړې، د تاریخ د دښمنۍ پور یې پر غاړه دی.

د ملي موزیم اثار چې څه ناڅه د حفیظ الله امین وخت کې د لېږد له امله زیانمن شوي وو، د مجاهدینو له برکته د لوټ تالان کومې ته په غورځېدو د جگړو خوراک شول...

که د امین وخت کې بلې ودانۍ ته د لرغونو اثارو بېړنی لېږد ځینې اثار زیانمن کړل، مجاهدینو پرې د لوټ تالان هغسې قیامت راټیټ کړ، چې زموږ له لرغونو تاریخي آثارو جنرال نصیر الله بابر، مولانا فضل الرحمن او نورو پاکستاني مقاماتو د خپلو ماښو ځانگړي موزیمونه ورغول او د دغو اثارو د قاچاق لړۍ یې تر اروپا او غرب پورې وغځوله...

په دې توگه د افغانستان د لرغونو اثارو پېر، پلور او قاچاق یو ځانگړی نامشروع اقتصاد رامنځ ته کړ... پر دې سربېره یې د ناقانونه کیندنو سیالي هم وغوړوله...

د پېښور مالگې منډيي مارکیټونه چې له دې وړاندې د بدخشان او پنجشېر د لاجوردو له سوداگرۍ ځلېدلي وو، د لرغونو اثارو تجارت په ټوله نړۍ مشهور کړ...

ځکه خو د ملي موزیم د فتحه کولو خونړۍ جگړې وغځېدې، د تاریخي آثارو د غلا او قاچاق بېلا بېلې مافیایي کړۍ پر هېواد راوختې... دغه ناولی هوس دومره دود او خپور شو، چې نه زیارتونه روغ پاتې شول نه نورې زړې تاریخي ودانۍ او قبرونه- د وزیر محمد اکبرخان تومانچه، د خوشال خان ختک ټوپک او داسې نور تاریخي افتخارات لوټ شول... ان چې کندهار کې یې د مبارکې خرقې د غلا ناکامه هڅه

هم رامنځ ته کړه...

تر دې چې د جعلي لرغونو اثارو د دندې په غوړېدا یې ډېر په دغسې تجارت دېواليه کړل...

پر کابل سربېره ټول هېواد کې د لرغونو اثارو د پېر، پلور کيندنو او قاچاق گرځنده شبکو د تور مارکيټ لمن خپره کړه... جعلي پيرانو، ملايانو، کوډگرو او نجوميانو دکانونه پرانيستل، تر ځمکې لاندې تاريخي آثار يې د ځينو نښو له مخې د ډبل فيس په مقابل کې ښودل... دغو کيندنو کې به چې کله کوم شی وموندل شو، اوازه به يې تر لېرې خپره شوه... په دې توگه غونډۍ، زړې کلاوې، زيارتونه، قبرونه ان پخواني جوماتونه به دغو اثارو پسې نړول کېدل...

## يواځينی اتفاق:

مشران يوازې د ښځينه وو پر ضد هلو ځلو کې متفق دي، ښځې او نجونه د ضروري کار لپاره هم د باندې نه شي وتلی، دوی هر چېرې چې په ښار کې ښځې ويني، نو په دومره ځير او تعجب ورته گوري، لکه په سترگو کې يې خوري، خو له دغه ټول ضديت سره به ډېر کم داسې وي، چې دوې درې يې نه وي په نکاح کړې...

د مجاهدينو حکومت وزيران او رئيسان د وزير اکبر خان، خوشال خان مېنې نوي ښار او مکروريانو کورونو پسې ځارو دي.

دغو ځايونو کې چې کوم کور خالي گوري، د وخته يې پيره دار پرې درولی وي، د چا چې د نظار شورا حکومت کې واسطه او وسيله نه وي، پر کور يې د خېټې اچولو لپاره په يوه بله پلمه وژني، او کور پرېښودو ته

يې اړ کوي.

ډېرزړو وحشي وسله والو د صالح محمد زيري کورنۍ د معصومو ماشومانو په ګډون ((غالباً)) په همدې موخه شهيدان کړل...

په خوشال مېنه، نوي ښار، وزير اکبر خان مېنه... کې چې په نقشه او ماستر پلان کې ځينې ځايونه د پارک، جومات، کلينک، ښوونځي لپاره ځانګړي شوي، د اسلامي حکومت علمبردارانو په څو اوونيو کې دېوالونه ترې چاپېر کړل د ښاروالۍ له نقشې او ماستر پلان پرته دولتي ځمکې وويشل شوې، ښاروالۍ ته له جمهوري رياست امر شوی، چې د وزير اکبر خان مينې او نوي ښار د کورونو د پېر او پلور قوالې د دوی له خبرتيا او امر پرته نه شي تېرېدی.

لومړيو پنځو مياشتو کې زمانخان کلا کې ۳۵۰۰ نومرې، رحمان مېنه کې ۳۰۰، وزيرآباد، خيرخانه، وزير اکبرخان، خوشال خان، مېنو کې ۱۰۰، ۱۵۰ او ۱۶۰ د ځمکو نومرې وېشل شوې. کورونه او اپارتمانونه چې کور جوړولو وزارت وېشلي له دې، دپاسه ښودل شوې...

انټرکانټيننټل کابل، اريانا او نور دولتي هوټلونه له يوې مخې د جمعيت او نظار شورا په مجاهدينو ډک دي، په يو نفري کوټه کې پينځه شپږ چريکي بسترې غوړېدلې.

هېواد او انيس لکه مخکې مو چې وويل: داسې چاپېدل چې له رباني سره د ملاقاتونو له خبرونو او د مبارکيو له پيغامونو پرته يې څه نه لرل، عجيبه، لا دا چې د اشرارو د ځپلو يو نيم خبر اوس هم په کې خپرېده، د يوه خبر عنوان کې راغلي: په هرات کې د يوې برياله حملې په نتيجه کې ۱۲۰ تنه اشرار وځپل شول او ۱۵ تنه مجاهدين شهيدان شول، د

مطبوعاتو، راديو، تلوېزيون ژبه فارسي ده، ايله د شپې خبرونو کې پښتو د څو دقيقو لپاره هغه هم ژباړل شوي متن مخه موندلی شوی.

عجيبه دا چې په کابل کې به د سختو جګړو او درنې مرګ ژوبلې، په رابطه مطبوعاتو، راديو تلوېزيون کوم خبر نه درلود، يوه ورځ استاد رباني په دې رابطه وويل: کله چې کوم کوچنی ماشوم يا باد او شمال د کوم اپارتمان يوه نيمه هينداره ماته کړي، دوی غوغا جوړه کړي، چې داسې شوي او هغسې شوي، د ده پر وړاندې د زرګونو انسانانو وژل، بې کوره کېدل او د کابل ټوله ورانې د يوه اپارتمان د يوې نيمې هيندارې هومره ارزښت درلود.

د مجددي له خوا قوماندان عبدالحق د کابل امنيه عمومي قوماندان وټاکل شو، خو حاجي عبدالحق چې واکمنه دستگاه د نا امنی، لوټ تالان سرچينه ليده، دغه دنده ونشوی منلی.

راديو او مطبوعاتو د دې پر ځای، چې د جګړې په سختو شرايطو کې خلک له پېښو خبر کړي او يا ورته د ژغورنې لارښوونه او معلومات ورکړي، يوازې کلېشه يې او تکراري جهادي ترانې خپروي، د عبوري حکومت لپاره چې د حل او عقد په نامه کوم کمسيون اعلان شو، هغه خپله د جمعيت تنظيم يو داسې ترکيب دی، چې مصوبې يې سره له دې چې له حقوقي او مدني اړخونو زيات نواقص او تناقضات لرل، د جمهور رئيس لپاره پينځه، قيادي شورا ته د پينځه لس فيصده امتياز يوه خندنی ډرامه تمثيل کړه، په کومه سيمه کې چې د اشخاصو په ټاکنه کې مشکلات پېښېږي، د قيادي شورا مشر به له هغه سيمې په خپله خوښه نماينده انتصابوي، پر رشوت سربېره د څوکيو ځمکو، اپارتمانو او نورو... وېش داسې لوبه جوړه کړې چې د بې پشتوانی پيسو په

چاپولو یې افغانۍ په صفر کې ضرب کړ.

په کابل کې همدغه خبره ګرځي راګرځي، چې فلاني ته یې لس زره ملیونه افغانۍ ورکړې او فلاني ته پنځوس زره لکه.

هره ورځ د غونډو او څو فرقو تشکیل منظورېږي او مصارف یې د څو تنو جېبو ته لوېږي، حتی په یوه ولایت کې څو تنو ته د والي په توګه د مقررۍ فرمانونه او د فرقو تشکیل او لګښتونه ورکړل شوي دي.

استاد رباني د اساسي قانون کمیسیون جوړ کړ خو داسې کسان یې پکې راغونډ کړي، چې ځینې یې د قانون لیکنې اسلوب او میتود پرېږده د قانون په معنا او تعبیر هم سم نه پوهېدل. کابل کې هم د حکومت د واك دایره تر ارګ صدارت او وزارتونو تر ودانیو پورې راټوله ده، پر زاړه ښار، شوربازار، شاه شهید، لاهورۍ دروازه، میوند واټ د دوستم، جمال مېنه، کلای شاده، پل سوخته، دربیمه کارته تردشت برچي د حزب وحدت امپراتوري غزېدلې، کمپنۍ، پغمان، ارغندۍ د استاد سیاف د پادشاهی قلمرو ګرځېدلی.

پر چهار اسیاب سید نور محمد شاه مېنې هوتخېلو بګرامیو د حزب سلطنت ټینګ دی، پر ختیز استقامت کله چې کوم قوماندان وغواړي نو په کابل کې یې په واکمنو توره شپه راوستلې او په اونیو اونیو یې بریښنا قطع کړې وي، د رادیو د لېږې څپو یوه دستګاه داسې ده چې کله هم پر چا د رادیو کومه خبره بده ولګېږي، نو د یوه پېچ په تاوولو د حکومت په خوله لاس کېږدي.

په ولایاتو کې د مرکزي حکومت له خبرتیا پرته بهرنۍقونسلګرۍ پرانیستل شوې، خارجي هېوادو سره اړیکې ټینګیږي، او له مرکزي حکومت پرته سفرونه ترونونه ترسره کېږي.

د کابل روغتونونه ډېری د اقتدار جګړو کې نړېدلي او زیانمن شوي او یو دوه چې فعال دي د برېښنا، درملو او تسخین له وسایلو بې برخې دي چې د دغسې یو اوږدې او خونړۍ جګړې د تېپیانو او قربانیانو لاسرسی ورته نه شي کېدی.

د افغانستان په تاریخ کې د لومړي ځل لپاره په پلخشتي جومات کې د اوداسه لپاره د اوبو پلور او پېر رامنځته شو، د ښار په جوماتونو کې د هر لمانځه پر وخت د اوداسه اوبو خرڅولو بازار لګېږي.

د کابل صنعتي سیمې د ماشینونو او خامو موادو له چور تالان پرته د جنګلك فابریکه چې د هېواد په کچه لویه صنعتي فابریکه وه، د جګړو او لوټ تالان له امله کنډواله ګرځېدلې.

د زیاترو وزارتونو ودانۍ د کرایي کوټو بڼه نیولې چې د وزیر خپلوان کلیوال، ټوپکوال او دوستان یې کاروي، یوه ورځ به دې چې کتل یو تن د جمهور ریس معاون معرفي کېده بله ورځ قاضي القضات او بله یې والي او بل څه، نن به یو وزیر و سبا به یې پرې بل کودتا کړې وه او بله ورځ به یې وزارت خپل بل ملګري او خپلوان ته پرې ایښی و.

د پوځي افسرانو خو دا حال و چې د ستر جنرالانو او ډګرجنرالانو شمېر له زرګونو هم اوښتی، په ظاهر شاهي حکومت کې د افغانستان په اردو کې یو ستر جنرال او څو جنرالان وو خو اوس دا شمېر له زرګونو اوښتی، د دنیا په عسکري تاریخ کې د نړۍ په هېڅ یوه هېواد کې د جنرالانو دومره شمېر څوك نه شي په ګوتو کولی، خو د دغو جنرالانو او پوځي افسرانو بیا دا حال و چې واحد یونیفورم یې نه درلود، چابه په خولیو د کمونستي رژیم نشانونه ټومبلي و او چا د شاهي رژیم او ځینو د داود خان جمهوریت.

فرقې، غونډو نه يو پر بل پسې ولايتونو ولسواليو او افرادو ته منظورېږي، خو پوهنتون، ښوونځي او مدرسې تړل شوي...

د ثور له ۵ مې وروسته چې د تحريکي ورونو او په اصطلاح مطرح جهادي قوتونو او موثرو تنظيمو ننښتې رواني دي، د کابل په زرګونو بې دفاع ښاريان وژل شوي او ټپيان شوي دي، کابل د اقتدار د خونړۍ جګړې د هوس قرباني شو، له وړو جګړو پرته تر اوسه دريو خونړيو جګړو کابل په يوه هيبتناکه کنډواله اړولی دی.

هره جګړه د اسلام او جهاد تر نامه لاندې کېږي، غلا، لوټ، چور، د خلکو پر عزت او مال تېری پر ولس د ګوليو ږلۍ او د بمونو باران د اسلام په لار کې د اسلام لپاره توجيه کېږي، د جهادي اهدافو تحقق ګڼل کېږي هره ډله د اسلام او جهاد د دفاع کاڼي پر سينه وهي او هره يوه د حق او خپلو اعمالو د مشروعيت ادعا کوي، له همدې ځايه ده چې خلك يوه دردناك غوراوي ته ولاړ دي.

## د کابل جمعه:

د جمعې ورځ د وزير اکبر خان جامع جومات شاوخوا د لوکسو موټرو يو محشر جوړ دی موږ هم د موټرو له دې بيروبار تېر او جومات ته ننوتلو، په جومات کې وزيران او لوړ رتبه افسران لمنځونه کوي د کورنيو چارو وزير انجينر احمدشاه احمدزی، د اطلاعاتو او کلتور وزير صديق چکري د روغتيا... او وزيران له خپلو برېځو سره پر جومات ورمات دي.

د جمهور رئيس مرستيال مولوي مير حمزه چې د سپين پاچ پګړۍ پر

سر او وړینه چپنه اغوستې نن ځان د جومات د یوه خطیب په څېره جوړ کړی دی.

مولوی میر حمزه پر منبر ودرېد لومړی یې کابل له دې زیات عذاب مستحق وګانه او بیا یې د مجاهدینو د همت او قربانی په ستاینه پیل وکړ چې دوی ته یې په وینو لړلی او سرېخوره تاج او تخت ګټلی، ده یوازې د مجاهدینو په تېرو قربانیو او افتخاراتو شخوند وهلی شوی، چې له فتحې وروسته خو ده هم د اسلامي حکومت لاسته راوړنې له عذاب سره اندول ګڼلې.

مولوی میر حمزه د وزیر اکبر خان مینې جومات او منبر له توپکیانو د دفاع د سنګر په توګه داسې استعمال کړ لکه په جومات کې نه بلکې د ګلخانې مانۍ په کومه سیاسي غونډه کې وینا کوي، له جومات نه د راوتلو پر وخت سوالګرو یو بل قیامت راکوز کړی و، تور سرې، ماشومان او بوډاګان به په هر هغه چا ورتول وو، چې په څېره کې یې د اسلامي حکومت او واکمنۍ غوړې نښې لیدلی، خو مولوی میر حمزه، انجینر احمدشاه، چکري او نور داسې ترې خپلو لنډ کروزرو ته وختل چې هغوی ورته خپل شلېدلي ګرېوانونه او سپېره مخونه هم ښکاره نه شوی کړی.

مولوي جلال الدین حقاني خپلو باډیګارډانو ته یو یو بنډل روپۍ ورکړې چې په سوالګرو یې ووېشي هغوی هم هر یوه ته ۱۰۰۰۰/۱۰۰۰۰ افغانی ورکړې.

تر استاد سیاف پورې د کابل جوماتونو دورانولو او قبلو سمولو خبره هم کېږي، د ده په وینا د بتخانې پر ځای هله د سمو قبلو جوماتونه جوړېدی شي چې بتخانې له بېخه ونړول شي...

د کابل د سوځېدا او نړېدا دغسې خوب جنرال اختر عبَدالرحمن هم لیدلی و خو دی خپله د الوتکې غورځېدا کې لولپه شو...

## د کابل دار:

دوه ځله کابل کې نامعلوم کسان په دار وځړول شول، خلکو د قاتلانو او وطن خرڅوونکیو... د محاکمې انتظار کاوه، خو د دوی پر ځای څو ناپېژندل شوي کسان بې له دې چې ولس يې د جرم له نوعيت او محاکمې له جريان يې خبر شي غرغرې ته راوستل شول.

په دې هکله د يو دردمند شاعر شعر چې دعوت جريدې په ۲۴-۲۳ گڼه کې خپور شوی، رانقلوم:

سرکار په قار شو دار تيار شو څوك په دار شول چا ونه پېژندل
پــه پټــو ســترگو مېلمانــه د زرنگــار شــول چــا ونــه پېژنــدل
نه کوم قـاضي محاکمـه کـړل نـه تپوس نـه تـرې پوښتنه وشـوه
پـه پټـو خولـو پـه پټـو سـترگو را احضـار شـول چـا ونـه پېژنـدل
محاکمــه وي علنــي نــورو ملکــو کــې دار يــې پــټ غونــدې وي
خــو دوی پــټ محاکمــه پــه دار اظهــار شــول چــا ونــه پېژنــدل
د عمــري عــدل پــه نــوم د ســتم دار گــير کــړل ويــې نيــول
د رياکــارو د لفظــي عــدالت ښــکار شــول چــا ونــه پېژنــدل

## خپلمنځي غوسه او د استاد سياف «نه»:

له پلخشتي جومات کوز د مرادخانيو پر لور د گلم جم مليشو ډله ولاړه ده، د خلکو له سرو پکولونه اخلي، لومړی يې تر پښو لاندې کړي،

بیا بولې پرې وکړي او سیند ته یې غورځوي.

پر دې ورځ کابل سیند پکولونو په سر اخیستی له دې وروسته د پکول بازار سوړ شو.

سیاف چې یو وخت یې ټینګار کاوه چې د مجاهدینو په لاس د یوه سوچه حکومت له ټینګښت پرته به په هېڅ طرحه او نظام قناعت ونه کړي، د صدارت په هیله او تلوسه له ټولو نرمه او ټیټه غاړه وړي.

ده چې د اوارې هر وړاندیز په ((نه)) رداوه، د نه منلو پر دریځ دومره ټینګ و، چې یوه لیکنه کې یې خپل ((نه)) د اسلام په تله داسې تللی... «د افغانستان د قضیې په ارتباط وینا کې مطرح وړاندیزونه او طرحې چې موږ ورته ((نه)) ویلي دادي:

۱- کمونستانو سره د ناستې ولاړې یا د افغانانو د داخلي خبرو اترو له لارې د افغانستان د قضیې حل.

۲- مختلط او ګډ حکومت جوړول.

۳- بې طرفه حکومت جوړول.

۴- براډبېس یا د پراخ بنسټه حکومت جوړول.

۵- روسانو سره د افغانستان د راتلونکي په باب خبرې کول.

موږ د غو ټولو ته ((نه)) ویلي، ((نه)) ورته وایو، چې دا د اسلام حکم دی...»

د ملګرو ملتونو استازي بنین سیوان او د پاکستان جمهور رئیس غلام اسحق خان ګډه اعلامیه کې خپله حل لاره له اورګاډي سره تشبیه کړې وه، چې د افغان رهبرۍ د حل اورګاډي روان دی چاته نشي درېدی، که څوک پاتې شول پاتې به وي. سیاف صاحب وویل دا ګاډی به هغه وخت کابل ته رسېږي چې زما په ککری تېر شي. په حقیقت کې اورګاډی

تبدیل شو، ټولو په کې ځانونه کابل ته ورسول، یواځې بینن سیوان بېچاره چې میاشتې میاشتې یې کچکول پر غاړه د یوه او بل دروازه ټکوله په ستیشن کې پاتې، شو د سیاف صاحب له همدې موقف فکر کېده، دی به پخپلو اصولو سوداګري ونه کړي، خورا ماهر سوداګر وخوت.

انجینر احمدشاه احمدزي په یوه مرکه کې وایي:

از وزارت دفاع خواستم تا قوماندانهایش رابه وزارت داخله معرفي وبفرستد، از قبیل فرقه ۸۰ مربوط سید منصور نادری، لوای ۷۰مربوط جنرال مومن فرقه ۵۳ مربوط محترم جنرال عبدالرشید دوستم، به انها ابلاغ کردم که شما از همین ملت و مجاهدین هستید... خو په همدې مرکه کې د کابل جګړو په رابطه وایي: ((څرنګه چې نامریي لاسونه په حرکت کې دي او کمونستان فعال دي، په دغو جګړو کې ډېر رول لري څکه کمونستان ډېر منظم او فعال دي))

بیا نامریي لاسونه د چا او هغه کمونستان څوك دي چې منظم، فعال او په دغو جګړو کې نقش او رول لري....؟

له دې سره جوخت انجینر صاحب دا هم په ډاګه کړه: کاملاً واضح است که امروز در دولت پرچمی ها هستند خصوصاً در وزارت دفاع جنرال های پرچمی به همان قوت خود باقی اند.

عجیبه او حیرانوونکې خبره د حل او عقد شورا پر سر ده، مولوی خالص، پیر ګیلاني او مجددي سره له دې چې د حل او عقد له ناقص تدویر سره یې بائیکاټ اعلان کړی، شورا او حکومت یې له قانوني او ملي صبغې او پشتوانې بې برخې ګڼه، خو په همدغه غیر قانوني حکومت کې یې وزیران برخه وال دي.

مزې د دوستم دي چې لومړی یې مجددي مسعود او رباني د وکیل

مدافع په توګه استعمال کړل او له دوی یې د خپل اسلامیت قوالې واخیستې، له مجددي یې د ستر جنرالی له رتبې سربېره د خالد بن ولید لقب هم ترلاسه کړ.

پاکستان- ایران سعودي، ترکیې او نورو بهرنیو قوتونو تبلیغاتي ډګر کې د دوستم د پوځي او سیاسي ځواك په پیاوړتیا کې خورا مرسته وکړه، هغه وه چې حکمتیار هم دغې مسابقې ته ودانګل... که نه د دوستم نظامي ځواك په خوست کې ښه پته ولګېده چې څنګه یې زرګونه ملیشې د مجاهدینو پر وړاندې له شرمېدلې ماتې سره مخامخ شوې.

## د پرون زندان- د نن امان:

کابل کې د جګړې له امله په سلګونو کورنیو د څرخي پله زندان کې پناه اخیستې، څرخي پله زندان ته نن د تحریکي ورونو او موثرو مطرح جهادي قوتونو له اخ او ډب او خونړیو جګړو د ژغورنې په اسره سلګونو کورنیو پناه وړې او په دغه خاموشو دهلیزونو کې یې د ژوندي پاتې کېدو د نعمت ورکه لټوله.

ډېرو داسې کسانو هم دلته د ژوند په اسره پناه اخیستې، چې پرون دلته د مرګ او وحشت په منګولو کې ایسار وو خو نن چې هغه وحشت د کابل کوڅه کوڅه جاده جاده او کور کور نیولی، د څرخي پله زندان کې د ژوند په ورکه پسې راغونډ دي...

دا به د وحشت انتها وي چې وګړي یې زندانو ته پنا یوسي.

## په ارگ کې د اقتدار یو بل څپرکی:

ډگروال صاحب... له استاد رباني سره د ملاقات وخت اخیستی، ۲۰/۴/۱۳۷۱ نېټه له غرمې مخکې ۱۰ بجې دې، جنرال رحمت الله ساپی هم پر دې ورځ راغلی، د روانېدو پر وخت وردگو کې د جمعیت عمومي قوماندان مولوی محمد شیرین شجاعت او قوماندان محمد صادق خان هم چهلستون ته راغلل.

حاجي خلیل الرحمن د استاد رباني د ملاقات خبره وکړه دوی ویل موږ به هم درسره ملگري شو.

د موټرو نسبتاً یو وړوکي کاروان له چهلستون حرکت وکړ د مولوی محمد شیرین شجاعت او قوماندان محمد صادق خان پر موټرو د جمعیت شنو بیرغونو د پړق خندا جوړه کړې وه.

لس نیمې بجې وې چې د ارگ مخې ته ورسېدو، له یوې لنډې پوښتنې او څو خبرو وروسته یې د تلو اجازه راکړه.

موږ یې لومړی هغه ځای ته بوتلو چې دوی ورته قصر نمبر (یك) وایه، په سالون کې یو دبرین گرد مېز ایښی چې لاجورد په کې حکاکي شوي او پرې کښل شوي:

از طرف وکلایی دوره سومین لویه جرگه ۱٦ سنبله ۱۳۰۷.

خو له نورو مېزو د لاجوردو گلان او انځورونه توږل شوي، تر جمعیت پورې مربوط یو پوځي افسر موږ ته د دغې ودانۍ په رابطه د معلوماتو په ورکولو پیل وکړ خو د ده ټول توضیحات د حبیب الله کلکاني په واکمنۍ مربوط و، چې په دغه ځای کې داسې وشول او داسې یې وکړل.

نیم ساعت مو دلته په انتظار تېر کړ، خو له استاد رباني سره د ملاقات له نعمته بې برخې وو، له نیم ساعت وروسته احوال راغی چې استاد د گلاخانی مانۍ کې دی تاسې به هلته مهرباني وکړئ.

لس پینځلس دقیقې تر گلخانې تگ ونیولې، د گلخانې مانۍ په لاندیني پوړ کې یو اوږد مېز ته گنې چوکۍ پرتې وې موږ شاوخوا کېناستو، مخامخ چوکۍ د استاد لپاره وه، د هغه یوې خوا ته جنرال ساپی او بلې ته حاجي خلیل کېناستل په څلورمه چوکۍ زه کېناستم څو دقیقې وروسته استاد رباني تشریف راووړ، ټول ودرېدو، ده چې له جنرال ساپي او حاجي خلیل سره روغبړ وکړ، پر څوکۍ کېناست او له نورو سره یې د لاس په اشاره ستړي مشي پیل کړل، ماته چې وار راورسېد په خندا شو ویې ویل له تاسره خو روغبړ کوم، له ځایه ولاړ شو ما هم اتومات ځان ورورساوه روغبړ مو وکړ.

مولوی محمد شیرین ورته ویل: په ده خو ډېر زیات تکلیف تېر شوی، استاد وویل: خبر یم بیا یې مخ راواړاوه پوښتنه یې وکړه اوس څنگه یې؟ ما ویل ښه یم...

خو په دې پوه نشوم چې استاد په ما تېر شوی تکلیف کومه ناروغي گڼله چې د جوړ ناجوړ پوښتنه یې کوله او یا هم په کیسه خبر و؟

جنرال ساپی د حقاني صاحب په نمایندگۍ خبرې شروع کړې: تاسې په نامساعدو شرایطو کې له مسئولیته ډکه وظیفه پر غاړه واخیستله واقعاً دا ډېر حساس او نازك شرایط دي خلك ډېر څورېدلي او ټول د سولې او امنیت لېوال دي، هیله ده تاسې دا عهده په خلوص نیت اشغال کړی، خدای دې د امنیت او سولې راوستلو په لار کې موفق او سر خرویه لره.

موږ ستاسې خط مشي واورېده که څه هم له هغې مطمئین شو خو تېرو تجربو موږ ډېر شکمن کړي یو، الله تعالیٰ دې تاسې ته توفیق درکړي چې دین وطن او خلکو ته د واقعي خدمت مصدر وګرځي.

له دې وروسته استاد رباني خبرې پیل کړې: زما ورونو د محترم مولوي حقاني د جبهاتو مجاهدینو محترم خلیل جان، جنرال ساپی صاحب، شهرت ننګیال، السلام علیکم.

لکه تاسې اشاره وکړ دا ډېر ستر مسوولیت او درون امانت شو، موږ په ډېر عاجزۍ دا خواست کوو، چې الله تعالیٰ موږ ته توفیق ورکړي.

له موږ سره ستاسې تائید ضروري دی، موږ ډېر مشکلات او پرابلمونه لرو ځکه تر اوسه لا مرکزي اداره وجود نه شته، مرکزي حکومت ختم دی په بېلا بېلو سیمو کې بېلا بېلې ادارې منځ ته راغلې او ډېر لوی بدبختي روان دی، مفسد کسان او خارجي هېوادونه لاسوهنه کوي، ځینې هېوادونه بې له دې چې دیپلوماتیکي اصول مراعات وکړي لاسوهنې کوي، ځینې د دې لپاره چې سیاسي پوزیشن لاس ته راوړي بې نظمي رامنځ ته کوي.

استاد وویل: په دې چوکۍ او موقف کې له رنج او تکلیف پرته بل څه نشته، بې له بدنامۍ او کنځلو بل څه نشته.

ده وویل: د حقاني صاحب په هکله دا وایم چې د ده د جبهې یو ستر امتیاز دا دی چې همېشه د سولې ټینګښت او اختلافاتو د ختمېدو لپاره پیش قدم شوی او په دې لار کې یې ډېر تاوانونه زغملي او د مرګ له خطر سره مخامخ شوی خو دا لوی افتخار او عزت دی چې دوی همېشه د مسلمانانو په منځ کې د اتحاد راوستلو کوښښ کړی چې دا د مومن خصلت دی.

استاد رباني له دغو لنډو خبرو وروسته پاځېده خو د تلو په وخت کې يې وويل تاسې به ډوډۍ همدلته خورئ، بيا يې چاته په دې باره کې خبره وکړه او له سالون ووت، موږ څه وخت انتظار وکړ که د ارگ ډوډۍ مو نصيب شي، خو څه درك معلوم نه شو، ځرنگه چې د لمانځه وخت و، د اوداسه تکل مو وکړ خو د اوبو درك نه و، کابو يو ساعت مو ډوډۍ ته انتظار وکړ په دې کې جنرال ساپی د ظاهر شاه وخت کې د ارگ د نظم او نسق په رابطه خبرې کولې، ده وويل ارگ هغه وخت ارگ و، چې ظاهرشاه پادشاه و، مولوي شيرين ته چا وويل ته خو دې خلکو ته نژدې يې له خپل اثر او رسوخ کار نشې اخيستى؟ هغه مجبور شو له ځايه پاځېده دلته دوه تنه زموږ د وطن ځوانان په برگو دريشيو کې غوړ غوړ گرځېدل دواړه د جمعيت له نظامي مستعجل کورس فارغ شوي، خو دايې له خپل شان سره مناسب نه گڼله چې له موږ سره پوښتنه او ستړي مشي وکړي، مولوي شيرين دوی ته غږ کړ چې دا خلك مو له کاره وايستل که ډوډۍ نه وي، چې ځو، دوی ويل غوری نه شته صبر وکړئ.

يوه نيمه بجه ډوډۍ راورسېده د وريجو يو يو غوری يې (۴) نفرو ته کېښود د پاسه پرې تور بانجان پراته و، خو د وچې ډوډۍ درك نه و، له ماسره غوري ته عبدالعزيز او يو بل سړی ناست و، څلور پنځه مړی به مو نه وې کړې چې د غوري له منځه کاکروچو جسدونه رابرسېره شول عبدالعزيز ته مې وويل وخوره د پادشاهانو ډوډۍ.

هغه چې وکتل ډوډۍ يې بس کړه، د لاسونو پاکولو ته اړ شوو يو پر بل له موښلو او ډېرو تېرولو له شاهي ارگ نه ووځو.

جنرال ساپی وايي پخوا هم د ارگ مينيو کې بانجان پلو و، خو داسې نه...

## د سولې ښوونځي کې د علماوو غونډې:

په مکروریان کې له دولتي مطبعې لږ کوز د سولې په نامه د یوه ښوونځي ودانۍ ده، د دولتي مطبعې هغه برخه چې د لینو ټایب او چاپ ماشینونه په کې وو، د راکټونو له امله نړېدلي او سوځېدلي ده.

د سولې ښوونځی له دې مخکې له روسیې د نویو راوړل شویو افسرانو مېلمستون و، په وروستیو کې یې ځانګړی ښوونځي ګرځولی، دلته له هرې کوټې سره یو عصري تشناب او دهلېز موجود دی، ملایانو د عصري تشنابو کار ورکړی... مانا کمودونه یې نړولي ، لوټې، ټېرې، یې په کې غورځولې دي...

د دغې پینځه پوړیزه ودانۍ په لاندیني پوړ کې یو اوږد سالون دی، چې نقشه یې د کنسرت او کنفرانسونو د سالون داسې ده.

دلته د اتحاد علمای افغانستان په نامه د ملایانو سل کسیزه ډله دېره ده، مولانا عبدالله ذاکري چې د کندهار یو ستر عالم او اوږ ژبی مقرر دی، د دوی مشري کوي، که څه هم ده ځان د اتحاد علما مشر نه ګڼه، خو په حقیقت کې په اصلي معنا د اتحاد علما مشر دی.

حقاني صاحب او نور مخور قوماندانان له دوی سره ګډې جلسې لري او د موجوده بحران د حل په رابطه په تفاهم او فعالیت بوخت دي.

د عقرب ۸ مه حقاني صاحب د اتحاد علما او قوماندانانو سره غونډه لرله، څکه خو سهار د سولې مکتب ته ولاړو، په غونډه کې حقاني صاحب او ذاکري صاحب ویناوې وکړې، له یوې اوونۍ دا غونډې رواني دي، د حکومت په قانوني او شرعي حیثیت سخت انتقادونه کېږي، په دې کې د حل او عقد شورا لپاره د غړو د ټاکنې لپاره د

حکومتي کميسيون له خوا په جوړه شوې لايحه او طرز العمل هم نيوکې وشوې، د عقرب ۱۰مه حقاني صاحب د علماوو د يوه هيئت په مشرۍ له رباني صاحب سره ملاقات وکړ.

## بيا هم په ارگ کې:

ملاقات د گلخانې ماڼۍ کې دی، رباني صاحب دا ځل د هغه ستر سالون په ځای د تشريفاتو رياست يوه واړه دفتر کې ناست دی، د تشريفاتو او سکرتريت چارې د امان الله په نامه يوه تخاري ځوان پر غاړه لرلی، ښه سره بلد يو، خو دلته يې په تشو سترگو مشوهم ځان نه زهيراوه.

کله چې هيئت د رباني صاحب دفتر ته ننوت، زه له ټولو وروستی وم، د سترگو مشي پر وخت يې راته ويل، ته له ملايانو سره څه کوې، ته بايد له روشنفکرانو سره اوسې، روغبړ مو وکړ، په کوټه کې زموږ په شمېر ۱۲ څوکۍ ايښودل شوې، چې په وار سره هر يو په يوه يوه څوکۍ کېناستو.

حقاني صاحب وويل: د ولاياتو پر اوضاع له حکومتي واکمنو، قوماندانان مخور او علما ښه پوهېږي، په کومه طريقه چې کميسيون لايحه جوړه کړې، په دې طريقه د کاميابۍ صورت زموږ په نظر داسې معلومېږي، چې امکانات يې ډېر لږ دي، دا داسې ترميم او جوړېدی شي، چې له هيئت سره د هر ولايت يو يو قوماندان، مخور او عالم مل شي، ترڅو حقيقتاً اهل حل او عقد انتخاب کړی شي، د موجوده لايحې له مخې ضرور جنجالونه او کړکېچونه پيدا کېږي.

رباني صاحب وویل: زه به له ورونو سره خبرې وکړم، که امکان ولري له هر ولایت نه یو یو قوماندان او عالم له دوی سره همکاري وکړي، خو حقاني صاحب ورته په ډاګه کړه، چې علماء او قوماندانان نه غواړي، په هیئت کې طفیلي ولاړ شي، د دوی ګډون باید رسمي بڼه ولري او رسمي حق ورکړی شي.

استاد رباني ویل: موږ به ورونو ته پېشنهاد وکړو، امید دی چې عملي شي.

د حقاني صاحب په وینا د شورا غړي باید په واقعي توګه انتخاب شي، داسې چې سبا د اعتراضونو، انتقادونو او مخالفتونو له لارې د شورا حقوقي او قانوني حیثیت جریحه دار نه شي.

د خدای پامانۍ پر وخت ما د خپلې زړې اشنایۍ او کشرتوب په خاطر باید تر ټولو وروستی رخصت اخیستی وی، خو د حقاني صاحب له وتلو څینو ملایانو دا هڅه کوله، څان وروسته او په غوږ غوږ کې له رباني صاحب سره د خپل اخلاص اظهار وکړي.

یو دوو د رباني صاحب غوږو ته خپلې خولې دومره نژدې کړې، لکه مچې سره اخلي، دوی بڼه سره وپسېدل، څو تنو له دوی د زیاتو خصوصي خبرو لپاره څانونه نور هم شاته کړل، هر عالم چې د سولې مکتب په غونډو کې به یې پر حکومت د نیوکو له امله په انتقادونو څمکه لړزوله او د سالون له چت ګردونه خېژول، دلته یې اوازونه داسې غلي او ټیټ شول، چې رباني صاحب هم په مشکله اورېدی شوی، ماته دلته د دوی د هغو ټولو قلقلو او دریځونو ماهیت ښه څرګند شو، په تېره مولوي صدیق الله اخوندزاده او د علماوو اتحاد منشي مولوي سعیدالرحمن خوله رباني صاحب سره داسې د راز او نیاز سلسله

وغځوله، چې سړي ته به شک پیدا شو، چې دا گنې هغه نه دي، چې د سولې مکتب کې یې په دې هرڅه د ناروا تاپې لگولې.

ځکه خو ما د دې لپاره چې د دغو پټو معاملو په مخه کې خنډ نه شم د خدای پامانۍ لاسونه اوږده کړل، رباني صاحب پر هماغه پخواني انداز له یوې سپکې غاړې تازه کولو وروسته وویل، چېرته یې ځه کوې؟

ده غوښتل نور څه هم ووایي، خو علماوو په زړه او سترگو کې ووېرولم، ځکه خو مې په دومره خبره ځان خلاص کړ، هماغه زوړ ملا، زړې تراوې، خدای پاماني مو وکړه او دوی مو خپلو پټو خبرو او پسپسکو ته پرېښودل.

داسې معلومېدل مولوي صدیق الله اخوندزاده، مولوي سعیدالرحمن او یو دوو نورو د څه خاصو رازونو سپړل غوښتل، رباني صاحب مولوي صدیق الله ته وویل، هغه زموږ خبره خو بیا همداسې پاتې شوه، خو مولوي صاحب نه غوښتل دا خبره په دغه محضر کې وسپړل شي، ځکه خو یې ځان نور هم وروستی کړ.

غوښتل مې له ذاکري صاحب سره مرکه وکړم، ده په مجلو کې د تصویرو په چاپولو وترټلم او د دوزخیانو کتار کې یې ودرولم، خو د مرکې په اړه یې وویل، چې لیکلي پوښتنې پرېږده او موږ به یې په حوصله سره ځوابونه ولیکو.

ما خپلې پوښتنې د دوی منشي مولوي سعیدالرحمن ته ورکړې او هغه دوې ورځې وروسته وعده راکړه، خو د یوې هفتې په تېرېدو یې بیا هم په خپله وعده وفا ونه کړه.

مولوي سعیدالرحمن ویل، په دې کې داسې سوال شوی، چې د هغې ځواب د فتوی حیثیت لري، ما پوښتنه کړې وه:

په تېرو شپږو میاشتو کې په کابل کې د مجاهدینو په نامه د مینځته راغلي حکومت شرعي، حقوقي او قانوني حیثیت تاسې څنګه ګڼئ؟

ده وویل که ووایو چې دغه حکومت له شرعي حیثیت بې برخې دی، دا خپله د جهاد اعلان دی او که وایو چې د شرعي حیثیت لرونکی دی، خونه دی.

له همدې ځایه وه، چې ایله دوې هفتې وروسته یې لیکلي ځوابونه راوسپارل او په دې اړه یې کښلي و: په افغانستان کې اسلامي حکومت اعلان شوی، خو اجرات یې شرعي نه دي، ځکه خو پوره اسلامي حکومت نه شو ورته ویلی.

د علماوو ستره غوښتنه حجاب دی، چې تر بلې هرې موضوع په اهمیت او لومړیتوب ورته قایل او ډېر جدي دي، دا چې ښځې له دفترونو ګوښه شي، په داسې حال کې چې په هېواد کې له سره نظام موجود نه دی، د قانون او نظم نښې د دولت په دستګاه او د خلکو ټولنې په مینځ کې نه لیدل کېږي، مرکزي حکومت نه شته چې د خپل قوت او مشروعیت له مخې له دې او هغه کار څوک منع او یا ورته امر وکړي، تر هغې چې یو نظام او قانون رامینځته نه شي، دا ډول ټینګار بې ځایه دی.

دوی باید د نظام مشروعیت او د حکومت قانونیت پامور ګڼلی وای، له بد بخته چې لومړیتوبونه یې نه شوی درك کولای د فرعي مسایلو په شاربلو یې وخت اړاوه...

مانا که مخلوط تعلیم یې بند کړ د ښځمنو په کار یې بندیز ولګاوه تصویرونه چاپ نه شول، بیا دا حکومت اسلامي او شرعي دی، لوټ تالان، غلا ډاکې یې د زغم دي...؟

ماته ذاکري صاحب مجله کې د عکسونو په خپراوي د الهي عذاب یادونه داسې ټکو کې وکړه، چې د واره مې ځان د دوزخ لمبو کې لیده، ځکه خو مې دوه ګنې له عکسونو پرته چاپ کړې.

رفیع صاحب راته د کاغذي پیسو د چاپ کیسه کړې وه، کله چې پادشاه پر کاغذي نوټو خپل عکسونه چاپ کړل، ملایانو د مخالفت غږ پورته کړ، چې دغه پیسې د چا جیب کې وي، لمونځ یې نه کېږي، صدر اعظم محمد هاشم خان غټ غټ ملایان مېلمانه کړل، د قرآنکریم ختم وشو، شاهي ډوډۍ وخوړل شوه، یو یو پاکټ یې ملایانو ته ونیو، دوی پاکټونه جیب کې کېښودل، اذان وشو او په جمعه د ماسپښین په لمانځه ودرېدل، د ټولو لمونځ وشو.

زه پوهېدم دا وړې نه شي شړۍ کېدی، ماته په ۱۳٦۱ کال کې د داعیونو علماوو هغه حرکت یاد و، چې ظاهراً د اتحاد سبب وګرځېد او په اشرفیه جومات کې په قرآنکریم، بخاري شریف او بیا بیت الله کې د مشرانو په لوړه منتج شو، خو په ریاستونو، څوکیو او مادي امتیازاتو د داعیانو ښکېلتیا د تور بازار پلور او پیر رامنځته کړ.




کارټون له فرنټیرپوسټ نه

# ترخه رښتیا

واکمن د ارګ پر پخو دېوالونو سرسري نظر واچاوه، د ارګ ټولو برجونو ته ځير شو، د ګلخانې او دلکشا نقش او نګار يې په ذهن کې وګرځېد، پورته شين اسمان او شاوخوا ښېر دروازې او اسمايي غرونه، لکه له خزانو چارپېر ښامار داسې ورته معلوم شول.

د مور په سرو او پستو غاليو يې په کرار قدمونه اخيستل، دلکشا او ګلخانې د ډېرو پادشاهانو سرونه خوړلي او ډېرو ترې نيمه خوا کډې کړې، له ملکونو او دريابونو اوښتي دي، چا په کې کلونه د تخت دپاسه تېر کړي، چا مياشتې او ورځې، خو د داسې بې شرمۍ او رسوايۍ پادشاهي د داسې لوټ تالان، مرګونو او وحشتونو واکمني ارګ نه ده ليدلې.

نن چې افغانستان کابل کې رالنډ شوی او کابل ارګ کې، واکمن ورځخه تېر نه دی، که هرڅه کېږي خو چې د دوی د ارګ واکمني پرځای

وي.

داسې ښکاري واکمن له ارګ د باندې هېڅ نهويني، نه دا مرګوني لوږه او فقر، نه دا ورانه وراني، نه دا لوټ تالان او نه هم دا مرګ او وينې.

ارګ ته نن يوې دلې د تلو اراده کړې، چې واکمن ته په ډاګه کړي، دا حکومت؛ حکومت نه دی، هلته چې د خلکو مال، عزت او ژوند خوندي نه وي، حکومت او بيا اسلامي حکومت څه مانا...؟ چې يو هېواد او ولس د کافر په واکمني کې سلامت پاتېدای شي د ظالم نه...

نن يو څوک غواړي د افضل الجهاد کلمة الحق عندالسلطان جابر سنت ژوندی کړي، د واکمن پر وړاندې ودرېږي.

وايي د وخت واکمن يو ستانه خپل دربار ته غوښتی و، هغه ورغی د ارګ دننه چې په غاليو تېرېده، پايڅې يې پورته بډ وهلې او چې راووت غبړ يې کړ اوبه راوړئ، پښې پرېمينځم د کوم ملنګ له پوښتنې سره يې ويل، دا لارې دا غالۍ ټولې وينو نيولې.

واکمن ته مخامخ کېناستل هغه ورته د انګورو، منو او مېوو ډک غوري کېښودل، خو دوی مخ واړاوه، کله چې پر افغانستان روسانو تېری وکړ، مرحوم دوست محمد کامل د افغانستان منې ونه خوړلې، د ده په خبره د دغو منو سرخي ورته د هغه شهيد وينه برېښېده چې په غرونو کې د وطن د ازادۍ په سنګرو کې توی شوې او بيا واورو او بارانونو دا وينې ويالو او باغونو ته راوړې او د ونو په څانګو او ريښو کې منو ته رسېدلې دي.

د واکمن تندی تريو شو، په زړه کې يې د زور، زر او تزوير ټولې حيلې او حربې وګرځېدې، د خپل شان او شوکت سپکاوی يې وګانه خو د

احتیاط واگي بیا هم راټینګ کړي.

هغوی داسې ناست دي، لکه د مدرسې په انګړ کې طالبانو ته تدریس کوي، نه یې د ګلخانې کش او فش ته پام دی او نه د پادشاهی نورو نخرو او مظاهرو ته.

واکمن هر یوه ته ګوري، د دوی دا بې نیازي او استغنا نه شي زغملی، خپل تحقیر یې ګڼي.

واکمن فکر کوي، اوس به د پیسو، ځمکو، څوکیو او منصبونو تمه دا هرڅه زما په لمن کې وغورځوي، ګومان کوي، چې د منصبونو او پیسو وعدې به دلته د هغوی د ملګرتیا او ملاتړ پوخ تړون رامینځته کړي.

له دوی یوه پر ږیره له لاس کښلو، ویل: دا څه مو راخیستي اسلامي حکومت او نظام داسې وي، ستاسې له لاسه ټول ملت د جاهلیت په ژوند کې د تباهی خواته روان دی...

واکمن شاوخوا په کتلو، په پسته څوکی کې وخوځېد، ګردچاپېره ولاړ وسله وال یې له نظره تېر کړل، وایي، تاسې ولې د حکومت پر مخالفانو د بغاوت فتوی نه لګوئ.

هغه یې خبره پرې کړه، د هیلې خلاف ورته وایي، ستا حکومت اسلامي نه دی، نو پر مخالف یې څنګه د باغي حکم وکړو، ته حکومت اسلامي کړه، موږ به ستا مخالف هم باغي اعلان کړو، واکمن له دې خبرې سره ټکان وخوړ، د ده غوږو له مودو داسې خبرې نه وې اورېدلې، بې اختیاره داسې نه، لکه د یوه هېواد واکمن داسې لکه پیښنور کې د تنظیم دارالانشاء کې ناست وي، وایي ته په خپله خبره مین یې...

هغه یې خبره پرې کړه؛ هو!

زه به په خپله خبره مین وم، زما به دا یوه مینه وي، خو ستا عشقونه ډېر دي، ته پر چوکۍ عاشق یې، ته پر قدرت مین یې او ته پر... ته د قدرت وږی یې...

واکمن وایي، زه ټانکونه لرم، الوتکې، عسکر، زور لرم، هرڅه کولی شم، خو هغه ورته په سړه سینه او اطمینان وایي، ستا د دریو ورځو بادشاهي ده، دا هم څوک نه درسره مني، له تا مخکې دلته یو بل چا هم داسې خبرې کولې او په زور او طاقت نازېده، خو الله تعالی ځنګه کړل،کلونه مخکې بل چا هم دا خبره کړې وه.

موږ د اسلام په خاطر ستا ترڅنګ درېږو، تاته د بیعت لاس درکوو، که نه ټول پوهېږو دا څوکۍ د پښتانه ده، خو موږ د اسلام لپاره ستا حکومت ته غاړه ږدو، منو یې خو د خدای خاطر وکړه، ته خپل حکومت سم او پر اسلام او شریعت برابر کړه...

واکمن پر چوکۍ وغورځېد، داسې لکه واوره لمر ته ونیسي، لکه هرڅه یې همدا اوس د هغوی په مخ کې بایللي وي، خو هغوی له هر څه بې نیازه، له تمې او دنیاوي ګټو بې پروا، لکه واکمن ورته د لوست لپاره ګونډه وهلې، لکه مدرسه کې شاګرد د استاد پر وړاندې.

***

# د علماوو اتحاد

## د شپېتو برېخو ورځ په ورځ کمی دی:

کشاف صاحب د علماوو اتحاد مشاور دی، له ده سره مو، د وضعې په رابطه خبرې وکړې،له حالاتوځورېده، ما ترې پوښتنه وکړه، سیاف صاحب څه وايي، ویل له هغه هم لار ورکه ده.

ما ورته کړه، پر موږ يې لار ورکه ده....؟

ده وویل د دې درک ته لگوه، توپیر يې ته راباسه، ما ویل لار کړه، گامونه کاواکه منزل ورک... له چا لار ورکه وي، چا لار ورکړه کړې وي، څوك په ورکو لارو ډغرې خوري، څوك د کږو لارو لالهاند اوسي... څوك له نورو لارې ورکولو ته اړم وي.

۱۳۵۹لمريز کال د مېزان میاشت وه... اشرفیه جومات کې جماعت اسلامي جهاد کانفرانس رابللی... قاضي حسین احمد د جماعت

اسلامي سکرتر جنرال و... استاد سیاف چې ۱۳۵۴کال له اخواني مخکښانو سره بندي شوی و، د جدي له شپږمې وروسته په ژوندي راوتو... پېښور کې د مجاهدینو د مشرتابه پر ستیج ولاړ و... د ده وینا د تکبیر په نارو او تودو احساساتو بدرگه کېده... د زنده باد شعارونو ځمکه لړزوله، د استاد د وینا له هر ټکی قاضي صاحب من من غوښې اخیستې...

جماعتیان په جامو کې نه ځاییدل... استاد سیاف په داسې فصاحت وینا کوله چې ټولو د ده په څېره کې سترگې ښخې کړې وې... استاد سیاف ویل: موږ د خاورې د آزادی لپاره جهاد نه کوو، که افغانستان کې اسلامي حکومت او شریعت نشي ټینگېدی، خدای دې له سره آزاد نه کړي...

موږ له اسلامي نظام او حکومت پرته د افغانستان آزادي نه غواړو... خو اوس له استاد په خپل اسلامي حکومت او شریعت کې لار ورکه ده...؟

استاد سیاف لار، منزل او ځان هرڅه ورك کړي، په ورکو لارو پسې لگېدلی، هرڅه یې دغه قمار ته نیولی... د کونډې نه دین شو نه ....

له کشاف صاحب مې د مرکې هیله وکړه، ویل یې مرکه څه کوې، نور مې زړه دی کرښه هم ونه لیکم.

د علماوو په اتحاد کې نور دوستان لکه مولوي احمد گل چې له دوی سره مې لجنه کې الفتوی مجلې د لومړي چلوونکي په توگه کار کړی، قاضي میرزا خان دلیلي او نورو سره ملاقاتونه وشول، د علماوو له اتحاد سره مولوي محمد میر، مولوي فضل هادي شینواری، مولوي عبدالحی زعفراني او نورو ملایانو چې زیاترو د داعیانو د وخت تجربې لرلې برخوال دي، مولوي سعید الرحمن د اتحاد علما منشي دی، ټول

اسناد، پرېکړې او پېشنهادونه له ده سره وي.

عجیبه خو دا وه، چې مولوي نصر الله منصور هم د علماوو د اتحاد غونډو کې برخه اخیسته، مولوي ارسلا هم په مخکنیو غونډو کې ګډون کاوه، خو اوس یې د وزارت خواږه په دا ډول چارو نه بې خونده کول.

له همدې ځایه وه چې د دغه حرکت په اړه له هماغه لومړۍ ورځې شکمن یم.

د اتحاد علما د ګوتو په شمېر مشرانو په اخلاص او رېښتینولی شك نشوی کېدی خو ډېر یې د مقام او مادیاتو په تمه په پټو ښکاره معاملو بوخت وو، په جیبونو کې یې بېلا بېلې عریضې ګرځولې، سیاسي پاسپورتونه، سیاسي نمایندګیو کې یې د خپلو نازولو مقررۍ غوښتې، هر یوه سویه غلې ساتله، په ظاهر د اسلامي نظام او شریعت غوښتنه د پردې شانه د مادیاتو مینه او تلوسه...

# د استاد رباني غوښتنه

رباني صاحب د اتحاد علما په نامه یو لیک رالېږلی، که ملایان حکمتیار ته ورشي، چې لار خلاصه کړي، د کابل مظلومو خلکو ته چې د ژمي او لوږې تر مرګوني تهدید لاندې دي، غذایي او د سونګ مواد ورسول شي.

خو له دې مخکې رباني صاحب د حکمتیار د محاکمه کولو اعلان کړی و او مسعود دا غوره کړې وه، چې دا ځل به د حکمتیار قوتونه دومره په شا وتمبول، شي چې توغندي یې کابل ته راونه رسېږي، مسعود ویل حکمتیار ته یې قفس جوړ کړی، په سر چوك کې به یې راځوړند کړي...

د رباني صاحب د غوښتنې له امله حقاني او ذاکري صاحب له حکمتیار سره په دې هکله خبرې وکړې، خو د حکمتیار موقف دا و، چې له دې موادو په نظامي برخه کې استفاده کېږي، په پوځي برخو کې لګول کېږي، ملېشو ته رسېږي، خو داسې وخت هم راغی، چې ده خپله بالاحصار کې د ملېشو مرکز ته غذایي مواد ورسول.

له ډېر بحث وروسته حکمتیار موافقه وکړه، چې د علماوو اتحاد یوه هیئت تر نظارت لاندې پر ښاریانو د دغو موادو د وېش له تضمین وروسته لار پرانیستل شي، د لارو تېل یوه سوداګري رامینځته کړې، دا چې ځینو کسانو به له حکمتیار امرونه اخیستل او ډکې لارۍ به یې کابل ته لېږدولې، دغه مواد په دومره لوړه بیه پلورل کېدل چې هره لارۍ کې

مليونه افغاني پاتې کېدې.

نور نو چا د کابل له دروازو له يوه من زيات اوړه او يو کيلو زيات غوړي نه شوی لېږدولی، کری ورځ په کتارونو کې تېرېده، چې له پاټک د تېرېدو مخه ومومي... وحيد الله سباوون، فيض محمد او د حزب يو شمېر قومندانانو او مخورو په دغه سوداګرۍ کې چاغه ونډه لرله... حکمتيار صاحب هم ځيني خاصان په دغه امتياز نازول...



# د ډاکتر نجیب الله د لیدو تلوسه

د ملګرو ملتونو ودانۍ سره جوخت چې ډاکتر نجیب الله پکې پنا اخیستې د مرحوم سردار نعیم خان کور دی، چې عزیز نعیم پر قوماندان عبدالحق پلورلی... حاجي دین محمد، مولوی خالص کله ناکله دلته دربار لګولی وي، ملا خېل صاحب هم دلته وي، د مولوی خالص د سکرتریت چارې پر مخ وړي، حامد کرزی هم دغه ماڼۍ کې مېشت دی... دغه ماڼۍ د ملګرو ملتو له هغې دفتر سره دیوال شریکه ده...

د ډاکتر نجیب الله د لیدو هیله ووایم که هوس زما خوب ګرځېدلی، کله چې لومړۍ پلا دغه ماڼۍ ته ننوتم له ډاکتر سره مې د لیدو هیله

رژېدلې وگڼله... ذهن کې مې پر دېوال د ور اوښتو نخچه جوړه کړه، د دېوال ارتفاع مې سنجوله، پلچرخي کې مې پر دغه کچه دېوال د ور اوښتو توان وازمويه... په دې لټه کې يم چې کله پر دېوال ورمنډه کړم... سيد نعيم پاچا ته مې ياده کړه راته وايي يو دا کار درځخه پاتې و...؟

له ملاخېل صاحب سره مې راز شريک کړ... د ده په خبره اورېدلې يې دي ډاکتر تومانچه ورسره ساتي ستا په ور اوښتو کېداى شي د خطر احساس وکړي... فلهذا دا کار پرېږده...

بيا بله لار رابښيه...

د ملگرو ملتو دفتر کې زما يو ترکى ملگرى کار کوي، له هغه سره به خبره وکړو... دوې اووني دمخه کابل کې و، که څه هم ډېرې بهرني کارکوونکي لېږدېدلې... خو دا راته وايه پر ډاکتر نجيب څه کوې...؟

- که د څو خبرو مخه ومومم
- ډېر دې خوښ دى...؟
- خوا خوږي ورسره لرم
- همدا خوښه ده
- له ډاکتر سره خيانت شوى

خپله د دغه خيانت پړ دى... خپلو ملگرو ورسره خيانت کړى... اوس يې ملگري ملتونه پړه دي...

ملگري يې په خيانت پړه دي... موږ يې په ناسم قضاوت او درک ملامت... يو وخت به ټول پښېمانه اوسو، لکه د داود خان په اړه چې عمومي حسرت موجود دى...

ترکانو د خپل يو صدراعظم عدنان مندريس په اعدام (١٩٦١) تر

اوسه د پښېماني کفاره پوره نکړای شوه... د پاکستان پر وجود د ذولفقار علي بوټو له اعدام لګېدلي زخمونه ناسور ګرځېدلي...

ایران کې یې د شاهنشاه له سقوط وروسته صدر اعظم امیر عباس هویدا محاکمه کړ... اخوندانو په استهزا هویدا ته وویل له لسو کالو زیات د صدر اعظم په مقام له پاتې کېدو که ایران ته خپل کوم خدمت په ګوتو کړې...؟

هویدا له جیب خودکار قلم راوېوست... ویل دیارلس کاله وړاندې زما د صدارت پر لومړۍ ورځ چې د دغه قلم کومه بیه وه اوس هم په هماغه قیمت ولاړ دی...

ټولو په کرس وخندل... دا هم کوم خدمت دی...؟

هویدا یې اعدام کړ... د هویدا د دغه خدمت وزن ډېر ژر خلکو ته ځرګند شو... هغوی چې د محاکمې پر مهال یې د هویدا په دغه خبره کټ، کټ خندلي وو، د حسرت لاس مروړي...

ډاکتر نجیب چانه دی اعدام کړی...

هېڅ ګرنټي نشته، دلته هرڅه شوني دي... ناممکنات نشته...

مازیګر به ډاکتر دروښیم...

هغه خنګه...

پخپله به یې وګورې

لوړ مازیګر دی، ډاکتر نجیب الله د حوېلۍ انګړ کې والیبال کوي... هماغسې پند، بشاش...

زه حیران ولاړ یم... له لاس پښو مې دمه ختلې... نه پر دېوال د اوښتو توان وینم... نه مې له خولې غږ ختی شي...

د ملګرو ملتو ودانۍ دروازه کې د نظار شورا وسله وال ولاړ دي، له

دننه ځوک دي، خنګه دي، پوره معلومات نه شته... یوه خبره کره ده، چې د ملګرو ملتو بهرنیو کارکوونکو له کابله پښې سپکې کړې... د بنین سیوان او تولو کې د ملل متحد بې مخې ته ګوره. مولوی خالص له شوروي اتحاد د داودخان، تره کي او امین پور غوښت، که مې ولید دا خبره یې ور په زړه کوم، چې د ډاکتر نجیب الله د بندي کېدو پور ولې نه غواړي، دی مو د ځا قصابۍ ته پرېښئ...؟

حاجي نسیم ته مې ویل که کومه لار برابرولی شې- دی له جمعیت او نظار شورا سره ښې اړیکې لري... بله ورځ یې راته کره یو ځوک یې پیدا کړی، ستا نوم به ډاکتر ته ورکړي، که یې ومنله کار کېږي... ما خپل نوم او مدعا پر یوه پاڼه لیکله... خو حاجي نسیم بې درکه دی...

وایي وظیفه یې پرېښې.

سل زړونه مې یو کړل... حقاني صاحب ښه موډ کې دی... ورته وایم له ډاکتر نجیب الله سره به څه کېږي...؟

- وایي څه ورسره کوې... رئیس جمهور کوې یې...؟

- په جمهوري ریاست خپلو کې نه جوړېږو...؟

- دوی هم یو بل سره په خېړې لګولو ستړي وو...

- پر پادشاهی ځوک جوړ شوي...؟

- له ډاکتر نجیب سره یوه خواني په کار ده... تاریخي خواني... چې له دغه اسارت خلاص شي...

- ډاکتر نجیب پخپله خوښه ملګرو ملتو ته پنا وړی... وتلو ته به زړه ښه نه کړي... دغښې هڅه اختطاف ده...

- ملګري ملتونه چېرې...؟ د نظار شورا بندیخانه... که د ملګرو ملتو په نامه څه وای د نجیب الله او مملکت به دا حال نه و؟

- هرڅه چې دي د ملګرو ملتو نوم ورپورې دی... دی خپله ورغلی...

- شونې وه ډاکتر نجیب الله د سردار نعیم خان حوېلی ته په اوښتو خوندي ایستل شوی وی...

- خو دا کار اسانه نه دی...

- د دغسې باور رامنځ ته کول ګران دي...

- بله دا چې ډاکتر نجیب الله دې ته چمتو کېدی شوی...؟

د حقاني صاحب له خبرو د سړي زړه ته لوېده د مجلس اخر کې به دې له خپلې هوکړې خبر کړي...

هېڅوک زموږ خبرو کې را ونه لوېدل... یوازې مولوی محمود راته کړه... له دې تور به دې حاجي صاحب هم سپین نه کړای شي...

زه غلی بلکې خولې شوم، لکه نور د تورونو تر بار لاندې سانه شم اخیستی، خوله مې جینګه پاتې ده... ایله مې راټوله کړه...

زما ټول عمر له دغسې تورو بلکې پېغورو سره اغږلی... له کابله مې دغه دروند بار پخپلو اوږو پېښور ته لېږدولی- هلته مې ژوند د چاړو، چاکوګانو له تېرولو سره تېر کړی، سهار به چې دفتر ته ننوتم ملګري به تېرو دوولسو ساعتو کې د لګېدلیو تورونو، پېغورونو په شخوند راټول وو...

هغسې تورونه چې اروا مې پرې شکه نه وه، بس د نه کړې ګناه د عذاب اور راباندې بل و...

زه زهیر ناست یم، ناستو کسانو یو بل سره پسپسکی پیل کړی- نیازی رانیژدې شو... ولې هغه ځای ګروې چې بخار نه کوي...؟

زه پښېمانه او شرمنده یم... وایم که خدای وکړي څوک بله خبره راواچوي، چې زه له کوټې د وتو مخه ومومم...

د حقاني صاحب لکه زړه راباندې سوځېدلی وي- ويل يې... د ډاکتر نجيب د محاکمې ظرفيت نه شته، ټول خلاص ګرځي... دی ولې بندي دی...؟

د مکې فتحه کې ابو سفيان دومره درووند وتلل شو، چې مېنه او کور يې د نورو لپاره د مصونيت مرکز وګرځېد...

که ملګري ملتونه وغواړي نجيب ايستلی شي... خو د نورو لپاره دغې معاملې ته لاس اوږدول معقول نه دي...

پوښتنه دا ده، چې د ډاکتر نجيب ملګري، جنرالان څه شول، نه چا مظاهره وکړه، نه يې پر ځان اور پورې کړ، د ده خپله خبره ده چې له يو لک زيات حزبي ملګري يې لرل، تاته خير....؟

د دغې پرمختيا نوره کيسه بل وخت

اوس ګوزاره د زړه په وينه کـــــوو
حالات چې ښه شي بيا به مينه کوو

## د مولانا منصور نیول:

د لیندۍ ۱۹مه د مولانا منصور یو ساتونکی سر وهلی بر وهلی د سولې مکتب ته راغی، له دې مخکې یو بل تن هم په وارخطایی راغلی و، خو څه یې نه وو ویلي، دویم هغه د منصور صاحب مربوط په دولت کې د مهاجرینو ستنېدو وزیر واحدیار دی.

د مولانا منصور یو بل ساتونکی چې کوماندویي تنګه دوبنی دریشي یې په دغه ساړه کې اغوستې، کله به یې د ډګرمن او کله د جنرالي نښانونه پر اوږو تومبلي وو، ذاکري صاحب او حقاني صاحب ته څه وویل، بیا یې ساتونکي ته کړه، ودرېږه کیسه وکړه، هغه خوارکی ودرېد، کیسه یې شروع کړه... په چهار اسیاب کې حزبیانو پر موږ حمله وکړه، منصور صاحب او ملګري یې ونیول، ایله ما وکولی شوای په تېښته بریالی شم، ده د مرګ ژوبلې په رابطه غوڅه خبره ونه کړه، خو داسې معلومېده، لکه څو تنه مړه زخمیان شوي وي.

ټولو خپله خواشیني وښوده، یو څو خو دا د ټولو علماوو توهین وګانه، حقاني صاحب چهار آسیاب ته د تلو خبره وکړه، که څه هم ملګرو د حقاني صاحب له تلو سره مخالفت وکړ، هسې نه دې کې هم لکه د مخه کومه توطئه نغښتې وي، خو حقاني صاحب پټېیلی، چې خپله د دغې ربړې د حل اقدام وکړي، ځکه خو یې هغوی ته چې د نه تلو خبره کوله ویل تاسې مه راسره ځئ.

کابل د خپل سیاست او پالیسی له مخې غوښتل په هغو سیمو کې کورني کړکېچونه او جنجالونه پیدا کړي، چې په حال او مستقبل کې یې د ځواک د تمرکز او ایجاد اندېښنه ترې لرله، له همدې ځایه وه چې په

داسې سيمو کې يې د بېلا بېلو اړخونو د تمويل او تطميع له لارې د ربرو پيدا کولو هڅه کوله، د پکتيا والي په توګه د مولوي نصر الله منصور تاکنه له دغو هڅو ګڼل کېږي.

مولوي منصورد مالي امکاناتو له مخې پکتيا کې د يوې پايګاه هڅه کوله ګردېز کې يې له ځينو قوماندانانو د دولتي ودانيو په اخيستلو سره هلته د دولتي تاسيساتو د خرخولو طريقه او تجارت ايجاد کړ، ځکه خو ګردېز ته د ده هر وارې تګ پر پيسو د ډکو بوجيو په بدرګه ترسره کېده.

چهار اسيا ته د تلو لپاره د بت خاک لار غوره کړې شوه، ځکه خو مو بېرته د پلچرخي په استقامت حرکت وکړ، غرمه وه چې پلچرخي ته ورسېدو، ډوډۍ ته د ټولو اشتها برابره وه، خو حقاني صاحب بېله دې چې مرکز ته وګرځي، سيده د بت خاک لار ونيوله موږ هم ورپي ترې پسې روان شو.

د بګراميو ورکشاپ کې د حزب اسلامي له يو قوماندان سيد الرحمن سره ليده کاته وشول، چې حکمتيار ته په دې هکله خبر ورکړي، موږ د احوال تر رسېدو د ابوحنيفه مدرسې دننه جومات ته ولاړو.

د جومات د اوداسه پاخه ځايونه له خاورو سره برابر و، د مدرسې د دروازې دننه د ټيليفون کوټې هم ړنګې دي، جومات ځای ځای رالوېدلی کنډ او کپر و، چې په دې وروستيو کې يې د بېرته جوړولو لپاره ځای ځای بې ډوله سمټکاري شوې وه، د فرش درک نه و.

د روسانو له تيري سره دلته شوروي لښکرو اړولي وو- مدرسه يې د کابل کومې بلې ودانۍ ته لېږدولې وه...

ماته ښوارلس کاله دمخه د لمونځونو لړۍ را په زړه شوه، د ماسپښين په جمع لمنځونه چې په لومړي صف کې به شل پنځه ويشت

استادان له سپينو لنگوټو سره ولاړ وو.

د جمعې پر ورځ به د شهيد مولوي عبدالرب احدي وردگ خطابت او د محصلينو متفاوتې څېرې او کريکټرونه را په زړه شول، خو دا ټول لکه خوب داسې و، د هغې ارامی او سوکالی ځای اوس د مرگ وېرې او وحشت پاتې شونو نيولی، چې د ليدونکو د اعصابو او احساساتو مراندې يې پرېکولې.

ابو حنيفه مدرسه د اخوانيانو مرکز پېژندل کېده، له استاد رباني تر سياف ډېری د دغې مدرسې فارغان دي، اخوانيزم د دغې مدرسې موډ او فيشن گرځېدلی و، زموږ يو استاد به چې په غوسه شو، له ځان سره به يې ويل: مدرسه امام ابوحنيفه است... ؟ اگر امام ابوحنيفه زنده ميبود مدرسه خوده در ميداد...

له لمانځه وروسته مو حرکت وکړ، د کمريو د کلي مينځ کې له غځېدلي خام سړک تېر او د کابل لوگر سړک ته د شېوکيو له اړخه ورگډ شو، لږ مخکې د موټرو وړوکې قافله مخې ته راغله، دا قافله د ښاغلي مجددي وه، چې د حکمتيار صاحب له ملاقات راگرځېدلې وه.

د حکمتيار او مجددي زړه بداوی چې په سخته دښمنی اوښتې و، د روغې جوړې امکانات يې نه ليدل کېدل، ده حکمتيار د خپل رياست په وخت کې د پاکستان له سفره څخه د راستنېدو پر وخت د خپلې الوتکې پر راکټي حمله تورن کړی و، دوی يو د بل پر ضد تبليغاتي کمپاين غځولی و، له بهرنيو راډيوگانو سره له مرکو پرته د حزب اسلامي شهادت له مسعود او رباني زيات د مجددي پر خلاف موضع نيولې وه، وروسته بيا ښاغلي مجددي د الوتکې حمله پر احمد شاه مسعود واړوله، حکمتيار صاحب به ويل د حضرت صاحب جبهه يې جيب کې

ځائېږي، مجددي به په احساساتي ښېرا او بدو ردو خوله خلاصه کړه.

خو په را وروسته کې د واك پر سر له مسعود او رباني سره جنجالو حضرت صاحب له دوی زره توری او حکمتیار ته نژدې کړ، مجددي ویل: حکمتیار سره خو څه پدر کشتی نه درلود...

مجددي او حقاني صاحب د سرک پر غاړه لنډې خبرې وکړې، معلومه شوه مجددي له حکمتیار سره د نوې یاراني سره سره په دې نه و توانېدلي مولانا منصور د حکمتیار له بنده خلاص کړي، مجددي وویل: حکمتیار وعده ورکړ، چې منصور به خوشې وکړي...

مازیگر د څهار اسباب تعلیمي غوند کې د حکمتیار مقر ته ورسېدو، دلته د منصور صاحب نوي لندکروزر ولاړ و، چې دوې ورځې دمخه ورته حاجي داود شاه ځدراڼ له پاکستان راوستلی، د موټر هینداري ماتې، او ځای ځای داغمنې وې.

دېره سخته ځارنه کېده، د حزبیانو یوه یوه ټولي تر تعقیب لاندې ونیوو.

حکمتیار په لومړي سر کې خورا جدي و، په هېڅ توګه یې د منصور خلاصون ته غاړه نه ایښوده.

په دې رابطه د حکمتیار نقطه نظر دا و، چې د منصور کسانو په ګردیز کې د حزب اسلامي څو تنه مجاهدین شهیدان کړي، نن چې منصور ګردیز ته روان و، د هغو شهیدانو وارثانو ورته لاړ نیولې وه، د دې لپاره چې موږ هغوی قانع کړي وی، چې لاره خوشې کړي، منصور صاحب ته مو احوال ولېږه چې زموږ په قرارګاه کې چې د سرک پر غاړه ده معطل شي، خو دوی زموږ پر مجاهدینو برید وکړ، څو تنه شهیدان او زخمیان شول، د هغوی دوستان اوس نه درېږي او د منصور محاکمه

او قصاص غواړي، څکه خو د محاکمې تر دايرېدو مخکې د منصور خلاصون امکان نه لري.

په وژل شويو کسانو کې د هلمند مجاهدينو دوه تنه هم شامل وو، چې د منصور ملګرو د جبار ملېشه بلل، خو ذاکري صاحب د هلمند مجاهدين بوول.

حکمتيار داده معلومېده، ده ويل: منصور په کومه پشتوانه او قوت د پکتيا ولايت کوي او سپين سترګي دا چې د واکمنو په دفاع کې يې داسې موقف نيولی، چې د علم حيثيت او عظمت يې له خاورو سره برابر کړی دی.

له پينځه ساعته پر له پسې خبرو او بحث وروسته حکمتيار د حقاني په ټينګار او احترام دې ته چمتو شو، چې د يوه هيئت له ټاکلو او په دې رابطه د تحقيقاتو او پلټنې له تضمين وروسته مولانا منصور، حقاني صاحب ته وسپاري.

له همدې ځايه د قضيې د تحقيق لپاره د علماوو يو هيئت وټاکل شو، چې په دې رابطه تحقيق او پلټنه وکړي او هرڅوک چې پړ وخېژي، د شرعي اصولو له مخې ورسره چلند وشي.

د هيئت غړي لاندې علماء دي:

محترم مولوي نظام الدين حقاني، محترم مولوي عبدالرحيم اخوندزاده، محترم مولوي محمد مير.

پر سند محترم ذاکري اوحقاني صاحب د تضمين کوونکو او شاهدانو په توګه لاسليکونه وکړل او حکمتيار له دې شرط سره لاسليک کړی و، چې د هيئت له تحقيق وروسته بايد مجرم ته شرعي جزا ورکړی شي.

تېر ماخوستن و چې حقاني صاحب د مولوي منصور د خلاصون توافق ترلاسه کړ، مولوي منصور له سرک سره نژدې د حزب يوه بله قرارگاه کې بندي و، دی په داسې حال کې د حقاني صاحب له خوا راويستل شو، چې يو زوړ پکول يې پر سر او همېشنی چپنه په تن نه وه، يو خيرن څادر يې له څانه تاو کړی و، د عينکو درک يې نه و، د باندې د حزب له يوه مجاهد سره يو جوړه عينکې وې، په ډېر غرور او افتخار يې ويل، دا د منصور عينکي دي.

حقاني صاحب مولوي منصور له څان سره په موټر کې کېناوه او پلچرخي ته يې خپل استوگنځای ته راورساوه.

د منصور صاحب د نورې ډلې د خلاصون په هکله حکمتيار موافقه ونه کړه، ظاهراً يې دا ويل چې کېدی شي د وژل شويو حزبيانو دوستان په يوه سخت انتقامي عمل لاس پورې کړي، څکه خو بايد د هغوی د اطمينان او احساساتو د کنټرول لپاره پاتې شي او که حالات مساعد و، سبا به يې خوشې کړو، حقاني صاحب منصور خپلې کوټې ته له څان سره بوتی، د چای ډوډۍ له خوړلو وروسته يې د ده د اصرار له مخې د محافظينو يوه قافله کې په درناوي رخصت کړ.

کابل راډيو اعلان کړه، چې مولوي نصر الله منصور د څلورو لکو ډالرو معادل افغاني له څان سره لېږدولې، چې حزب ترې نيولي دي.

پر سبا د عقرب ۲۰ مه د سولې مکتب کې بيا د علماوو او قوماندانانو غونډه وه، مولوي منصور هم ورته څان راورساوه، خو دا څل د کوم وزير بنز موټر کې راغی، څکه چې موټر، عمله او باډيگارډ يې لا د حکمتيار له بنده نه وو ازاد شوي.

حقاني صاحب، مولوي عبدالرحيم اخوندزاده او مولوي شيرين

شجاعت حکمتيار ته ولېږل، چې د وعدې له مخې د منصور ملګري له ځان سره راولي، خو هغوی تش لاس راورسېدل.

حکمتيار د هيئت له تحقيق او فيصلې مخکې د دوی خلاصون ناممکن ګاڼه او دا يې ويلي وو، چې که بيا په دې رابطه ځوک راغلل، که مجاهدينو هر ډول عکس العمل وښود مسووليت به يې زموږ پر غاړه نه وي.

مولوي منصور لکه د پخوا په څېر لنګوټی تړلی و، خو لا چپنه يې نه وه پيدا کړې او پر واسکټ يې د پاسه له ځانه سپين څادر تاو کړی و، دی په تالار کې ودرېد او حاضرينو ته يې د پرونۍ واقعې په هکله معلومات او توضيحات ورکړل:

...کله چې موږ چهار اسياب ته ورسېدو، د حزب افرادو زموږ مخه نيولې وه، ما خپل مجاهدين له مقاومت منع کړل، خو دوی چې زما د موټر دروازه خلاصه کړه، شعارونه يې ورکول چې دوستم مو نيولی، ګلم جم مو ونيو او داسې نور شعارونه يې ورکول، له تشدد يې کار واخيست، زموږ پر ملګرو يې حمله او ډزې وکړې، کله چې کشمير خان راغی، هغه له هرڅه بېخبري ښکاره کړه، ويې ويل تاسې به له ما سره تر هغې قرار ګاه ولاړ شئ...

خو اوس دا وايم، که تر مازيګره زما ملګري خوشي نه شول، په ټول افغانستان کې به د حزب په خلاف سرتاسري جګړه پيل شي، همدا اوس موږ ته له مختلفو ولايتونو مخابرې راغلې، چې د حملې تياری نيسي.

مازيګر بيا حقاني صاحب چهار اسياب ته ولاړ او تېر ماخوستن و، چې د منصور ډله چې د ده زوی هم په کې و، له ځان سره پلچرخي ته راوستل او پر سبا يې په خو موټرو کې د پخواني رژيم د مرکزي کمېټې

دفتر ته ورسول، چې له ارگ او وزارت دفاع سره جوخت او د حرکت انقلاب اسلامي لپاره خوشې شوي وو.

د جمعيت نشراتي ارگان مجاهد د ۱۳۷۱ کال ۱۸ مه گڼه کې په غټو تورو يوازې دومره ليکلي: قضيه مولوی نصر الله منصور بکجا رسيد؟ تر دغه عنوان لاندې په وړو تورو راغلي. در شماره آينده بخوانيد، (خو دا موضوع واکمنو ته دومره بې ارزښته وه، چې په بله گڼه کې يې څه پرې ونه ليکل.

## د حکمتيار ليك:

**محترم مولوی صاحب ذاکري او مولوی صاحب حقاني!**

السلام عليکم ورحمة الله و برکاته!

په الهی امان کې اوسئ او په خپلو ټولو ايماني دندو کې بريالي اوسئ.

غواړم د لږم د مياشتې د ۱۹ مې نېټې د حادثې او د هغې د پس منظر په باب تاسې په جريان کې واچوم.

په داسې حال کې چې موږ د جناب مولوی نصرالله منصور سره هېڅ دښمني نه لرو او د هغه په مراتبو مخالفتونه له نظره غورځوو، خو هغه موږ او زموږ مجاهدينو ته د لار وهونکو خطاب وکړ، هغه د حزب تر ولکې لاندې سيمه کې تگ راتگ درلود، خو چا ورته مزاحمت نه جوړاوه، له کمونستانو او ملېشو سره يې زموږ د جگړې پر وخت بې دليله اعلان وکړ، چې له شانه به د حزب پر ځواکونو بريد وکړي، او په دې توگه يې ځان له حزب اسلامي سره د جگړې د لورې په توگه مطرح

او د مليشو د يرغل نه يې دفاع وکړه، خو موږ يې پر وړاندې هېڅ نوعه عکس العمل ونه ښود، په داسې حال کې چې ټولو ته څرګنده ده چې د حزب اسلامي د مؤمنو ځواکونو پر وړاندې څومره وزن او موقعيت لري، ځان يې د سولې هيئت غړی وګاڼه او زموږ له موافقې پرته يې اعلان وکړ، چې بايد حزب اسلامي د مرنجان له غونډۍ د مليشو له وتلو سره جوخت خپل ځواکونه له څهار اسياب او بيني حصار څخه وباسي، چې نه د سولې هيئت داسې پرېکړه کړې وه، او نه دې موږ د سولې د هيئت په توګه پېژندلی و، او نه د سولې غړی و، خو له دې سره سره موږ د هغه د دې جنګ افروزانه څرګندونو پر وړاندې هېڅ عکس العمل ونه ښود، په پکتيا ولايت کې يې په يوه طرفه اقداماتو لاس پورې کړ، په ګرديز کې يې د کمونستانو او مليشو حکومت اعلان کړ، په ولسواليو کې يې مسئولين وټاکل، په دغه ټاکنو کې يې د حزب يو تن هم ونه نيو، همدا راز يې د نظامي قطعاتو د جوړېدو، اقدام وکړ، او له ايتلافي اداري يې د دغه منظور لپاره کافي امکانات تر لاسه کړل، او ويې غوښتل چې له دې امکاناتو څخه پر ګرديز او نورو سيمو باندې د خپل تسلط پيدا کولو لپاره استفاده وکړي، موږ بيا هم خاموش وو، او په هېڅ عکس العمل مو لاس پورې نه کړ.

شهيد قوماندان کوچی زموږ له څلورو نورو مجاهدينو سره د ده د افرادو په لاسونو د ګرديز ښار کې تر بريد لاندې ونيول شول او شهيدان کړی شول، زموږ مجاهدينو غوښتل خپل غچ واخلي، او شديد عکس العمل وښيي خو موږ د هغوی مخه ونيوله.

له مليشو سره د جګړې پر وخت د حزب اسلامي يو قوماندان د خپلو مجاهدينو سره د صديق الله د کسانو له خوا پلچرخي کې ونيول شو،

خو د حرکت له مسوولینو سره د هغه د خوښې کولو په باب زموږ د وار وار تماسونو باوجود هغه خوښي نه کړی شو. خو موږ د عکس العمل پر ځای صبر او زغم ته ترجیح ورکړه، نه یوازې موږ له ټولو مخالفتونو سترگې پټې کړې، بلکې ومو غوښتل د حرکت انقلاب اسلامي مشر د انتقالي دورې جمهور رئیس په توگه انتخاب کړو او موږ دا طرح یعنې د انتقالي دورې د مشر په توگه د حرکت د مشر ټاکنه پخپله له ده سره مطرح او له نورو مشرانو سره مو تفاهم وکړ، خو د حرکت ځینې غړي چې د نورو په وسیله تقویه شوي وو، که زموږ د لارې خنډ نه وی شوي، او مولوی صاحب محمدنبي یې د کابل پر پرېښودو او پېښور ته په تلو نه وی مجبور کړی، نو اوس به هغه د انتقالي دورې جمهور رئیس وی.

خو موږ په دې برخه کې او هم په دې باب چې حرکت انقلاب اسلامي یو لوی تنظیم گڼو او د هغه له قیادت او افرادو سره د نیکو اړیکو غوښتونکي یو، ډېر سندونه او شواهد وړاندې کولای شو، د لړم د ۱۹ نېټې د حادثې هم مولوي منصور عامل و او د هغې مقدمې یې برابرې کړې وې، کسانو یې په وحشیانه عمل لاس پورې کړ، د یوولسو مجاهدینو د ټپي کېدو او شهادت سبب شو، موږ له نهایي صبر او زغم نه کار واخیست او ومو غوښتل چې هغوی ته تاوان ونه رسېږي، زموږ مجاهدینو دی د حادثې له صحنې ویوست، او په داسې حال کې چې د هغه د اوسېدو ځای د شهیدانو او ټپیانو د ورثه وو لخوا محاصره شوی و، او له هغه نه د غچ اخیستو او شرعي محاکمې غوښتونکي وو، موږ منصور صاحب د هغوی له منځه راویوست او تاسو ته مو وسپاره، په سبا د ده نور کسان موږ په دې شرط خوښې کړل چې د محاکمې او شرعي پرېکړې لپاره به هیئت ټاکل کېږي، ما د ده د وسایلو او اجناسو د

راټولولو او استراد احکام صادر کړل، تاسې زموږ د صلح جویانه اقداماتو پر وړاندې تضمین وکړ، چې د سولې هیئت به د دې فیصلې په برخه کې شرعي پرېکړه صادره کړي او د خودسرانه اقدام او عکس العمل، غچ اخیستنو او ماجراجو یانه حرکتونو د تر سره کولو مخه به نیسي خو متاسفانه مولوی منصور د ائتلافي رژیم د خبري وسایلو له لارې داسې څرگندونې وکړې چې موږ هغه د حزب اسلامي پر وړاندې د ده د جگړې له اعلان سره مترادفې گڼو، په پېښور او گردیز کې یې غونډې جوړې کړې، او له ټولو اخلاقي موازینو څخه د مخالفو شعارونو په ورکولو یې لاس پورې کړ.

او ویې غوښتل چې د دې فتنې د اور لمن نورو سیمو ته پراخه کړي، کاشکې هغه او د هغه ملگرو په کابل کې د مسلمانانو د زنداني کولو، تلاشی، یرغلونو او خونړیو پېښو د وقوع په باب چې هره ورځ کابل کې تکرارېږي، عکس العمل ښوولای وی، کاشکې هغه او د هغه پلویانو د کابل ښار د خلکو په عزتونو، سر او مالونو باندې د هرې ورځې کېدونکو تجاوزونو په مقابل کې رد عمل ښودلای وای او په کابل ښار کې یې د ملي شتمنیو چور او چپاول، د مجاهدینو او قوماندانانو سره دکړو وړو لکه چې مولوی حقاني سره وشول مخه نیولې وی او عکس العمل یې څرگند کړی وای.

عجیبه ده چې دوی دا ټولې پېښې عادي بولي او پر وړاندې یې هېڅ عکس العمل نه ښیي، که په کابل کې هره ورځ په سلگونه کسان وژل کېږي، او په لسگونو کورونو باندې تېری کېږي، کمونستان پر اوضاع مسلط کېږي، مهم او اساسي پوستونه تر لاسه کوي، استراتیژیك او حاکم نقاط اشغالوي او په زیاتېدونکي ډول د خپلو سیاسي او پوځي

پایگاوو په استحکام لاس پورې کوي، دا ټول زموږ دوستانو ته عادي او غیر مهم دي، هغه څه چې دوی ته اهمیت لري د حزب اسلامي افغانستان پر مجاهدینو باندې د تاخت و تاز په بدله کې د یو موټي پیسو لاس ته راوړل دي او غواړي په دې توګه د اسلامي ادارې مسولین او کمونست جنرالان راضي او ایتلافي ادارو کې خپل موجودیت تضمین کړي.

هیله کوو چې تاسو د قضیې د شرعي څېړنې او مقابل جانب د خپلسریو، عکس العملونو او ماجراجویانه څرګندونو د مخنیوي په باب په کړې ژمنه عمل وکړي، مقابل لوری خپلو اشتباهاتو ته متوجه کړئ، او د سولې هیئت وهڅوئ چې خپله وروستی پرېکړه زر تر زره صادره کړي.

همدا رنګه لازمه ده چې تاسو خپلې کړې مخکنی وعدې سره سم حقایق ټول ملت ته اعلان کړئ چې په دې توګه د ماجراجو او فرصت طلبو عناصرو د درواغجنو او زهر لړلو تبلیغاتو مخه ونیول شي.

کریم خدای(ج)مو یار او مرستندوی.

ستاسو ورور حکمتیار

۱۳۷۱هـ ش د لړم میاشتې ۲۵مه نېټه

## د سولې پر ښوونځي برید:

د علماوو اتحاد پلچرخي ته راولېږدېد، د حزب وحدت او نظار شورا د جګړې پر وخت د دوستم ملېشې هم له شورای نظار سره نښتي او د ښار د ځینو برخو له نیولو سره یې د سولې پر مکتب هم برید کړی.

د ښوونځي ځينې برخې د راکټونو له لګېدلو زيانمنې شوې دوه موټر چې يو په کې د يوه کندهاري قوماندان او بل د حقاني صاحب د تنظيم فلاينګ کوچ دی ويجاړ شوي دي، له همدې ځايه وه چې علماوو هم د سولې په مکتب کې د سولې فعاليتونو ته دوام ورنه کړی شوی، کله يې بار او پلچرخي ته راولېږدېدل.

پلچرخي کې خورا بير او بار او ګڼه ګوڼه شوه، چې وار له مخه له حقاني صاحب سره هم زيات قوماندانان او قومي مخور راغلي دي.

سونګ او خوراکي مواد ټول د حقاني صاحب له خوا برابرېږي، لرګي له پکتيا هرې دوې ورځې وروسته را رسېږي، غوړي، اوړه، وريجې، دال له ميرانشاه... البته غوښه کچالو او پياز له بازار تر لاسه کېدی شوی.




د واک وزلوبه

# کرايي جنګيالي

د شوروي اتحاد په نړېدو، ارمېنيا د اذربايجان ناګورنا کرباخ او ځينې سيمې لاندې کړې. ايران د ارمينيا ننګه وکړه، سره له دې چې اذريان شعيه مذهبي دی، بيا هم ايران د ارمينيا ملاتړی شو، چې د اذربايجان په غښتلتيا يې د ايراني اذربايجان د پيوستون انديښنه را ولاړولی شوی...

آذاربايجان له ارمينيا سره د مقابلې توان نه درلود... څه خبر له کومې لارې د چا په منځګړيتوب يې له حزب سره غوټه کړه، حزب اذربايجان ته د جنګياليو د لېږد لړی پيل کړه.

د سرچينو په وينا د اذربايجان کورنيو چارو وزير ښاغلي جوادوف جلال اباد کې له ښاغلي حکمتيار سره مخامخ ملاقات کې د جنګياليو د کرايې شفاهي موافقه وکړه، د وحيد الله سباوون په مشرۍ دغه پروژه وغځېده، سباوون د دغو جنګياليو د قوماندان په توګه له لومړۍ ډلې جنګياليو سره اذربايجان کې دېره او هورې دفتر پرانيست.

دلته د حزب منصبدار ظفرالدين د جنګياليو د غوراوي رسميات پر مخ وړي، د جلال آباد له هوايي ډګر ډکې الوتکې جنګيالي اذربايجان ته لېږدي...

آوازې دي، واسطې، سپارښتنې، لکه يو کاروبار ګرځېدلی، چې د جنګيالي سر درې سوه ډالر معاش يې ورټاکلی... معلومه نه ده له اذربايجان سره د دغه لښکر د معاش او لګښت بيه په څومره کمشن، څووم لاس په کومه کچه ټاکل شوې...؟

چې گورې دوه درې تنه درته ولاړ وي، په جینگه خوله به وایي که حزب کې ځوک پېژنې چې واسطه یې شې که د اذربایجان کرایي لښکر کې یې ونیسي...

زما له دوی زیاته خوله جینگه شي، چې یو خو حزب کې زما پېژندوی د کومې ښې نه دي، بله دا چې د جهادونو ټیکه داري د سرونو کرغېړنه سوداگري ښکاري...

مسلم انگریزي ورځپاڼې په خبر توپولف (۱۰۵۴) الوتکه هره ورځ د جلال اباد له هوايي ډگر دغه جنگيالي اذربایجان ته لېږدوي... ورځپاڼې د افغان پیلوټ حبیب الرحمن او انجنیر امان الله هغه لیک هم خپرو کړی چې خپلو کورنیو ته یې لېږلي دي... د دوی په خبره له آزري حکومت د سړي سر ۱۰۰۰ ډالرو ایله ۴۰۰ دوی ته ورکول کېږي...

(مسلم ۱۸ نومبر ۱۹۹۳)

اذربایجان بیا هم ناگورنو کرباخ خپل نه شوی کړی، خو ځینې سیمې یې بېرته ونیولی، د ارمنیا د تېرې مخه ډب شوه.

ویل کېږي اذري حکومت له افغان جنگیالیو ښه زړه نه درلود، چې نه یې تور کتل نه سپین، ډزولو ویجاړولو ته یې کار وایه، چې اذریانو نشوای زغملی...

د دغه لښکر ځینو ته اذربایجان خپل تابعیت ورکړ، هورې یې ودونه وکړل، د وژل شویو یې یوه وړه هدیره ده...

۱۰۹۲-۱۹۹۳ کې دغه جگړه د ملگرو ملتو لخوا په ۱۹۹۴ کې ودرېده، خو ناگورنو کرباخ هماغسې د ارمنیا منگول کې پاتې شو.

د ایران، عراق جگړه کې هم د ایران لخوا افغان کډوال د جگړې لیکو ته استول کېدل....

ډېری پاکستاني مقاماتو هم د خپلو ساتونکو په توګه تنظيمي جنګيالي ټاکلی... نواز شريف، جنرال فضل حق، قاضي حسين احمد او... له افغان مجاهدينو خپل باډيګارډان نيولي... قاضي حسين احمد خپلو افغان ساتونکو ته ډوډۍ هم نه ورکوله... ما هماغه وخت افغان مجاهد ته په دې اړه رپوټ برابر کړی و...

له دې وړاندې ۲۰۰۰ مجاهدين پر کويټ د عراق له ورختو سعودي عربستان ته لېږل شوي وو. د مجاهدينو عبوري حکومت مشر مجددي په هوايي ډګر کې ورته مخه ښه وويله...

محاذ، حزب او مولوي حقاني د خپلو مجاهدينو له لېږلو سره موافقه ونه کړه، استاد سياف د خليج جګړه کې له امريکايي مخالف دريځ سره د خپلو مجاهدينو ونډه چاغه وتلله.

د تاجکستان اسلامي نهضت هم د ډاکتر نجيب الله رژيم له سقوط افغانستان ته شيوه شو، حکمتيار او سياف يې پر ننګه او مرسته ودرېدل، تر هغې چې استاد رباني او احمدشاه مسعود د تاجکستان اسلامی نهضت مشر عبدالله نوري له تاجکي ولسمشر علی رحمانوف سره په جوړ جاړي اړ کړ.

وايي پر يو شمېر عرب اورپکو د کورنيو چارو وزير احمدشاه احمدزي افغان پاسپورتونه وېشلي او دوی ته يې کابل کې کورونه مانۍ رانيولې.

هغوی چې افغانستان کې پاتې دي، له حکومتي مرستې او سرپرستی برخمن دي.

د دغو اورپکو انجام د زړې لوبې دوام ګرځېدی شي، که د نوې ډرامې پيلامه- موږ ته د واړه ګواښ راولاړولی شي...

# پر خره سپرېدل یو شرم کوزېدل بل

حل او عقد شورا د پينځو جهادي تنظيمونو له خوا، تحريم شوې، ځينې ولايتو لکه ننگرهار، کونړ او لغمان هم شورا بايکاټ کړې، نور ولايتونه هم شکايتونه لري، ټول د شورا لپاره د غړو په غوراوي کې پر حکومت د ټگی جعل او رشوت تورونه لگوي.

په دې لړ کې لومړی فيصله دا وشوه، چې رباني صاحب بايد د تمديد شوې مودې له پای ته رسېدو د چارو واگي خپل لومړي معاون مولوي محمد نبي محمدي ته وسپاري او د هغه تر ادارې لاندې د شورا د تزکيې، اصلاح او تکميل چارې بشپړې شي.

له دغې طرحې سره مولوي خالص او حکمتيار بشپړ توافق څرگند کړ، گيلاني او مجددي هم ورسره موافق وو، غوښتل يې رباني واک قيادي شورا ته وسپاري او هغه بيا مولوي محمد نبي يا بل چاته قدرت ورکړي، په دې توگه د شورا د اصلاح چارې بشپړې کړې، چې واقعاً د ملت د نمايندگی او د دولت د مشر ټاکنې صلاحيت پيدا کړی شي.

خو مولوي نبي پاکستان ته پښې سپکې کړې وې، ده پېښور ته د تلو پر لاره جلال اباد کې رسنيو ته ويلي و، چې د افغانستان هوا پرې بده لگېږي حساسيت لري...

د سياف موقف څرگند نه و، استاد رباني د واک پرېښودو ته نه شوی چمتو کېدی، ده مولوي خالص ته ويل: خر سوار شدن يک شرم و پايين شدن ديگه...

دغه اوازې وار له مخه خپرې وې، چې د حکمتیار او دوستم ترمینځ د جوړجاړي لپاره فعالیتونه روان دي، له همدې ځایه وه، چې د جمعیت مرکزي خپرنیز ارگان مجاهد د ۱۳۷۱ کال په ۱۹ مه گڼه کې لیکلي: ((د حزب اسلامي مرکزي شورا غړي استاد ذره او د حکمتیار زوم غیرت بهیر تاشکند او مزار کې د دوستم ملاتړ د لاس ته راوړلو لپاره هلې ځلې کوي)) مجاهد جریدې په همدې گڼه کې لیکي: جنرال دوستم له یوه شل کسیزه هیئت سره لومړی پاکستان او بیا سعودي ته سفر کړی، مجاهد جریدې دغه سفر د سعودي استخباراتو مشر ترکي الفیصل په بلنه ښوولی، چې غوښتل یې د دوستم او حکمتیار ترمینځ اړیکي ټینگ کړي...

له دې مخکې د قوس له ۱۴ مې تر ۱۸ مې د حکومت او حزب وحدت جگړې چې د دوستم او دولت د ځواکونو ترمینځ یې هم د جگړې لمبې بلې کړې، سو تفاهم وگڼل شو، خو د دغه سو تفاهم د وضاحت لپاره (جمعیت) یوه پاڼه خپره او دا جگړه یې د ببرک کارمل طرحه او د دوستم، حزب وحدت پیر گیلاني او مجددي د ائتلاف کودتا وښوده، که څه هم دغه پاڼه خپله سرچینه نه څرگندوي، خو لکه شپانه ته د وزې خبره: که زه ونه وایم گوډه پښه مې وایي، پاڼه خپله پر جمعیت گواهي ورکوي... څکه خو یې متن کټ مټ له لاندې تبصرې سره را اخلو، پاڼه د افغانستان بانک ترمخ په گڼ شمېر توزیع کېده، چې ما هم تر لاسه کړه، دا هم ویل کېدل چې په ځینو ځایونو کې له الوتکو هم دغه پاڼې شیندل شوې.

بسمه تعالی

# تفسیر از کلمه (سوء تفاهم)

کشمکش خونین هفته قبل میان یک جبهه ائتلافی و قوتهای تحت فرماندهی وزارت دفاع و همزمان با ان تبلیغات غلط رسانه های خبری جهان تحول عمیق و تازه ای بعد از پیروزی انقلاب اسلامی در افغانستان بود، که می تواند اثرات دور رسی بر جریانات سیاسی افغانستان وارد دارد؟

جبهه ائتلافی مشتمل بود بر محاذ ملی (پیر گیلانی) جبهه نجات ملی (حضرت مجددی) حزب وحدت به سرکردگی (عبدالعلی مزاری) قوتهای لشکر ۵۳ و ۸۰ به فرماندهی جنرال دوستم و سید جعفر نادری و در خفا دسته پرچمیان کارملی، که از حمایت دولت ایران برخوردار بودند.

این جنگ یک هفته ای با حرکت ناموفق نیروهای مربوط به ملیشای دوستم در کابل به اوج خود رسید و سر انجام دو طرف با اعلان اینکه سوء تفاهم رخ داده، دست ازماشه گرفتند، و درین جریان از شمال کابل هزاران مجاهد مسلح از ولایت پروان، کاپیسا به پشتیبانی از دولت اسلامی به کابل شتافتند.

در کابل پرچمیان و افراد وابسته به گروهای متذکره، پیروزی شان را به یکدیگر تبریک می گفتند، و همزمان رادیوهای جهان از بمباردمان

ریاست دولت و وزارت دفاع و امارت احمد شاه مسعود سخن میراندند، که درین استقامت رادیوی ایران گوی سبقت را ربود.

اکنون سوال اینجاست که برنده این کشمکش کیست؟ و نتایج این تحولات چه خواهد بود؟

درست دولت کنونی افغانستان با سرکوبی دشمنانش بیشتر از بیش مستحکم خواهد شد، زیرا اگر رابطه دولت با عده ای سست گردید، با جمعی دیگر محکمتر شد، که ما اعلامیه تنظیم جهادی حرکت انقلاب اسلامی، اتحاد اسلامی و حزب اسلامی (خالص) را در پشتیبانی از دولت نشانه خوبی درین مورد شمرده می توانیم، همچنان شتافتن نیروهای کمکی از پروان، کاپیسا که در گذشته چندان رابطه گرمی با دولت نداشت، خود یک دستاورد خوب برای رهبران فعلی دولت اسلامی بوده می تواند.

برخی از کشورها نیروهای جنرال دوستم را در افغانستان سرنوشت ساز می انگاشتند، و نقش اساسی را در سقوط رژیم کمونست کابل به ان میدادند، در حالیکه این تحول قضیه را بصورت واضح تری بازگو نمود، و فهماند که این مجاهدین اند که زمام امور را در دست دارند و ملیشای دوستم چیزی بیشتر از نیروهای تبلیغاتی نیستند.

علاوه بر ان پاکستان و سعودی که توانمندی جنرال دوستم را بیش از حد محاسبه کرده بودند و با دعوت و پذیرایی ان خواستند به فرد اینده ساز افغانستان در ارتباط بوده باشند حرکت اخیر ایشان را وادار به تجدید نظر در سیاست شان خواهد کرد.

دلچسپ تر انکه پاکستان بخاطر همکاری حزب حکمتیار در مخالفت با دولت اسلامی به اعتبار خویش نزد مجاهدین و مردم

افغانستان لطمه زده بود، اما متاسفانه اینبار جمهوری اسلامی ایران اشتباه پاکستان را تکرار کرد، زیرا چه از نظر مذهبی و چه از حیث سابقه که نزد احزاب جهادی آن کشور دارد، جبران آن برای ایران مشکلات زیادی را در پی خواهد داشت.

بهمگان روشن است، جمعیت اسلامی افغانستان که در حال حاضر پست های مهم ریاست دولت و دفاع را در اختیار دارد، در طول جهاد و بخصوص بعد از پیروزی انقلاب اسلامی چی مشکلاتی نبوده که به خاطر دفاع از حقوق اقلیت های مربوط حزب وحدت و نیروهای دوستم... متحمل نشده و بدلیل حمایت از انها اتهامات گوناگونی امثال ائتلاف با کمونستان، دوستی با شیعه (از جانب خالص) متهم نگردید، و بحیث یک حامی نیرومندی ایشان را در طی این مدت یاری رسانیده، ولی این پیشامد پشت پا زدن به تمام دلسوزی ها و همکاری های جمعیت بود و خود را محروم داشتن از یک متحد نیرومند و معقول، که ناگزیر در اینده نه چندان دور بهای انرا خواهند پرداخت، زیرا در افغانستان پشتون ها از اول با انها چندان روش خوبی نداشتند و اکنون اعلام دشمنی با تاجکها بود و یگانه راه حل در پیشروی آنها اینست تا در صدد جبران اقدام شان برایند.

بسیاری بر طرز فکر و عملکرد رهبران حزب وحدت می خندند، زیرا با افراطی گری و مواقف دیکته شده از سوی ایران چنان فضای را برخود ایجاد کرده اند که راه موفقیت در ان سراغ نمی شود، چه حزب وحدت اسلامی نه تنها بخش کوچکی از هزاره هاست، بلکي از حیث مذهب (شیعه) در انزوا قرار داشته و موقعیت هزاره جات در ساحه کم اهمیت تر نواحی مرکزی افغانستان ایشان را بصورت طبیعی محاصره کرده

است.

بقول مسعود؛ این حرکت از سوی نیروهای به راه افتاده که از اراده مردم افغانستان مبنی بر انتخاب رهبر اینده کشور خوف داشتند، بلی جنگ در استانه تدویر شورای حل و عقد شروع شد، تا بتواند بر گذاری انرا به تعویق اندازد در حالیکه قبلاً دلایلی برای به تعویق انداختن آن از سوی بعضی از سازمان ها عنوان می شد و دولت سرسختانه در جهت تشکیل شورا گام بر میداشت.

بدین ترتیب شرکت پیر گیلانی در این حرکت اولاً علاقمندی آنرا نسبت به این شورا زیر سوال میبرد، ثانیاً ائتلاف با نیروهای دوستم رابطه وی را با متحد سابقه دارش حرکت انقلاب اسلامی قطع می نماید.

تحریك نیروهای دوستم از سوی کارمل، برای انجام چنین امر خطرناکی بمثابه بخت ازمایی گروه پرچم نیز بوده، که دوستم و نیروهای تحت فرمانش فدای این هدف گردید، زیرا دوستم هم از نظر سیاسی میان قوت های مجاهدین بیگانه و تنهاست و هم از حیث مواضعش در شمال کشور بسیار اسیب پذیر میباشد، از ان گذشته اگر شمولیت دوستم درین ائتلاف بر علیه دولت اسلامی به کلیه افرادش ثابت شود، بسیاری از آنها را برخواهد انگیخت که منجر به تجزیه و تضعیف فوق العاده دوستم خواهد شد.

شاید عده ای این رویداد را به نفع حکمتیار به حساب ارند، اما در واقع اینطور نخواهد بود، چون میان دولت و تعدادی از احزاب جهادی تجدید دوستی صورت یافته، از سوی دیگر دولت توانست نظر مساعد قوماندانان سر شناس حکمتیار را در پروان، کاپیسا امثال استاد فرید

استاد فتح و کریم بخود جلب دارد و یک پشتوانه خوب که رنگ قومی نیز دارد بخود کسب نماید. اگر در پی دلایل این کودتا باشیم، مهمتر از همه اینست که جمعیت اسلامي بیش از حد در سیاست از اخلاق استفاده میبرد و این امر به بقایای رژیم کمونست قبلی و احزاب ضعیف فرصت داده تا از وضع موجوده استفاده سوء نماید.

همچنان دلچسپی کشورهای همسایه برای ایجاد یک تحول دیگر در افغانستان است، که به حیث سوال بغرنج مطرح شده است، زیرا سران دولت کنونی افغانستان متحیر اند، بخصوص ایران و پاکستان، از افغانستان چه توقع دارند که ما از عهده ان بر آمده نمیتوانیم، و ان نظام چه خواهد بود و ان افراد که؟

شاید درک این نکته برای مردم افغانستان دشوار نباشد، مخالفت بیگانگان دال بر حقانیت، استقلال و عدم وابستگی دولت اسلامی افغانستان است، ازین رو پیشبینی می شود که پیوند مردم با دولت پیوسته انکشاف خواهد یافت.

بهر صورت این اقدام دسته بندی جدیدی میان نیروهای سیاسی در افغانستان بوجود اورده، در یکطرف احزاب جهادی و مردم افغانستان در جانب دیگر بقایای رژیم کابل و چهره های ضعیف و وابسته به اجانب که بدین ترتیب در اینده میتواند برای عملکرد های ایشان پاسخگو باشد و اینست معنی سوء تفاهم که هنوز تفسیرش چندان روشن نیست.

## نگرشی کوتاه بر متن ورق پاره ای تحت عنوان (تفسیری از کلمه سوء تفاهم):

تبصره: منبع الجهاد خلورم کال ۱۳۷۱ درېیمه گنه مرغومی - سلواغه.

بتاریخ ۲۳ / ۹ / ۱۳۷۱ در شهر کابل اوراقی نشر و توزیع گردید، که موقف دولت را در رابطه با وقایع اخیر ناشی از اختلاف شدید در گروهبندی اداره کابل منعکس می نماید.

متن برگه، قوای رشید دوستم و حزب وحدت را با همکاری پیر گیلانی و حضرت مجددی به سر نگونی دولت از طریق یک حرکت ناموفق کودتایی که گروه پرچم ببرک کارمل نیز در خفای آن نقش داشت متهم نموده، واز یک جبهه ائتلافی قوت های مزبور نام میبرند.

جالب اینست که تا ایندم دولت، قوای دوستم و نادری را جز قوت های وزارت دفاع میدانستند و ارتباط دوستم، حزب وحدت و ببرک را مبنی بر ائتلاف انها اعتراف نمی نمودند ولی اینک علاوه بر اعتراف ائتلاف در کودتای ناکام نقش کارمل نیز یاد اور شده است.

ورق پاره از مداخله مستقیم دولت ایران نیز نام میبرد و از روش پاکستان و سعودی نیز مبنی بر (بیش از حد محاسبه کردن قوت های دوستم) شکایت می نماید.

همچنان جعفر نادری، دوستم و حزب وحدت را در برابر اینکه جمعیت بخاطر حمایت از انها و به اصطلاح پشتیبانی از حقوق اقلیت ها اتهامات گوناگون و مشکلات زیادی متحمل گردیده، ایشانرا به پشت پا زدن به این همه دلسوزی های جمعیت ملامت قرار داده، این عملکرد

انها را از دست دادن یک متحد نیرومند (جمعیت) تلقی نموده است.

نقطه جالب دیگر اینست که ایشان به خاطر جلب حمایت مجدد ائتلافیون مسله پشتون و تاجک را مطرح نموده گو اینکه پشتون ها از اول با انها روابط خوب نداشت، ازینرو نمی بایست با تاجکها که جمعیت خود را نماینده و وارث آنها دانسته، چنین روش خصمانه ای از خود نشان میداد، در حالیکه مسئله این قوم و ان قوم در میان نبوده و نیست و دامنه زدن به این اتش به نفع هیچ کسی تصور نمی شود، درین ضمن دولت باز هم چشم امید بسوی انها دوخته تمنا می نماید که انها در صدد جبران این عمل شان اقدام نماید.

از سوی دیگر دولت با وصف این باز هم هیچگونه اقدامی در مقابل سران و متهمین کودتا از خود نشان نداده، گواینکه از هر نوع اقدام متقابل عاجز بوده در صدد کسب حمایت انها می باشد.

نتیجه ای که ازین مطالب بدست می اید، اشتباه رهبران دولت است که بخاطر کسب و دوام اقتدار جناح هائیکه قطعاً در جهاد نقش نداشته و بر ضد آن فعالیت نموده محور قوت و حمایت خود میدانستند، از همینرو حوادث ناگوار و دلخراش، جنگ های تباه کن، چور چپاول و عدم استقرار توسعه یافته، صلح، امنیت و وحدت ملی را در کشور همچنان تهدید می نماید، اعتراف دولت بر این که دوستم و نیروهایش از نظر سیاسی میان قوت های مجاهدین تنها بوده و هم از جهت مواضعش در شمال اسیب پذیر می باشد خود بیانگر این حقیقت است، که ائتلاف و حمایت بیدریغ دولت از انها خود در تشهیر سیاسی و تبلیغاتی قوای دوستم قیمت گزافی بود، که دولت در پرداخت ان به انزوای سیاسی و مردمی مواجه است، پذیرفتن و بازگو نمودن این

مسئله که دوستم و ملیشای ان چیزی بیش تر ازنیروهای تبلیغاتی نیست دولت را در راه حصول دوباره موقف و اهداف سیاسی اش کمک چندانی نخواهد کرد. درین برگه بالهجه شکایت امیز از روش ایران و پاکستان نیز شکایت صورت گرفته متذکر میگردد که کشورهای ایران و پاکستان از رهبران کنونی دولت چی توقع دارد که از عهد ان بر امده نمی تواند، ان نظام چی و ان افراد که؟

مطلب فوق مبین این واقعیت است که گویا رهبران کنونی حاضر اند، همه سیاست ها و مقاصد سیاسی و ... ایران و پاکستان را تامین و پیاده نماید، پس ضرور و لازم نیست که انها در جستجو، ترجیح و استخدام گروها و پشتیبانی اشخاص و نیروهای دیگری باشد، که نباید چنین می بود، در اخیر دولت این همه وقایع و جریانات را بنفع خود حساب نموده انرا در ایجاد پشتیبانی وسیع دولت تلقی نموده ولی حیف اینکه باز هم این پشتیبانی را صبغه قومی دانسته، انرا پیروزی بزرگ خود میدانند.

ورق پاره مبین دسته بندی اتهامات است که علیه یکدیگر بکار میبرد... اتهام کودتاه، ائتلاف با پرچم، خلقیها، دوستم و... اتهامات همرنگ و مشابه که هر جناح مسئولیت آنرا بدوش داشته، چندین بار به ارتکاب آن دست بازیده...

این همه مسایل در مجموع قابل تامل بوده که از حیث عواقب وخیم ان از تکرارش جلوگیري صورت گیرد.

ما ازین بیشتر نمی خواهیم بر مطالب این ورقه بحث و تبصره نمایم، تنها بحیث یک سند و ارائه معلومات بیشتر در رابطه با وقایع و جریانات اخیر کشور متن کامل انرا نشر نمودیم.

## د ایډیالوژیو اغېز:

جمعیت ایډیالوژي ته شاکړه، له سید قطب، حسن البناء او مودودي په مخ اړولو یې په قومي او ژبنی کچه بېلا بېل عناصر پر ځان راټول کړل.

د ژبې، قوم او سمت بیرغ په پورته کولو یې انګېزې غوړولو ته مخه کړه، خو حزب بیا له خپلې ایډیالوژیکي او سیاسي کلابندي ونشوی وتلی ځکه خو یې د ملي مقاومت موقعیت خپل نه شوی کړی، د ایډیالوژی د کوډو اغیز مات نشو، نوې داعیه، شعار او انګېزه ایجاد نه کړی شوه.

د روښاندو یو پلاوی تېر تریخ ماضي ته په شا اړولو د دغسې یوې هیلې د غوړېدا په نیت له حکمتیار سره چهار اسیا کې کېناست خو ښه خاطره او پایله یې ترلاسه نه کړی شو.

وایي(........) د حزب پر مالي سر چینو د خپټې اچولو ترڅنګ په تصمیم نیولو کې د خپل سیاسي نفوذ او اغېز په برخه کې د حکمتیار له کورنی سره د خپښی په مټ د دغه فرصت مخه ډب کړه، دلته وه چې حزب د یوه پراخ او سرتاسري ملي قوت د جوړېدا چانس بایلود.

ځکه خو نه د ملي قیام خپه راپورته شوه او نه د ملي سیاست د ستېج هنګامه.

# لوړه بیه

د ډاکتر نجیب الله له سقوط وروسته ښایي کابل ته د جنرال دوستم لومړی سفر دی، که څه هم احمدشاه مسعود او رباني د ده په توره د کابل لړزانده تخت ته رسېدلي، خو په دغه یو نیم کال کې دوستم خپله بیه دومره لوړه کړه، چې مسعود، رباني یې نیستی ته کښنول، خو نیستی پاکه پاچاهي ده، د آمر صاحب او استاد پاچاهی په کار ده.

د دوستم هرکلی په داسې کچه او بڼه وشو لکه د کوم بهرني هېوادمشر... له هوایي ډگر تر ارگه د واټ دواړو غاړو ته د دولت او جنبش بیرغونه ځوړند او د رباني، مسعود او دوستم سلگونه تصویرونه لگېدلي، د دوی ترمنځ یارانه د تورې هغه گرځېدلې، د تورې یاري که هر څو خوږه وي، پر سرخوږي یې سترگې نشي پټېدی، چې دوستم له دې وړاندې ډاکتر نجیب الله ته دغسې سرخوږی گرځېدلی و...

هو!

دوستم لکه د یوه بهرني هېوادمشر کابل ته راغی، ښاغلي رباني یې خپله هرکلي ته هوایي ډگر کې ولاړ دي، له الوتکې په راکوزېدو استاد څو گامه ور وړاندې شو، له دوستم سره یې د تاوده روغبړ غېږ پرانیسته، پر تندي یې ښکل کړ، د گارډ د تشریفاتو قطعه یې ورته وړاندې کړه، او د موټرو په لوی کتار کې یې د ارگ پر لور بدرگه کړ.

حکومتي خپرونې د دوستم د سفر په اړه هغسې مطالب خپروي لکه د کوم هېوادمشر چې په رسمي سفر پلازمېنې ته رابلل شوی وي.

بسم الله الرحمن الرحیم

# فرمان رییس دولت اسلامی افغانستان

شماره: ۱۴۹۶ع
تاریخ ۱۳۷۱/۱۱/۸

در باره تقرر ستر جنرال عبدالرشید (دوستم) بحیث
معاون وزارت دفاع ملی جمهوري دولت اسلامی افغانستان

---

تقرر محترم ستر جنرال عبدالرشید (دوستم)
بحیث معاون وزارت دفاع ملی جمهوري دولت اسلامی
افغانستان از تاریخ صدور فرمان منظور است.

(پروفیسور برهان الدین ـ ربانی)
رئیس جمهور دولت اسلامی افغانستان

دوستم د ستر جنرال، د ملي اسلامي جنبش قهرمان دانشمند او مفکر لاربښود. او دومره القابو یادېږي، چې د تره کي هغه نشوی پسې رسېدای، کابل راډیو تلویزیون، د شپې د اتو بجو خبرونه د دوستم سفر، ملاقاتونو او د شخصیت ستاینو نیولي...

جنرال دوستم به د ډاکتر نجیب واکمني کې هم ارگ ته ورغلی وي، خو د ملېشې یوه قوماندان په توگه چې نجیب الله ته یې د خپل مزد او اجرت د زیاتوالي لمن غوړوله، خو دا وخت یې ارگ کې د یوه اتل مېلمه په توگه درناوی کېده، چې پر وړاندې یې د اسلامي حکومت او عمري خلافت مدعیان له خپلو ږیرو او عبا قبا سره ډېر حقیر درېدلی وو، ټول شعارونه او ادعاگانې یې د دوستم پښو ته ورغورځولې وې...

د تحریك، ناب او انقلابي اسلام ټیکه دارانو د دوستم دیدن ته اوږده کتارونه لگولي...

بالاخره دوستم ارگ کې د مجاهد ملت او سر لوړو شهیدانو پر اوږو او هډونو وخېژول شو، استاد رباني ترکیې ته د خپل سفر پر مهال د جمهوري ریاست د سرپرست په توگه خپل ځای ناستی پرېښود...

هلته حکمتیار ته هم د دوستم په مینه کې د هجران او بېلتانه سختۍ نور د زغملو نه وې، همایون جریر چې وار دمخه یې د دوستم په خپلولو پسې لگولی و، دا واټن رالنډ کړ...

دوستم اعلان کړه چې له حکمتیار سره د صدراعظم په توگه نه، بلکې د حزب اسلامي د مشر په حیث گوري، حکمتیار په دې اند و، چې منه دې وي د ولې دې وي، ځکه خو یې د دوستم دا خبره خپل تحقیر نه شوی گڼلای چې له وړاندې یې د خپل مزاج په بلو سکروټو یخې اوبه تویې کړې وې.

د دیدن نېټه راورسېده، حکمتیار دوستم یو بل ته د مینې غېږ خلاصه کړه، د یو بل لاسونه یې ټینګ کړل، یو بل ته په موسکا شول، او د دوی ترمنځ په جګړو کې د وژل شویو زرګونو افغانانو ارواوې آسمانو کې وتښتېدې...

خومره ازبکو، پښتنو او تاجکو په دغو جګړو کې سرونه خوړلي، چاته یې پته او درک شته...؟

د پخواني کمونیست رژیم د بقایاوو او وحشي ملېشو پر ضد د جګړې جواز او فتوا د دوستم حکمتیار د خوږو او پستو خنداګانو په کټ کټ کې سملاسي ونغښتل شوه...

د دغو دوو تنو د خندا څپو د مرګونو، لوټماریو په ټوله فاجعه خاورې واړولې.

داسې ښکاري لکه دغه جګړو کې د زرګونو وژل شویو هېوادوالو ککرۍ د دوستم پر اوږو د قهرمانۍ د مډالونو او نښو په بڼه لګول شوې وي، او حکمتیار د دوستم هرکلي ته هر پل د دغو بدنامو ملېشو پر ضد جګړو کې د وژل شویو افغانانو پر ککریو ږدي...

تضاد هغسې چې د منافقت کچې ته رسېدلی... له ډاکتر نجیب الله سره جوړه او پوهاوی له جهاد سره خیانت، خو له دوستم او... سره ایتلاف د مجاهدینو او اسلام برې...؟

ددغه مارکېټ رایج الوقت سکه د افغان مظلوم ملت وینه او عزت دی چې د سرونو د سوداګرۍ بېې ټاکلی او لوړولی شي...

بسم الله الرحمن الرحیم

## ریاست دولت اسلامی افغانستان

یادداشت

تاریخ

### فرمان

محترم ستر جنرال عبدالرشید دوستم

با رعایت وتطبیق مواد یکه طی موافقتنامه جداگانه
روی آن اتفاق شده جنبش ملی اسلامی را بعنوان یکی از
نهادها و نیروهای مطرح درخدمت به اسلام
و مردم متدین افغانستان به رسمیت میشناسم

پروفیسور برهان الدین ربانی

رئیس جمهور افغانستان

# پاکستان ته د جنرال دوستم بیول

کابل کې د پاکستان شارژ دافیر ښاغلی فدا یونس پخپلو یادښتونو کې کښلي... جنرال دوستم غوښتل له پاکستان سره نژدې اړیکې ولري، کابل کې جنرال عالم رزم او ضیاء دغه اړیکې تر ډېره غځولې وې...

جنرال عالم رزم د هوايي ځواکونو افسر و، چې څه موده یې هند کې د افغان سفارت پوځي اتشې په توګه دنده ترسره کړې وه.

ضیا د افغان استخباراتو ځری و، چې شوروي اتحاد کې ټریننګ شوی و، ده هند کې د افغان سفارت دویم سکرتر په توګه هم دنده ترسره کړې وه.

له فارسي، پښتو سربېره يې پر اردو، انګریزي، روسي هم خبرې کولای شوی.

کابل کې د پاکستان سفارت لومړی سکرتر ښاغلي محفوظ له ضیاء سره په اړیکو ټینګولو توانېدلي و، د ده په خوله مو دوستم ته د پاکستان بلنه ورکړه...

د ۱۹۹۲ زیږدیز د دسمبر پر ۲۲مه دوستم له خپلو ملګرو سره د پاکستان هوايي ځواك اير بيس کامره هوايي ډګر کې له الوتکې کوز شو، هرکلي ته يې زه "فدايونس" د آی ایس آی ډګروال اشرف او د بهرنيو چارو وزارت د افغان څانګې مشر قاضي همايون او ښاغلی اکرم ذکي ولاړ وو، له لنډ ځنډ وروسته مو جنرال دوستم راولپنډۍ ته راووړ، پر سبا يې له صدر اعظم نواز شريف سره وليدل، بله ورځ يې د پوځ له سر لښکر او ولسمشر سره وکتل.

يوه ناسته کې جنرال دوستم وويل: احمدشاه مسعود يې له پاکستان سره د اړيکو مخالف دی، د مسعود په خبره، پاکستان خپل ملګري په نيمه کې پرېږدي، کله يې هم له چاسره تر پايه نه ده پاللې خو دی له پاکستان سره په اړيکو وياړي.

جنرال دوستم کومه ناروغي لرله C.M.H پوځي روغتون کې ډاکترانو معاينه او درمل ورکړل، خو د ناروغۍ يې څه پته ونه لګېده.

جنرال دوستم مزارشريف کې د پاکستاني قونسلګرۍ په پرانيستو خوښي وښووده، او د مرستې ژمنه يې وکړه. کابل کې د ضياء او محفوظ اړيکې نورې هم پراخه شوې، د ۱۹۹۳ د نومبر پر اتمه د شپې ۸ بجې د سفارت د اړيکو څانګې مشر ډګرمن سليم خبر راکړ چې محفوظ کومه سيمه کې مېشت دی، خلك د ده او ضيا له کړو وړو پاربدلی، سفير امير عثمان ډګرمن سليم ته د ربړې په اواري کې د جديب خبره وکړه ډګرمن سليم وکړی شول پخپل حکمت ستونزه اواره کړي.

(۳)

## د خبرو بل پړاو:

# اصلاحي شورا

کابل د جگړو دوزخ کې سوځي، حقاني صاحب وايي کابل ته ځم که سوله راشي له بېلا بيلو کسانو سره گوري دا شل ورځې کېږي، له ميرانشاه راغلی، کرې ورځ خلك ځي راځي، مخور، قوماندانان، ټول په سوله ټينگار کوي، غواړي جدي گام واخيستل شي.

انجينر احمد شاه احمدزی هم پرون راغلی و، مزمل صاحب او ملگري يې هم راځي، وايي ځو پر دواړو غاړو ننواتې گرځو، که په ننواتې نشوه، زور ورسره کوو...

د تفاهم او ملي يووالي شورا خپلې غونډې لري، زه غواړم له حقاني صاحب سره ناست وای، که د يو بل مخ او استر شوي وی يو څه به جوړ وی.

استاد حکيم تنيوال لپاره مې له حقاني صاحب وخت واخيست ۵/۱۱/۷۲نېټه له ماښام وروسته مې طبق وعده تنيوال صاحب حيات اباد ته راووست، له دې وړاندې هم تنيوال او غروال صاحب له حقاني صاحب سره کتلی او دده په مالي مرسته يې د يوه کلتوري دفتر د پرانستو هوکړه تر لاسه کړې وه... درې نيم ساعته خبرې وغځېدې، د پکتياوالو په لهجه يې زړونه ښه تش کړل، د دوی خبرو کې د اختلاف

کوم ټکی راپورته نه شو، تفاهم، تفاهم و، وپټېيل شوه، له تفاهم شورا سره ګډ کار وکړي د سولې ګډې هڅې، پلان او پروګرام رامينځ ته کړي، په ستنېدو کې تنیوال صاحب راته کړه، له حقاني صاحب هسې ليرې پاتې وو...

۲۷/۱۱/۷

لیکوالو ټولنې ته ولاړم، هېوادمل صاحب په ځانګړي مينه سړي ته ښه راغلاست وايي.

تود روغبړ او د کتابونو ډالۍ يې همېشنی عادت دی، خو دا ځل يې له ما ځانګړې مننه وکړه، چې حقاني صاحب سره مو د اړيکو مخه ورپرانيستله.

حقاني صاحب ته وايم دا ځل ښايي په يوه رسمي چوکاټ کې د سولې فعاليتونه وغځول شي، لومړی دا چې دې ته يو نوم غوره او لايحه ورته جوړه کړي شي.

راته وايي حزب خوبه نه جوړوې...؟

حيات اباد حويلی ته ډلې ډلې خلك راځي، کری ورځ په ناستو غونډو تېرېږي، زه غونډو کې نه يم، يا به راباندې بې باروه وي، يا به مې دغسې غونډو کې د ګډون له اهليت بې برخې ګڼي، کېدی شي د ځينو نه خوښېږم د دغسې ناخوښی اثار زه په څېرو کې له ورايه ليدلی شم، بلکې له مودو يې ګورم، زه هم غلی له حوېلی وځم له خپلو ادبي او مطبوعاتي ملګرو سره په خوږو بنډارونو ورځ واړوم.

جمعيت مجاهد جريده پېښورته رالېږدولې، ګل حاجي پلازا کې يې دفتر پرانيستی، چې خپرنيز ارګان ته کابل کې د خپراوي مخه نه شي مونداى، د نظام او حکومت د ادعا سپين سترګی ته به سړی څه ووايي،

تېرې دا چې مجاهد جریده له پېښوره کابل کې د حکومت چلولو تېر وهي:

د مموزي هغه سنگر ته ســــــلام
چې له المان نه په میدان ډزې کا

زما له پېغورو تنگ دی چې ورشم تول غونج شي.

قانع صاحب هم دغه دفتر کې... لکه شپړمه گوته، د دفتر والو د سترگو اغزی... د پېښورو خبره کباب کې هډوکی... دی هم هره خبره کې اړه ورته نیسی... شمس پر مېز لوی لوی کتابونه ایښي... قانع په مسخرو وایي... شمس نن سبا د فرهنگ حمیدیه په مطالعه بوخت دی... سر یې نه پورته کېږي...

ډاکتر فاروق اعظم د لایحې جوړېداکې خورا زیار ویوست، نوم یې اصلاحي شورا ورته خوښ کړ، له حکمتیار سره حقاني صاحب په ستلایټ خبرې وکړې، له مسعود سره مخابره کې رابطه ټینگه شوه.

مسعود د اصلاحي شورا د غړو او برخوالو پوښتنه کوله، د ډاکتر اعظم د نامه په اورېدو یې لکه خوابده کړې وي... پر ده یې د حزبي تور پورې کړ...

د سلواغې پر ۲۵مه کابل ته په تلو سلا شوو له چای وروسته حرکت حتمی و، خو تر هغې چې اودسونه تازه کېدل او د نفلو لړی پای ته رسېده غرمه وه، ډوډۍ ته لږ نور هم وځنډېدو د ماسپښین لمانځه ته بیا اودسونه... ایله پر دریو بجو لومړنی موټر له حویلی ووت، ورپسې د موټرو کتار وخوځېد، تورخم ته په رسېدو پر کربښه له کوم جنجال پرته واوښتو یو نیم ساعته وروسته جلال اباد کې یوو، چې لار بیخي کنډ و

کپر ده، موټران په هسکو ټیټو کې ځمبېدل.

لوړ مازیگر جلال اباد کې کوز شو، د یوې عربي مرستندویه اداري دفتر یې زموږ د مشتېدنې لپاره چمتو کړی، چې ایله په کې ځائیدی شوی، خو شپه تېرول گران دي، چې ملایانو، حاجیانو او شیخانو له لاسه د سړي سترگې نه شوای سره ورتلی.

په کومه کوټه کې چې زه وم، د شپې یوه برخه په خوربدا او نوره په نفلو رڼه تېرېده، خوربدا داسې چې ببلا ببل ډاروونکي غږونه، آوازونه ختل، هغسې چې کوځه ډب سپي یې مقابلې ته راغونډېدل، پر سبایې د ماسختن له لمانځه وروسته سپین غر هوټل ته ولاړم، دلته مو ښه د خوند شپه تېرولی شوای.

جلال اباد کې مو یوه نیمه اوونۍ واړوله، د ننگرهار شورا سره هم اوردې خبرې وشوې، زه بیا هم پکې نه یم... حاجي قدیر چې له خپلو ملگرو سره راغی له دروازې د باندې له موټره کوز شو، موټران تش حوېلۍ ته ننوتل، حاجي صاحب پلی له دروازې ننوت د ده دغه ادا پر ما خوږه ولگېده، حاجي قدیر کې د مشرتابه صلاحیتونه څرگند دي، د لیډرشیپ خپل کمال او ځانگړنې دي چې ډگري او شهادتنامې یې نشي راتولولی... ماته تر ډېره فطري او طبیعي ښکاري- سمه ده، لوړې زده کړې یې ځلولی او غوړولی شي خو په یواځې سر ډگري لیډرشیپ نه شي کېدای... (د حاجي قدیر په اړه ځانگړې لیکنه)) ماښام... هوټل کې حاجي صاحب دین محمد مېلمانه کړو نژدې یو نیم سل کسانو دغه مېلمستیا کې برخه لرله.

چرگان، پلوونه، کبابونه، غوښې، مېوې باد شوې... د کابل له جگړو، د اسلامي حکومت له غضب را شېوه شوي کډې په دښتو،

واټونو، پارکونو او لاندې سړک پر غاړه په وچ ډاګ بې اسرې پرتې وې... زړه کې مې له هرې مړې سره دا خبره ګرځېده چې راشه چيغه کړه او د عمري عدالت شعار او انصاف ژمني يې مخ کې پيغور کړه... لکه د خپلې بې همتی پړ وم... يواځې په ځان مې زور بر و، درېيمه مړی مې له ستوني تېره نشوه...

جلال اباد د کابل جګړو له رالېږدېدليو ډک دی، ډېرې کورنی، پارکو آن د لارو پر سر اړولي، پنډغالو کې ځای نشته.

د ملګرو ملتونو استازی پټينر ناز د جلال آباد سرشاهي کمپ کې وويل: نړيوال نور افغانانو ته له غوړ نيولو سترې شوي دي.

د سره صليب استازي جان کرک په خبره د ورځې ۳۵ کورنی جلال اباد ته د لېږد مخه مونداى شي... سرشاهي کمپ کې ۳۲تنه له ګرمي جل وهلي او مړه شوي دي... يوه مياشت د مخه چې دلته کوم قبر نه ليدل کېده وس د بېلا بېلو ناروغيو لکه ملاريا، وچکی، اسهال له امله د مړيو هديره غځېدلې...

د کب په ځلورمه له غرمې وروسته کابل ته وخوځېدو، ځرنګه چې کابل ته غځېدلې لارې، د خوراکي توکيو د لېږد پر وړاندې تړلي نرخونه خورا لوړ ختلي، حقاني صاحب په بېلا بېلو توکيو بار يوه لارۍ ورسره کړه، سروبي کې د قوماندان زرداد پاټك ودرولو، ويل يې دا لارۍ درځخه ګرځوو.

حقاني صاحب خپله ورکوز شو چې ورته ووايي د خپلې اړتيا لپاره يې خوراکي مواد بار کړي خو چا خبره نه اورېده، خپله قوماندان زرداد نه و، يا يې ځان پټ کړ. د افرادو چلند يې ستوغ و، وضعه ترينګلې شوه، روژه ماتی همدلته راباندې راغی. جومات يې جوړ خو د لمانځه درك په

کې نه لګېده، موږ سره د روژه ماتي څه نه و، اذان مو وکړ پر یوه کجور دوو کسانو روژه ماته کړه، په جمعه لمونځ وشو، بالاخره مو لارې ورته پرېښوه، ترې روان شوو.

## د کب پنځمه:

# د حقاني صاحب له اړخه مخابره کې له حکمتیار سره اړیکه:

حکمتیار صاحب وویل زرداد ته یې ویلي چې د موادو لارې خوشي کړي.

## د کب شپږمه:

لارې راورسېده خو مواد سم نیمایي غارت و...

## د کب اوومه:

قوماندانان او مخور راځي په لایحه تقریباً توافق شوی، اوس نو باید مشرانو ته ورشي، زه غونډو کې نه یم چې نه مې ورغواړي، کله کله له ډاکتر اعظم او کشاف صاحب سره د بنډار مخ مومم، د جنرال تنې دواړه یاوران، ډګرمن احسان الله او احمد شاه کوټه کې راسره دي، مشکوك، خو معلومات ورسره شته، رښتیا دروغ درته بادوي، خذ ما صفا دع ماکدر...

## د کب نهمه:

د زکام له امله مې سخته تبه ده، دارو درك نه لري، خواره شخي وریځې دي چې سینه یې نوره هم راتخته کړې ده.

لکه نیستي گډه ده، حقاني صاحب له بټوې څو زره افغانی راویستې، ما ورته کړه حاجي صاحب اوس مې زړه ته د نیستی خبره ولوېده، ویل هغه څنگه؟

ما وې لومړی وار دی چې له بټوې پیسې راباسې... ویل نیستي پاکه پادشاهي ده.

د مامور هاشم د واسکټ غاړه غوړو خیرو لاندې کړې ان تر اوږو تور خیري پرې راغلي، علي اباد ورته په ټوکه وايي، مامور صاحب هسې هم نیستي راغلې قیمتي ده غوړ نه پیدا کېږي، د حاجي صاحب هم لاس تش دی.

ددې واسکټ غاړه دې چې دېگ ته په گرمو اوبو ورمینځي له غوړو پیاز او مسالې خلاص یوو، یوه میاشت ښه کار ورکوي... په ولا چې له نباتي غوړیو خوندوره زیمیله راوباسي...

## دا واري نوې پرېکړه:

**حقاني صاحب له امریکا غږ سره مرکه کې وویل:**

له متخاصمو اړخو مو وغوښتل چې موږ ته د منځگړیتوب رسمي بلنه او د فیصلې منلو تضمین راکړي، څکه چې له دې وړاندې یې زموږ د سولې پرېکړه له تعهداتو سره نه ده منلې.

اوس د لارې په خلاصولو او دایمي اوربند د دواړو غاړو توافق راغلی، دغسې د درنو وسلو په ډیپو کولو هم توافق شوی، دغه وسلې به د کابل ٦٠ کیلو متری پوځي تاسیساتو کې زېرمه کېږي.

د سیاسي نظام لپاره باصلاحیته لویه جرگه یا شورا ضروري ده چې

تر اوسه موجوده نه ده، د دې لپاره هم تفاهم شوی، د قناعت وړ مواد لاس ته راغلي، امید دی چې د حل داسې لار راووځي چې ټولو ته د منلو وړ وي.

فیصله څکه وځنډېده، چې له اعلان وروسته له نقض او نه منلو سره مخامخ نه شي.

پوښتنه: عمده ستونزې څه دي؟

ځواب: د دوی منځ کې تربگنی ډېره زړه ده، زړه بدي سخته ده، بهرنۍ مداخلې هم شته خارجي خلك يې استعمالوي، د دوی ترمنځ چې کومې جوړې شوې هغه ماتې شوې، له يوه اړخ سره د استاد سياف اتحاد او محسني صاحب درېدلی، بل سره مجددي او حزب وحدت، ويل کېږي، د محمدي صاحب حرکت هم له رباني سره غاړه وړي، مسئاله ډېره عميقه ده، ډېر حقوق تلف شوي، خو چې فيصله وشي او عملي نه شي، ماته شی هيڅ گټه نلري.

پوښتنه:تاسې د خپلې پرېکړې د عملي کېدو تضمين ترلاسه کړی؟

ځواب: دا ډېر گران کار دی، يوه خبره ده چې جنگ ټول غندي د کابل اهالي او قوماندانان ټول له جگړې برکنار پاتې دي، وايي نور دا جنگ نشي تحمل کولای، بې تفاوته نه شي پاتې کېدی، ولسي مخالفت د مظاهرو تر حده راځرگند شوی دی.

ښکېلو اړخونو سره هم خپل ټول کسان جگړو کې برخه نه لري، جنگ کې يوازې د تنظيمو مفسد عناصر برخه اخلي، چې د لوټمارۍ او غلا موقع ترلاسه کړي.

امکان لري ملل متحد دوی جنگي مجرمين وگرځوي او له حکومت بالکل وايستل شي.

ملت چې کله د سولې غږ اورېدلی هرکلی یې کړی، ملاتړ ته یې درېدلي، ځکه خو موږ هیله من یو دغه فیصله ومني، موږ له دوی کلك تعهدات اخیستي، الله تعالیٰ مو پرې گواه گرځولی، ولس مو پرې شاهد نیولی.

پوښتنه: هر لوری پر خپل دریځ د درېدو خبره کوي...؟

ځواب: ډېره د شرم خبره ده، دا د مرگ ژوبلې او کرکې باعث دی، دا هجرتونه د اقتصاد تباه کېدل گوره، ملت د دوی د غرضونو قرباني شو، نه روغتونونه فعال دي نه خلکو ته د خدمت فکر شته، ظالمانو له دې حالته دا فرصت ترلاسه کړی چې پاتکونه واچوي، په خلکو یې خو نیزې اسمان راټیټ دی، د دې پړه ټوله د دوی پر غاړه ده.

پوښتنه: د سولې لپاره ځینې نور شخصیتونه هم فعال دي؟

ځواب: د سولې حرکت چې له هرځای وي د تقدیر وړ دی، ملاتړ یې کوو، غواړو خپل فعالیتونه او هلې ځلې گډې کړی شو.

د سیاسي نظام له جوړولو وړاندې باید جگړه ختمه شي، جنگ چې برقرار وي، که سیاسي نظام جوړ هم شي له دغو جنگي ډلو هېڅ نظام په امن نشي پاتې کېدی، دا به بې معنا وي، ښه دا ده چې طرحه یوه وي، د سولې هیئتونه او سیمینارونه ټول په داخل کې وشي، جنگ قطع شي، دایمي اوربند وشي، لارې خلاصې شي، کابل غیر نظامي شي، متحارب قوتونه ووځي، متخاصمې ډلې لېرې شي.

له دې وړاندې د نظام جوړولو کار زما په نظر عبث دی.

پوښتنه: د ملگرو ملتو له هیئت سره ستاسې ملاقات څومره گټور دی؟

ځواب: دوی مشخصه طرحه نه لري، یوازې سروې او بررسي کوي،

نظرونه جمع کوي، بېلا بېلې طرحې به وړي، غور به پرې کوي، بیا به یوه طرحه تعقیبوي، دا طرحه ورسره نه شته چې عاجل اوربند وکړي، چې لارې خلاصې شي، ځکه خو دوی زموږ د طرحې استقبال وکړ، چې دا طرحه په هغه موادو مشتمله ده چې ضروري دي، عملي جنبه یې جوته ده.

## مطبوعاتي کنفرانس کې د مولوي حقاني د وینا غټې ټکي:

له کومې ورځې چې مجاهدینو حکومت نیولی، له هماغه وخته جنگونه قتل او قتال روان دی، کله چې د حل او عقد شورا له لارې د یوه قانوني حکومت د جوړېدا پروسه پیل شوه، خلک هیله من شول او په دې انتظار کې وو، چې له دې لارې به یو منل شوی قانوني حکومت رامینځته شي، امن او استقرار به ټینګ او د خلکو حقوق به خوندي شي، ولایتونه تر مرکز پورې وتړل شي، خانه جنگي او د لارو بندول به ختم شي، خو متاسفانه دغې شورا دغسې استعداد او قانونیت نه دی پیدا کړی، چې داسې یوه حکومت جوړېدو ته مخه پرانیزي، چې د جګړو او دښمنیو مخه ونیسي او موجوده بحران او مشکل حل کړي، دغه شورا باید تزکیه او تکمیل شي او د اهلیت او استحقاق له مخې ورته نمایندګان غوره شي، استاد رباني زموږ پیشنهاد ونه مانه، پیشنهاد داسې و، چې یو عالم یو قوماندان او قومي مخور کمېسیون کې راشي، چې د نمایندګانو د انتخاب څارنه وکړي، چې غیر مستحق کسان او د حزبیت او قومیت له مخې د نمایندګانو د ټاکلو مخه ونیول شي، د پیسو

او رشوت مخنیوی وکړي.

اوس چې یو شمېر نماینده گان کابل ته راغلي، په اړه یې ډېر انتقادونه او اعتراضونه موجود دي، پینځو تنظیمو (مولوي صاحب خالص، حضرت صاحب، حکمتیار صاحب، گیلاني صاحب، محمدي صاحب) دا شورا تحریم کړي، نو د دې کشالې د حل لپاره زموږ پېشنهاد دا دی، چې شورا تصفیه او تزکیه شي، مستحق کسان چې پاتې دي راوغوښتل شي، کومو ولایتو لکه ننگرهار، کونړ او لغمان چې شورا تحریم کړي، د دوی قناعت حاصل شي، په دې هکله باید د ټولو اړخو شکایتونه واورېدل شي او رفع یې کړي.

له بلې خوا حکومت د فشارونو له لارې د ځینو له خوا ناقانونه امتیازو ته اړ شوی، د دوی نماینده گان یې فوق العاده شورا کې منلي، ځکه خو دغې شورا قانوني او حقوقي بڼه او حیثیت نه دی پیدا کړی.

که شورا په همدغه ناقص شکل دایره شي، نه دا چې موجوده مشکلات به حل نه کړی شي، بلکې د نورو مشکلاتو د رامینځته کېدو باعث به هم وگرځي.

موږ له هغو خواوو سره چې د جنگ په صحنه کې ولاړ دي، لکه حکمتیار صاحب خو واره لیدلي، دا مو ورته واضح کړې، چې له جگړې لاس ونیسي، معضله په خبرو حل کېږي، باید له جگړو ډډه وشي، د دغو جگړو نوي فیصده زیان بېوزلو خلکو ته رسېږي.

له حکمتیار صاحب زموږ دویمه غوښتنه دا وه، چې که حکومت د شورا په هکله ستاسې ملاحظې رفع او شورا قانوني بڼه غوره کړه، خپل نمایندگان شورا ته ولېږي.

د ده یو اعتراض دا و چې استاد رباني له ځان سره واک غیر قانوني

ساتلی، ځکه د ده تمدید شوې موده هم پای ته رسېدلې، موږ وويل دا يوازې ستا نه بلکې د ټولو اعتراض دی، استاد رباني بايد واک خپل مرستيال مولوي محمد نبي ته وسپاري او شورا د ده تر اداري لاندې دايره شي.

د حکمتيار صاحب بل اعتراض دا و، چې دولت کې کمونست عناصر فعال دي، شورا ته يې هم مخه کړې، موږ ورته وويل، موږ ټول د دې مخالف يو، که داسې وي بيا به د حل او عقد شورا نه اوسي.

موږ حکمتيار صاحب ته وويل: داسې معلومات موترلاسه کړي، چې تاسې له دوستم سره د ايتلاف او جوړ جاړي خبرې پيل کړې، که داسې وي دا به ډېر ستر شرم او پېغور وي، تر اوسه تاسې ادعا کوله، چې حکومت ايتلافي بڼه لري، ځکه خو ورسره جنګېږم.

موږ ټولو ته په ډاګه کړې، چې که شورا د استاد رباني تر ناقانونه قدرت لاندې دايرېږي، دا به د شورا قانوني حيثيت جريحه دار او شورا به سانسور شوی شکل ولري.

موږ پېشنهاد وکړ، چې له کميسيون سره يو بل هيئت مل شي، چې د خلکو پر شکايتونو غور وکړي، شورا له تصفيې، تزکيې او اصلاح دمخه دايره نه شي، خو تر اوسه يې موږ ته اطمينان نه دی راکړی، که د ولس اعتماد حاصل نه شو، نمايشي صحنې او سياسي ډرامې مشکلات او بحران نه شي حل کولای، بلکې نور يې هم پراخوي، زموږ هيله او دعا ده، چې واکمنو او د قدرت خاوندانو ته هدايت ور په برخه کړي، په خپل هېواد او خلکو زړه وسوځي، چې دا ملت له جګړو او بدمرغيو وژغورل شي.

و اخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمين

## همغږۍ شورا کې د حکمتیار، دوستم او مجددي ائتلاف:

د عقرب پر ۲۸مه کابل کې د دوستم حزب وحدت او حکمتیار د ائتلاف اوازې یو خبر وګرځېد، پر کابل د دغو ځواکونو د ګډ یرغل اټکل د ټولو پر وړاندې و، په دې ټکو چې د حکمتیار ځواکونو په بالاحصار او مرنجان غونډۍ کې د دوستم له ځواکونو سره د ګډې حملې تیاری نیسي.

له دې وړاندې دوستم په پټه پاکستان ته بېول شوی، چې د همغږۍ شورا لپاره د زمینې په برابرېدو، د دوی ترمنځ غځېدلي کنګالونه ویلي کړي، له مسعود او رباني، خوابدی مجددي هم په دغه شورا ورګډ کړی شو البته حزب وحدت ورسره ونه شوای پاللی...

د مسعود ګټه په دې کې وه، چې نه جګړه وي او نه سوله، د چنګابن په ۲۰ مه (۱۳۷۲) دوستم له حکمتیار سره کلاچه کې کتلي وو...

دوستم حکمتیار ته وویل:... زما تاسې نه ګیله ده، چې ما پسې تبلیغات وشول، چې دا کمونست دی، د نجیب رژیم له بقایاوو دی، په داسې حال کې چې تاسې خو وارې ویلي، چې د دولت داخل کې خپل کسان لرئ، زه دې هم باید له هغو کسانو ګڼلای وی، موږ چې کله شمال کې حرکت پیلاوه، له ما سره وېره وه چې د دې اقدام له امله به تر ملامتۍ او فشار لاندې راشو، ما مولوي عبادي ته وویل: د بینین سیوان طرحه روانه ده، داسې ونه شي چې هغه او بین الملل ووایي چې دوی زموږ تلاش تخریب کړ؟ مولوي عبادي ځواب راکړ، که موږ قوت

ولړو، بیا به څوک زموږ خلاف تبلیغ نه کوي...

ده له حکمتیار د دوه په دوه خبرو غوښتنه وکړه.

دوستم سره څو تنه ملایان هم وو، یوه ملا ته یې مخ واړاوه چې قران کریم تلاوت کړي، خو حکمتیار اوږده موعظه ورکړه.

په پلچرخي کې یوه ورځ مزمل صاحب په خبرو کې وویل: زما یو دوست دی هغه بله ورځ یې راته ویل: په دې جاینماز مې د مجاهدینو د بري دعاګانې کړې خو د مجاهدینو بری په داسې بیه موږ ته تمام شو، چې نه په مرګونو پوره کېږي، نه په دې ورانه ورانی، هغوی چې په دعاګانو مو غوښتل اوس مو ځان، عزت، مال، وطن او ولس ته بلا وګرځېدل، خپل جاینماز ته شرمنده یم.

مزمل صاحب یوه بله جالبه خبره وکړه، چې د دغو مشرانو او رهبرانو ژوند او طبیعت ټولو د جنګ جګړې او تشدد رنګ اخیستی دا د سولې او سیاست خلک نه دي، د جنګ او تشدد خلک دي، بهتره دا ده چې دوی کشمیر یا بل کوم ځای ته لېږل شوي وی او هلته یې د جګړو هنګامه توده کړې وی.

۲۷ - دلو - ۱۳۷۲ م



بناغلی ورور مولوی جلال الدین حقانی صاحب!

السلام علیکم ورحمت الله وبرکاته.

په داسې وخت کښې چه د کابل بې ګناه اوسېدونکي د جګړو په اور کښې سوځي د سولې د پاره ستاسو صادقانه هلې ځلې د خدای تعالی (ج)، او د هغه د مخلوق د رضامندۍ وړ ګرځي.

د سولې او بې وسلې کولو غیر جانبدار سازمان چه د سیاسي واکمنۍ د پاره فعالیت نه کوي پدغه عالي خدمت کې ستاسو کامیابي غواړي. هیله من یو په بېړه داسې میکانیزم موافقه وکړئ چه د تل د پاره د جګړو، زورزیاتي، کودتا، قدرت غصبولو تجاوز او ظلم امکان - ضرورت - او مجبوریت له منځه ولاړ شي.

د سولې او بې وسلې کولو غیر جانبدار سازمان "او پي ډي" چه د هر وخت د شرایطو مطابق وړاندیزونه کوي یو ځل بیا نظر څرګندوي:-

یو مملکت د هغه د ټولو اوسېدونکو شریک کور دی. په دې کور کې حقوق او مکلفیتونه لري. د دې کور د اوسېدونکو حق دی چه په خپله خوښه خدمتګاران وټاکي یا ئې معزول کړي. په عزل او تقرر کې د اکثریت رایه معتبره ده او دا رایه یوازې انتخاباتو څرګندېږي چه د هر ډول جعل، دوکې، فریب تهدید او ویرې دروازې تړلې وي. که چیرې دا ډول انتخاباتو ته لاره هواره شي او عملي شي د بې باورۍ، بهانه تراشۍ، ماجراجوئي ځای اعتماد، اقناع او ګډه همکاري او افغاني ورورولي نیسي. موږ د دې وخت د حالاتو مطابق حاضر یو چه له تاسو سره د بېړه داسې ممکن او اساسي میکانیزم په جوړولو او عملي کولو کښې مرسته وکړو چه د ټولو افغانانو په خوښه څو دغه افغان په ضرب نه وي په اقدام

امیر بهلول

د سولې او بې وسلې کولو سازمان رئیس

# شرمېدلي ملګرتیا؛ وحشتناکه دښمني

۱۹۹٦ کال پر لومړۍ ورځ همغږۍ شورا جګړه پیل کړه... رباني، د دوستم، مجددي او حکمتیار پر ضد د جهاد اعلان وکړ، له دوستم د ټولو دولتي القابو امتیازونه واخیستل شول، سرکاري تلوېزیون د دوستم د عیاشۍ او فحاشۍ د محفلونو فلمونه ښیي، دوستم شل میاشتې مسلمان و، رباني یې د مسلمانۍ او تقوا ټېر واهه، اوس کافر شو...؟

حکومتي لویانو د ډکو سمڅو، کې اړولي، د ارګ له ګلخانۍ د پغمان تر فیل خانو او جبل السراج په منډو، لالهانده دي، بندیخانې یې هم جبل السراج ته لېږدولې، جمعه اخک اسدالله سروري هملته ولچک دي... له چریکي جګړو مو اورېدلي و، چریکۍ حکومت پخپلو سترګو ګورو...

د پخواني رژیم مډالونه، ښځانونه کیلو په ۳۰۰۰ افغانۍ پلورل کېږي. له مرګ وروسته دسرحدونو وزیر فیض محمد د مېړانې مډال مایه پنځه سوه افغانیو رانیو...

کله جنګ د دې لپاره پیل شي، چې سیمه چور کړي، لوټ ته لار ومومي.

حکمتیار جلال آباد کې د امریکا له سفیر جان مینجو د مداخلې غوښتنه وکړه، خو مخکې یې د امریکا مداخله او اغېز غانده، له دې وړاندې یې له رونالد ریګن سره امریکا کې له لیدو نټه کړې وه، ببین تفاوت را از کجا تا به کجا؟

رباني يوه غونډه کې دا لنډۍ ويله:

که په ميوند کې شهيد نه شوې
چې پرې مين وم ترې چارپېر مې کړل لاسونه

کابل د توپکوالو ترمينځ وېشل شوی، کوڅه واکې يې رامينځته کړې، دولتي موسسات هم په دغه بنه وېشل شوي، ان چې پر روغتونو يې هم د خپلو ډلو جنډې دروليې، د سترگو "نور" روغتون، سناتوريم علي آباد د ملاريا يا لشمانيا روغتون، پوځي اډې گرځېدلې، د ځينو لوحې په نورو برخو کې لگېدلې.

د حزب وحدت د امپراتورۍ سيمه د خميني تصويرونو او ايراني جنډو نيولې مزارۍ يې ملت غرب کابل گڼي.

وزير په خپل غيابت کې خپل ځای ناستی له خپلې کورنۍ او ډلې ټاکي... دوستانو ملگرو يې د شپې وزارتونو کې ډېرې لگولې وې، لکه د ميوند واټ د اپارتمانو کوټې، کليوالو خپلوانو يې په کې اړولې.

حکمتيار ليکوالو ته وويل: موږ تاريخ جوړوو، تاسې يې ليکئ...

محمود فاراني وار له مخه قلب آسيا جريده کې کښلي و: ((... په تاريخ کې ريخ وهل)

پېښور کې پر افغان قونسلگرۍ د سرمعلم محمد ظاهر او موسی خان اکبرزاده احمدزي ترمينځ ناندرۍ پورته دی سرمعلم ظاهر چې له محاذ ملي سره پېيلی او له کمشنرۍ سره يې رابط دنده لرله، دا چوکۍ نوي قونسل موسی خان ته نه ايله کوي، په رسمي مکتبو کې افغان قونسل سرمعلم محمد ظاهر کاږي، مدير غفار چې د ترانسپورټ وزير شو، ځان يې د ترانسپورټ وزير مدير عبد الغفار معرفي کاوه.

بسم الله الرحمن الرحيم

Gulbuddin Hekmatyar

AMIR OF
HEZB ISLAMI AFGHANISTAN

DATE:

گلبدین حکمتیار

امیر حزب اسلامی افغانستان

تاریخ :

شوراي محترم اتحاد علماي افغانستان

السلام عليكم ورحمة الله وبركاة

در راه نجات كشور از وضع دردناك فعلي ودر راه خاتمه جنگ واعاده صلح پايدار واقامه نظام اسلامي ازبارگاه الهي موفقيت هاي مزيد براي تان مسئلت مي جويم

باهيئت اعزامي تان مفصلاً تفاهم نمودم واز همكاري صادقانه حزب اسلامي بامساعي علماي كرام اطمينان داده واقتراحات متعدد خودرا در رابطه باحل بحران كشور باايشان در ميان گذاشتيم كه اينك مكرراً وباختصار وتحريري به مطالعه شما تقديم مي كنم .

١- حكومت فعلي كه مسؤل همه حوادث خونين گذشته وبي امنيي ها، جنگ وخونريزي ها در كشور است بايد به يك حكومت مؤقت قابل قبول براي همه تفويض گردد .

٢- درعوض رئيس دولت فعلي يا كس ديگري ازجمله رهبران توسط شوراي علماء وقوماندانان تعين شود ويافردي غير از رهبران درنتيجه توافق ميان رهبران انتخاب گردد ، ترجيح ميدهم كه حكومت موقت مشتمل برشخصيت هاي صالح مجاهد غير متنازع فيهابوده رهبر در ان عضويت نداشته باشد ، باسر پرستي مولوي محمد نبي محمدي نيز موافقم مشروط به انكه در كابينه حكومت فعلي تغيراتي به توافق رهبران ويابه اساس فيصله شورا اتحاديه علمابوجود ايد .

٣- درشش ماه اينده بايد براي انتخاب رئيس دولت وتشكيل شوراي ممثل همه اقشار ملت انتخاباتي برگذار گردد -كه در مورد مواصفات راي دهنده وراي گيرنده شوراي اتحاد علما فيصله نمايد .

٤-متصل انتقال قدرت به حكومت موقت بايد كمسيون باصلاحيتي براي اجراي انتخابات تشكيل گردد حكومت حق هيچنوع تشبث ومداخله در امور انتخابات رانداشته باشد .

٥-ترجيح ميدهم كه اعضاي حكومت موقت وكمسيون برگذاري انتخابات در حكومت منتخب وشوري منتخب شركت نكند .

٦- عمليه تشكيل شوراي اهل حل وعقد بايد تصحيح گردد ونمايندگان ولسوالي ها طبق لايحه مربوطه از طريق شورا هاي متفق عليه ولسوالي ها معرفي گردد وصلاحيت نظارت بر اعمال حكومت موقت ،

تصويب لوايح ، وضع خط مشي ، تصرف در سرمايه هاي ملي وتصويب بودجه حكومت به اين شورا تفويض گردد .

٧-بايد تدابيري اتخاد شود كه امكانات دولت به نفع يك گروه عليه ديگري مورد سؤاستفاده قرار نگيرد ، پول اسلحه وسائر امكانات مربوط به دولت كه در چند ماه گذشته توسط مسؤلين دولت حيف وميل شده است بايد توسط يك هيئت باصلاحيت بررسي گرديده در زمينه استرداد وجبران ان اجرات اصولي وجدي صورت گيرد ،تاحدي در اينده به اينوع اعمال ناجايز متوسل نشود .

٨-اگر شرايطي در كشور فراهم شود كه احدي نتواند از طريق سازش كودتاها ، مداخلات خارجي واعمال قوه به قدرت برسد واستفتااز ملت وبيعت معلن وغيره مكره مردم شرط اساسي براي جواز امارت وزعامت امير وزعيم شمرده شود وبدينترتيب جلوتكرار تجارب تلخ وخونين گذشته گرفته شود ماهيچ امتيازي ديگري را نميخواهيم .

بايد مطابق به نص صريح قراني اين سنت را احيا كنم كه امانت خلافت توسط امت به اهل ان سپرده شود وزعيم وامير تنها زماني زمام امور را بدست گيرد كه مردم او را براي اينكار انتخاب كند واهليت واستعداد اينكار را دراو مشاهده نمايد ، بايد تلاش ناجائز براي رسيدن به قدرت وابقاي زعامت خودرا حرام بشمارد وبه اميري كه از طريق استفتااز مردم ودر نتيجه بيعت معلن وغير مكره انتخاب مي شود بايد صلاحيت هاي كامل شرعي تفويض شود انتخاب وزراء ، واليان سفرا وساير پرسونل دولتي از صلاحيت هاي او باشد واز توزيع وزارت ها بر احزاب وتشكيل حكومت مخلوط خوداري شود

١٠- رئيس دولت بايد مكلف به مشوره بانمايندگان مردم باشد ني از خود سري وخود كامگي اجتناب ورزد .

١١- به مرجعي كه حق نصب امير داده شده است حق عزل ان نيز داده شود .

١٢- حكومت موقت مكلف به تشكيل اردوي اسلامي براساس دوره مكلفيت گردد وهمه افسران مؤمن مخصوصاً انانيكه درجهاد اشتراك ورزيده اند در اردوي اسلامي تنظيم شود واسلحه ثقيل جمعاً به اردو مسترد شود .

١٣-اگرهمه رهبران به اين حل توافق كند مابهرنوع تعاون صادقانه ومخلصانه حاضريم درغير ان ما مجبور خواهيم بود راهاي رابراي حل بحران كشور جستجوكنيم كه براي ماميسر باشد اگر توافق باهمه مستغر باشد ناچار باعده محدودي توافق خواهيم كرد وبه اقداماتي كه انرا به نفع اسلام مي شماريم متوسل خواهيم شد ( انشاالله العظيم )

« حكمتيار » ١٣٧١/١٠/٢

# د کفر بله فتوا

## د پغمان او چهار اسیا کتني:

د فبرورۍ پر ٢٦ مه د استاد رباني، سیاف او احمد شاه مسعود د لیدو په نیت وخوځېدو، له حربي پوهنتون سره چې اوس کنډواله گرځېدلې پر تره خېلو او خانه سازۍ تېر شو، له گمرک سره ښي لاس ته واوښتو، هوتخېلو کې له ویجاړیو پرته څه نه شوی تر سترگو کېدی، د هوایي ډگر ترخنگ تېر او پر خیرخانه مېنه ورگډ شوو، دلته د جگړې نښې هومره جوتې نه شوی لیدل کېدی، یوه هدیره کې یې لس نوي قبرونه کیندلي، لا یې ورته مړي نه وو راوړي، دلته یو شمېر نوي قبرونه په یوه لیکه کتار ښکارېدل، پر یوه قبر څو ماشومان اوتور سرې غونډ وو.

خیر خانه کې بېدرکه بیرو بار دی، خو ځېرې سپېرې او شونډې کسکردي، یوه تور سرې چې غېږ کې یې له ماشوم سره یوه لویه پنډه نیولې، په منډو ده، لکه د ښار له شره د خیر په تمه خیرخانې ته رالېښلی وې.

چېرې به چې موټر له بیرو بار بریک ونیو، خلکو به موږ کې سترگې ښخې کړې، د نفرت دغسې احساس ما بل ځای د چا کتو کې نه دی لیدلی، ما خپل جرم او گنا جوت لیدلی شوی، لکه زما کتابونه، لیکنې زما پر تور او گناه گواهي ورکوي، لکه هغوی ماته د تور او پېغور گوتې لکې کړې وي...

دې ټولو زما د جرم په دوسیه کې پټه خوله شاهدي ورکوله، لکه محاکمې او غرغرې ته مې بیایي...

له خیرخانې پر کارته پروان واوښتو، پر باغ بالا چې ورختو، یو پک اپ له موږ مخکې شو، بل د کتار پای ونیو، پر خوشال خان مېنه وروګرځېدو، خوشال مېنه جګړې او له جګړې زیاته لوټ تالان نړولې، د کورونو کړکۍ، د چتونو لرګي یې وړل شوي، ان چې پخې خښتې یې هم ترې خپلو محلونو ته لېږدولې دي،

ځــومره جونګړو ته دې اور ورته کړ
چې خپل محفل ته دې رڼا راوسته

خوشال مېنه د ویجاړو کورونو هدیره ګرځېدلې، یوازې پېریان او شیشکې په کې مېشتېدی شوی، پر نیازبیک ورتېر او له کمپنۍ واوښتو، د پغمان سړک مو ونیو، د پغمان زرغونه غونډۍ سپېرې اوښتې، د شیر علم او قوماندان عبدالله ماڼیو د ژوند نغمه غږوله، د سیاف او انجینر احمد شاه ماڼۍ او د ورونو ورېږونو بنګلې د یو نوي ښار هنګامه توده ساتله.

فیل خانو کې لږ تم شو، د پغمان د لوړې غونډۍ پر لور وخوځېدو، د دغې غونډۍ پر سرشاهي ماڼۍ کې چې جګړو یې ښکلا او رنګیني الوزولې سیاف مېشت دی.

د باغ بالا ماڼۍ یې هم ولکه کې ده، رباني او مسعود هم هورې دي، ما تر اوسه په دغسې ذلت او حقارت نه وو لیدلی، تر هغې چې زه مجلس کې وم د رباني خوله چوله نه شوه، پټه خوله یې تسبې اړولې، له خبرې یې د دلکشا سرخي الوتې وه، سپېرې خاورې یې دوړولې، ځکه

چې کندز جنرال دوستم لاندې کړی، تا به وې د گور مړي گورم، احمد شاه مسعود هم غلی و.

استاد رباني يو موټی ښکارېده، لکه د وچکي ناروغي يې تېره کړې وي، حقاني صاحب ورته کړه: د ښې شپې سپين ږيری درنه جوړ شوی...

د استاد سياف خبره غوړېدلې، په زړه او خوله يې گوړې ماتولې، د زېړې ډبلې خمتا جامې او لوی عسکري جمپر يې اغوستی دی.

د پيچک پر غونډۍ د استاد سياف مانۍ درېدلې، ظاهر شاه ځلوېښتو کالو کې يو کارېز مير جوړ کړ، دوی څو مياشتو کې د ښار د ويجاړۍ په بيه ځانوته څو کاريز ميرونه ورغول...

د دوی غوښتنه د دوستم پر خلاف د اعلان کړي جهاد ملاتړ و، په دې ټکو چې حکمتيار سره خبرې کېدی شي، خو دوستم بايد مرتد اعلان شي.

ددغسې اعلان او حکم واک څنگه څوک لاس کې اخيستی شي... د کفر او ارتداد فتوا د خولې څو ټکو کې نشي راټولېدای، اسلام عقيده او عمل دی دا د بنده له واک که په هر موقف او موقعيت کې وي لوړ دی...

شپه مو د استاد سياف مانۍ کې چې لا بشپړه شوې نه وه تېر کړه، سهار استاد رباني او سياف راغلل، رباني، پټه خوله تسبې اړولې، پرتوگ يې په څټ اغوستی و.

د تسبو اړولو په اړه چې اوس يې د فېشن بڼه خپله کړې، يوه خبره را ياد شوه، بېنظير بوټو همېشه تسبې اړوي، د لومړي حکومت پر مهال يوه خبريال ترې پوښتلي و، چې پر تسبوکوم ذکر کوې؟

دې ورته کړه: آيت کرسي.

بله ورځ د بېنظير ورور مرتضی خپل بيان کې په دې اړه ياده کړه، چې آيت کرسي اوږد آيت دی، چې د تسبو يوې دانې له اړولو سره نه شي لوستل کېدی، داسې ښکاري بېنظير يوازې کرسي، کرسي يادوي.

يوازې د استاد سياف خوله چلېده، لکه جمهور رييس رباني نه، سياف وي، د تېلو بخارۍ کې د نويو تېلو په اچولو کوټه لوگي پر سر واخيسته، د خدای کارو ته گوره، چې د لمبې په پورته کېدو خوړپ ټول لوگی پر استاد رباني وغورځېد، خو ده دا وخت له ځانه مچان هم نه شوی شړلی، ايله يې سپېرې وچې شونډې د موسکا د ناکامۍ هڅې په دود بېرته شوې.

حقاني صاحب ورته وويل: حالات ورځ تر بلې خرابېږي، که ته له زړه وغواړې اوارۍ رامينځته کېدی شي، يو چل وکړه. ده ورته کړه، هر چل چې تا زده وې تا وکړ، نور غلی شو.

سياف په هماغسې فصاحت لگيا دی، هغسې خبرې چې په اواري نه شوای راگرځېدی، البته د ټايم پاس کولو مسکن دارو گڼل کېدی شوی، داسې چې د ده هغه مهارت يې د سړي مخې ته ايښود چې تړی يې سيند ته بيولای او تړی راستنولای شوی.

دا چې حکمتيار دې له دوستم راوگرځي چې په گډه د دوستم پر ضد جهاد وکړی شي او د تل لپاره د ملېشو او رژيم د پاتې شونو له غضب او عذاب دا هېواد او خلک وژغورل شي...؟

دې ته يې نه کتل چې تر پرون د دوستم ځواکونه د دولت هغه گڼل کېدل او استاد رباني په ارجمندم عبدالرشيد دوستم نازاوه.

کله چې د دين په نامه ټيکه داري رامنځ ته شي، پخپل زړه درته د کفر، اسلام ټاپې راباسي، د جنت، دوزخ، حورو، غلمانو قوالې ويشي،

فتوا حربه وگرځي له دين او عقيدې چاړه جوړه کړي، خپله پرې ختکي خوري د نورو يې ګېډو کې ننباسي... د قامونو په برمته کولو د نوې فتنې اور ته لمن وهي...

له پغمان، څرخي پله او له غرمې وروسته د بګراميو، شېوکيو له لارې څهار اسياب ته وخوځېدو، حکمتيار ويل: زه اوس څه مجبوريتونه لرم، وړاندې مې چې داړ درکاوه هغه وخت خبره يوازې زما وه، اوس بايد له نورو سره په سلا يو دريځ غوره کړم.

د واټونو غاړو ته ولاړې شنې ونې پرې کېدې او د توپکيانو بخارۍ او نغري يې تودول، دغه بخارۍ او نغري له دې وړاندې کتابونو او خپرونو تاوده ساتل...

يو سړی چې د صابون کلچې يې خادر کې غوټه کړې وې، ملېشو په دې ګومان چې د پيسو بنډلونه دي ويشتلی و، د کابل کنډوالو کې يوازې سپي ځغلي، د مړو اندامونه او بوټي ورسره کشوي، ځينې وزارتونه او يو شمېر ادارې خيرخانې ته لېږدېدلي او پر کورونو د وزارتونو او سرکاري ادارو لوحې لګېدلي دي...

## د ارګ بله ننداره:

د عقرب پر ۲۹مه حقاني صاحب او ذاکري صاحب له يو شمېر قوماندانانو، مخورو او علماوو سره د استاد رباني ليدو ته ارګ ته ځي، که استاد رباني دې ته راوګرځوي، چې د شورا د تکميل لپاره د يوه هيئت د ټاکلو ترځنګ مولوي محمد نبي ته واک وسپاري، چې د حل او عقد شورا او راتلونکي مشر د ټاکلو په رابطه د ټولو توافق حاصل او د

ډلبنديو او جګړو مخه ونيول شي، له غرمې مخکې په لسو بجو ارګ ته ورسېدو، دا ځل د ملاقات ځای نه دلکشا او نه هم ګلخانی مانۍ ده، بلکې د ارګ ختيځ اړخ يو ودانۍ وه، چا ويل قصر نمبر يک دی د ظاهر شاه د مشر زوی احمد شاه استوګنځی و، دلته له مخکې د رباني دويم مرستيال مولوي مير حمزه موجود و، ده ډېره ډولي پوستينچه اغوستې، چې غاړه يې سرو وريښمينو ګلانو نيولې او د ګيدړې د لکۍ نری پټه پرې غځېدلې ده.

مولوي مير حمزه چې مخکې ما د وزير اکبر خان مېنې جومات کې د خطيب په بڼه ليدلی و، دلته بېخي بل وړ معلومېده، له ټولو سره يې تود روغبړ وکړ، ډېر خوښ بشاش له پخوا صحتمند ښکارېده، زما په زړه کې وګرځېدل خدای دې خير کړي، واکمنو دګيدړې پوستکي اغوستي...

په همدې وخت کې استاد رباني راغی، ده وړين اوږد بالاپوښ اغوستی، چې کابل کې په دې موسم کې د بل چا په تن نه ليدل کېدله، يوازې په مسکو او سايبريا کې د دغه ډول ستر کوټ د اغوستلو بېلګې ليدل کېدی شوی.

پر استاد ربانی بالاپوښ داسې معلومېده، لکه کوم خلايي مخلوق چې د ځمکې د بنيادمانو په مينځ کې ولاړ وي، له روغبړ وروسته استاد رباني د يوه مېز شا ته کېناست، مولوي عبدالقدوس ته يې په برېتو کې وخندل، ويې ويل: کجا استی... مولوی صاحب فيرهايت شنيده نمی شود...؟

مولوي عبدالقدوس وويل: چی کنم، فيرهای ما بجای نميرسد، مولوي مير حمزه په خندا کې وويل، باروتش کم است.

استاد رباني مولوي عبدالقدوس مخاطب کړ: اوس فتوی وباسه چې حکمتیار له دوستم سره ائتلاف وکړ، اوس ښنگه چوپ یې، مخکې خو دې ښه انتقادونه کول.

حقاني صاحب ویل: موږ مخکې هم دا کار تقبیح کاوه او اوس یې هم تقبیح کوو، خبره دا ده چې دا کار خو مخکې هم شوی هغه هم ردوو او دا هم.

رباني صاحب وویل: خبر متواتر دی، چې د حکمتیار ځواکونو له دوستم سره شریک سنگرونه نیولي، موږ د دوستم پر قواوو غذایي مواد قطع کړل، خو حکمتیار ورته له چار اسیاب ډک موټر راورسول او اوس دوی یوځای په سماوارونو کې چایونه نوش جان کوي.

مولوي عبدالقدوس ورته وویل: زموږ حب او بغض د الله تعالی لپاره دی، ما خو به کومه عریضه تر اوسه نه وي درکړې، موږ چې څه کوو د خدای(ج) او حق لپاره یې کوو.

د استاد رباني خبرو سړي ته دا شک پیدا کاوه، لکه په ارگ کې نه، د شور بازار کوم سماوار کې ناست وي، له همدې ځایه وه چې حقاني صاحب وویل: مجلس به لږ خاص کړو، رباني صاحب ویل، نور ملگري به ووځي، خو حقاني صاحب جدي شو، ویل: ولې دوی وباسې، آخر ارگ دی، پادشاهي ده، څه دښته خو نه ده، موږ به ترې بلې کوټې ته ولاړ شو، مولوي میر حمزه وویل: سمه ده، چاته یې غږ وکړ او په دې توگه دوی له څو نورو علماوو سره بلې کوټې ته ننوتل.

موږ هم ځینې له کوټې ووتلو، معلومه شوه حالات ښه نه دي، دارگ وضعه عادي نه معلومېده، ډگروال صاحب د استاد رباني یو ډېر بور چې ده ورسره څه اشنایي لرله پیدا کړ، د حالاتو په رابطه یې پوښتنه وکړه،

درېور اصلاً د ننګرهار و، خو له ډېره وخته یې په غوربند کې استوګنه لرله او د صار ملحا د اصطلاح له مخې یې سر او صورت کې د ننګرهار کومه نښه نه لیدل کېده.

ده د کودتا په هکله وویل: دوستم، حزب وحدت، مجددي او ګیلاني غوښتل کودتا وکړي، خو خدای وشرمول، امر صاحب خو ګیلاني نظربند کړی و، غوښتل یې ولچک او زولانه یې کړي، خو استاد ترې خلاص کړ، جنرال رحیم وردګ هم نظر بند دی، څرنګه چې په خبرو کې یې د مطلب ټکي نه و، ځکه خو ما ډګروال صاحب ورسره پرېښود او له ودانۍ د باندې ووتلم، د ټولو په څېرو د جګړې وېرې او وحشت خوله لګولې...

پر ارګ که له یوې خوا د وېرې او جګړې سیورې غوړېدلی، له بلې خوا یې پررونقونو او رنګینیو سپېرې خاورې پرتې دي، د ونو ګلانو په منځ کې د تېرېدو لار نه کېده، چې تر هره ونه بوټي لاندې د قضای حاجت انبارونه پراته وو، د څراغونو او قمقمو درك نه و، غالۍ لوټ او په میزونو حکاکي شوي لاجورد ایستل شوي، تابلوګانې، قیمتي منظرې او عکسونه غلا شوي، لکه ارګ پر زینتي شتمنۍ اور لګېدلی وي.

د لوټ تالان اوږدو لاسونو د هرې ښکلا او ښایست پر مرۍ منګولې ښخې کړې، په سالون او دهلیزونو کې د نصوارو ببلا ببلې نقشې او انځورو لیدل کېدل، له یوه او بل ګوټ او کونج د چرسو لوګي ختل....

سر معلم عبدالجلیل ته مې پام شو، چې یوه ګوښه کې په الوتې پیکه څېره ناست دی، را ولاړ شو، تر لاس یې ونیوم، یوه ګوښه کې یې راته کړه:

قره بیك د تشریفاتو دفتر ته په راتلو په ډېرکبر پر ناستو کسانو غږ

کړ:

در بین تان خو کدام جوړ پخیر نیست، بس په سترگو مې توره شپه ده، سره رابآندې گرځي... سر معلم صاحب ټول ژوند د جمعیت فرهنگي کمېټه کې تېر کړی، په بدل کې یې دا دی پر سترگو تیاره ده سر پرې گرځي...

دوه دوه نیم ساعته وروسته یو لیکل شوی کاغذ د باندې راوایستل شو، چې ملایان یې لاسلیک کړي، د کاغذ مطلب هماغه پخواني ټکي وو، چې شورا تزکیه او تکمیل شي او قدرت باید اهل ته وسپارل شي، خو عبارت او جملې یې نرمې او محافظه کارانه دي.

معلومه شوه، استاد رباني ظاهراً له حقاني صاحب سره د دوی غوښتنې منلې او میر حمزه یې ورسره کېنولی و، چې په دې رابطه یو داسې مطلب ولیکي، چې د استاد رباني د شاهانه حیثیت هتک ونه شي.

کاغذ ټولو لاسلیک کړ او موږ بېرته د پلچرخي په خوا حرکت وکړ.

## د گولیو لېونی خندا:

لکه پر ښار د جگړې سیوری پروت وي، په تېره د پلچرخي په استقامت وضعه ببخي بدله ده، مازیگرسیمه سختو ډزو ولړزوله، د ښار پر لور لار تړل شوې، له گمرک سره د حزب اسلامي او حکومت ترمینځ خونړۍ جنگ روان دی، د دولت له خوا قوتونه د جنرال بابه جان تر قوماندې لاندې د حزب له ځواکونو سره نښتي، گمرک چې یو ځل وراندې ښار ته د مجاهدینو له ننوتو سره لوټ شو، دغه جگړه کې یې هرڅه تالا ترغه شول.

د عقرب ۲۰مه: جګړه په خپل ټول زور روانه ده، له دې سره دا اوازې هم خپرې شوې، چې د حزب ځواکونه مرنجان غونډۍ او بالاحصار ته رسېدلي او د دوستم د ځواکونو په ملتیا یې د میوند واټ پر لور پرمختګ کړی، د عیدګاه په جومات کې یې قرارګاه جوړه کړې.

حقیقت دا چې د حزب ځواکونه بالاحصار ته راغلي وو، خو د نامعلومه علتونو له مخې یې بېرته په شا کړي، جګړه یوازې د ګمرک په سیمه کې د حزب او دولت د ځواکونو ترمینځ روانه ده.

د حزب او دوستم د ځواکونو ترمینځ پخواني تاوتریخوالي بشپړ باور ایجاد نه شوی کړی.

د سید نور محمد شاه مېنې په استقامت چې د سولې په نامه د ختیځ کوم ځواکونه پراته وو، له سیمې وتلي، د دوی ځایونه د حزب اسلامي ځواکونو نیولی، د بګرامیو نساجۍ فابریکه له یوې مخې لوټ او سوځېدلې او په دغه استقامت تر یک لنګه کوتله د حزب ځواکونو مورچې نیولې، د (سید نور محمد شاه مېنې) کورونه زیاتره کنډواله دي، کوم چې روغ دي، په هغو کې د اوسېدو ځوک نه شته، ببر سرو، د کورونو دروازې کړکۍ په بې دردۍ ایستلې، یو نیم کور چې روغ پاتې دی، د کړکیو دروازو او لرګیو لپاره نړول شوې دي.

د عقرب ۳۰ مه: د ګمرک په ساحه کې سخته جګړه روانه ده، د ننګرهار کابل د موټرو اډه پلچرخي ته لېږدېدلې، ماښام له هوایي ډزو داسې معلومېده، لکه اور لوبه یې جوړه کړې وي او یا هم د خوښۍ هوایي ډزې وې، همغږې شورا کې حکمتیار صاحب د دوستم څنګ نیولی، مجددي یې هم په دغه ډنډ کې ورسره ګډ کړ، جنګ جنګ تا ختم ګلم جم، شعار خپل سر وخوړ او د دوستم ملېشو په واک کې

الوتکو ته د لوګر سړک د نوې کربښې (رنوی) په توګه ورکړای شو.

پر همدې شپه کابل راډیو د کورنیو چارو وزارت کې د حل او عقد شورا د مقدماتي غونډې خبر خپور کړ.

د حل و عقد شورا له مقدماتي تدویر وروسته څرنګه چې بریښنا قطع وه، نماینده ګانو د انترکانتیننتال او اریانا هوټلونو په سړو کوټو کې په داسې حال کې چې اوبه هم نه وې، شپه تېره کړه، د هوټل یوه کارکوونکي دوې ورځې وروسته وویل، په دغه شپه څرنګه چې په تشنابونو کې اوبه نه وې، د هوټلونو انګړ او دهلېزونه د نمایندګانو معذرتونو په سر اخیستي وو، ځکه خو د دغې ورځې پر سبا ګنو نمایندګانو پلچرخي ته مخه کړه.

د دولت نطاق عزیز مراد له بي - بي - سي سره مرکه کې د ښاغلي مصداق د دې پوښتنې په ځواب کې چې د دوستم او حکمتیار ترمنځ د ائتلاف خبره غوټه شوې، ایله دومره وویل، داسې څه خبره نه شته، خو رباني صاحب په ډېر تینګار دا خبره کوله، کابل راډیو وویل، یوې ډلې شر اچوونکو د دې لپاره چې حل او عقد شورا سبوتاژ کړي، د ښار پر استوګنو د توغندیو ډزې کړې دي.

بسم الله الرحمن الرحیم

# اتحاد علمای افغانستان ۱۳۷۱/۹/۲٤

دافغانستان دجهاد محترمو رهبرانو السلام علیکم !
داتحاد علماي افغانستان غړو او دهیواد دبیلابیلو برخو جهادي قوماندانانو او قومي مخورو دروان کال دقوس میاشتي په (۲٤) نیټه لاندي پریکړه وکړه :
څرنګه چي دمحترم استاد برهان الدین رباني دریاست موده له پنځه څلویښت ورځني تمدید سره پاي ته رسیدلي او دځینو مشکلاتو او ملاحظاتو له مخي اهل الحل والعقد شورا په اساسي او منل شوي طریقه راغونډه نشوه ، له همدي ځایه ده چي دعلماوو اتحاد ، جهادي قوماندانانو او قومي مخورو دیوي ګډي جلسي په نتیجه کي پریکړه وکړه چي استاد رباني دي دخپل ریاست دمعیاد له پاي ته رسیدو سره سم دریاست چاري دجمهوري ریاست مرستیال محترم مولوي محمدنبي محمدي ته وسپاري او ددوي تر ریاست لاندي دي اهل الحل والعقد شورا

دتکمیل تزکیي او تدویر په لارو چارو غور او اقدام وشي څو په شرعي طریقه دامیرد انتخاب پروسه عملي کړي شي .
لدي پرته داوسنیو شرایطو له مخي بله هره یوه فیصله چي یوه اړخیزه بڼه ولري اوله اتفاقي شکل څخه بي برخي وي نه یواځي داچي موجوده مشکلات نشي حل کولي بلکي دلازیاتو ګډوډیو او جنجالونو سبب ګرځي ، له همدي امله به هغه دمنلو وړنه وي .

* دعلماوو او قوماندانانو لاسلیکونه *

## حل و عقد که پول نقد؟

## د مولوي حقاني درېځ:

استاد سیاف د لویې جرگې تر ټولو ستر مخالف و، د ده په وینا لویې جرگې ته ارذال هم مخه موندای شي، خو حل او عقد ته چې ده عقد او حل بلله، یوازې سوچه مسلمان لار لرلی شي.

سوچه او مکتبي اسلام یوه انقلابي اصطلاح گرځېدلې، لکه مطرح جهادي قوتونه چې ځانونه یې د جهاد، اسلام او تقوا ټیکه داران پېژندل.

حل و عقد، د استاد سیاف په وینا عقد و حل شورا یا په بله وینا د شریفانو دغه ټولې د بدو او رشوت داسې ریکارډ ټینگ کړ، چې کابلیانو ورته د پول نقد شورا نوم ورکړ.

حقاني صاحب د اصلاحي شورا په مشرۍ د شورا د موثریت او مشروعیت لپاره په هلو ځلو بوخت دی، په دې اړه یې له جهاد هینداره بي - بي - سي پښتو، دري ځانگو سره مرکه کې وویل:

جهاد هینداره: هیله ده؛ کابل کې د خپلو بوختیاوو او فعالیتونو په اړه ووایاست؟

**حقاني:** نحمده و نصلی علی رسوله الکریم، اما بعد!

حقیقت دا دی، چې د خلکو په خوښه په شرعي طریقه حکومت نه دی جوړ شوی، داسې ښکاري لکه حکومت موجود نه وي او خلا د قدرت وي، چون افغانستان بالکل ړنگ او د زندگۍ اسباب له مینځه تللی، دغه ړنگ افغانستان ته د مهاجرو راگرځېدل په داسې حال کې چې خلک مسلح دي او څوارلس کاله هر قوماندان د یوه حکومت په شکل کار کړی نو امنیت باالکل خراب دی، د دې لپاره یو مستقر او

مرکزي حکومت ضروري دی، د وطن د تعمیر لپاره هم قوي حکومت په کار دی، د تعلیم، صحت لپاره د یو مستقر او مرکزي حکومت ضرورت دی، چې متاسفانه جوړ نه شو.

د دې علت دا دی، چې د تنظیمو تعدد، جګړو او عدم اعتماد بدبختی موجودې دي، بیا هم متاسفانه چې په ابتداء کې له کابل رژیم په سالمه طریقه د واک انتقال ونه شو، د ائتلاف په شکل تر سره شو، هغه دی چې سالمې اداري جوړې نه شوې، که یې کوم ګام اخیستی د سازش پر لار یې اخیستی، اهلیت یې پام کې نه دی نیولی.

حاکمانو یوه غلطه طریقه غوره کړې، هغه دا چې د خپلو پلویانو د پیدا کولو لپاره یې د سازش لار خپله کړې، له بیت المال یې نا جایزه ګټه پورته کړه، موږ کوښښ کوو چې یوه منلې شورا جوړه شي، چې یو سم حکومت رامینځته کړي او کار اهل ته وسپارل شي، داسې چې پر سازش او رشوت نه وي ولاړ...

که سازش ونه شي او خلک د اهلیت پر بنا راوغوښتل شي، د علماوو، قومي مشرانو، قوماندانانو دغو دریو قشرو استازي په کې وي، له دې سره به همکاري کوو، که په سازش سره دا کار وکړي، په دسیسو، نژاد، سمت او تحزب دا کار بنا کړي، نو بیا د علماوو، قوماندانانو او قوم تصمیم دا دی، چې د سازش حکومت مخه به نیسي.

دا اوس د شورا لپاره د سازش په طریقه او د تحزب او نژاد پر بنا کار شوی، دې ته باید خاتمه ورکړو او په هغه طریقه چې ما وویل، د شریعت طریقه ده او درې قشره خلک علما، قومي مخور او قوماندانان د دوی په اتفاق یا اکثریت یو موقت حکومت جوړ شي.

**جهاد هینداره:** تاسې د جګړې دواړو غاړو (رباني - حکمتیار) له

ژمنو خومره داده پاست؟

**حقاني:** د ملاقاتونو او مصالحې په هکله باید ووایم، چې حکومت په کړیو تعهداتو وفا او عمل نه دی کړی، جانب مقابل هم خپل قوتونه پوره نه دي په شا کړي، تر اوسه د مصالحې لپاره پوره اطمینان نه ښکاري.

له حکمتیار سره موږ وکتل، چې جگړه د واقعي شورا لپاره مانع گرځي، باید جنگ ونه شي، خبرو او مذاکراتو ته وخت ورکړای شي.

**B.B.C پښتو:** له حکمتیار سره ستاسې لیده څه نتایج لري، د لارې د پرانیستو پر سر موافقې ته ورسېدې، که څنگه؟

**حقاني:** دا وخت د علماوو او قوماندانانو شورا په گډه کار کوي، پرون حکمتیار صاحب ته ورغلو، په دریو مسئالو مو ورسره خبرې وکړې:

۱. څرنگه چې د لارو تړل د افغانستان عامه خلکو ته تکلیف رسوي، په تېره دا وخت چې خوراکي مواد، درمل، برق، لرگي او تېل نه شته، نو که لارې بندې وي، خلک به له هلاکت سره مخامخ شي.

له حکومت سره ستونزې د لارو په بندولو نه اوارېږي، که خوراکي مواد عادلانه نه وېشل کېږي، یا پوځي استفاده ترې کېږي، د دې کار مخه به ونیسو.

۲. کوم هیئت چې حکمتیار صاحب د نگران په توگه د مصالحې له هیئت سره منلی و، څرنگه چې حکومت ډېره بې قولي وکړه، د حکمتیار صاحب نگران هیئت مایوس شو، ویل یې نور هیئت نه درلېږم، موږ ترې وغوښتل هیئت راولېږي...

۳. درېیمه خبره د اوربند ده، په دې کې حکومت خپلې وعدې نه دي

ترسره کړي، حکمتیار هم وویل چې نور زما اوربند نه شته، موږ ورته وویل، حکومت اوس حاضر دی، ته باید جنګ ونه کړې.

ده ته دې خدای خیر ورکړي، درې واړه خبرې یې ومنلې.

**B.B.C پښتو:** د ملي وحدت لپاره مو چې کومه شورا راغوښتې وه، ترکومه ورسېده؟

**حقاني:** د علماوو، قومي مخور او قوماندانانو شورا موخه دا ده چې جنګ ختم او سوله راشي، هغه دی چې ملي وحدت هم ټینګېدای شي.

موږ د کوم تنظیم لپاره کار نه کوو، هغوی چې د ملت لپاره کار کوي، سوله او امنیت غواړي، اسلامي نظام غواړي، د دوی ترمینځ تفاهم شته، د دې لپاره له ټولو اړخونو سره ارتباطات شته...

**B.B.C پښتو:** که د حل او عقد شورا بن بست ته ورسېږي، راتلونکی څه وړ ګوری؟

**حقاني:** ما مخکې هم دا خبره کړې، کومې بدبختۍ چې راغلی، د تنظیمي تفرقې له امله مینځته راغلی، زه وایم دا تنظیمونه باید محوه شي، له سره ګوندونه جوړ شي، تنظیمي مقررۍ باید لغو شي، یو ملی حکومت رامینځته شي.

**B.B.C پښتو:** که بیا هم تنظیمي بنه ادامه ولري، د دې باعث نه ګرځي، چې مجاهدین خپل سیاسي تشخص له لاسه ورکړي؟

حقاني: زه خو د افغانستان مسلمان ملت دې ته دعوت کوم، چې لفظي مناقشات لکه د لویې جرګې، حل و عقد، اهل الرای قیادي شورا تر عنوان لاندې لفظي جګړې شاته کړي، دا هم ورته وایم چې افغانستان کې د غربیانو طریقې د چلېدو نه دي، اسلامي مملکت دی، اسلامي طریقه پته پنا نه ده، اهل الرای، اهل فکر، لویه جرګه، حل او

عقد یوه خبره ده.

**B.B.C پښتو:** که دغه ستونزې اوارې نه شي، پره به یې د چا پر غاړه وي؟

**حقاني:** په دې کې ټول راځي، زه هم یوه تنظیم کې راغلی یم، یوه سمت او نژاد سره پېیلی یم، موږ ټول پره یو، ځکه خو زه خپله غاړه خلاصوم او د تنظیمي، سمتي او ژبنیو اختلافاتو پر ضد غږ پورته کوم.

**B.B.C دري:** مولوی صاحب شما روز قبل با آقای حکمتیار صحبتی داشتید، چه توافقی به دست آورده اید؟

**حقانی:** از آغای حکمتیار خواهش کردم، که مسدود نمودن راه برای عامه مردم بسیار تکلیف است، ملت مظلوم ما از ناحیه سوخت و مواد غذایی دچار تکلیف است، راه لوگر، پکتیا، جلال آباد و راه شمالی باید جمعاً خلاص شود، اگر راه مسدود باشد مردم به هلاکت مواجه خواهد شد.

حکمتیار صاحب وعده نمود که راه را باز خواهد کرد، صرف یک خواهش کرد که مواد غذایی و سوخت باید عادلانه تقسیم شود و در گدام حکومت ذخیره در راه نظامی مصرف نشود، ما گفتم که کوشش ما دراین مورد جریان دارد، که یک هیئت بې طرف تعین شود، تحت مراقبت این هیئت مواد سوخت و غذایی تقسیم شود.

**B.B.C دری:** شما نقش اساسی و برجسته در جهاد داشتید، در اوایل بحیث وزیر عدلیه مقرر شدید، ولی وظیفه را اشغال نکردید در این باره توضیحاتی ارائه فرمائید؟

**حقانی:** ما از حکومت در ابتدا بسیار مطالبه کردم، که متاسفانه تا حال به مطالبات ما جواب نگفته، از همینرو از همان اول پست وزارت را

قبول نکردم، چون حکومت شکل ائتلافی داشت و صبغه اسلامی و ملی آن مشکوک بود و است، از همینرو برای خود مناسب ندانستم در کابینه باشم.

بجای اینکه امن بیاوریم و برای مردم خدمت نماییم، جنگ و بی امنی را رفع نمایم، خود درگیر جنگ باشم، فلهذا صحیح نبود وزیر باشم و مردم در مصیبت بم و توپ مبتلا باشد.

**B.B.C پښتو:** داسې فیصله شوې، چې حل او عقد شورا پر خپل ټاکلي وخت جوړه شي، استاد رباني هم له واک لاس نه دی اخیستی، تاسې په دې اړه کوم تجویز ترلاس لاندې لرئ؟

**حقاني:** د رباني صاحب موده پېنځه ځلوېښت ورځې د دې لپاره تمدید شوه، چې شورا جوړه شي او په رسمي توگه د دولت مشر وټاکي، دلته له یوې خوا موسم مساعد نه و، له بلې خوا د شورا لپاره د غړو په ټاکنه هم انتقادونه کېدل، موږ غواړو شورا ته غړي په سمه طریقه معرفي شي، چې یو ملي حکومت رامینځته کړای شي، چې اطاعت ورته وشي، امن راولي، ولایتونه له مرکز سره وتړي، ځکه مو غوښتنه وکړه، چې یو متفق پلاوی د شورا غړي تزکیه کړي، د ټاکنې بهیر یې وڅاري، چې ځینې کسان په پیسو او رشوت اخیستل شوي، د قومیت او حزبیت له مخې راغوښتل شوي، هغوی چې شورا تحریم کړې اعتراضونه یې رفع کړی شي، د شورا کار باید سطحي ونه گڼل شي، ډېره پاملرنه او دقت ورته وشي، داسې کسان راونه غوښتل شي، چې د خپلې سیمې د نمایندگۍ صلاحیت او کفایت نه لري، استاد رباني اوس له کوم قانوني جواز پرته واک له ځان سره ساتلی، چې د تشنج او جگړو باعث گرځېدلی، ځکه خو موږ یوه پرېکړه وکړه، چې مولوي محمد نبي

محمدي ته چې د دولت رئيس مرستيال دی، واګې وسپارل شي، هغه د قانون له مخې د دې مستحق دی، چې په دغه موده کې د ده تر مشرۍ لاندې شورا دايره شي.

**B.B.C پښتو:** استاد رباني په دې هکله څه نظر لري؟

**حقاني:** استاد رباني زموږ هيئت ته ويلي او موږ ته يې يو ليک هم راليږلی، په دې تکو چې ښېګا خپل ملګري راغواړي، دا خبرې به ورسره مطرح کوي، بيا به رسماً موږ ته خپل ځواب راکوي...

ما رباني صاحب ته وويل: د خدای خاطر وکړه، په خپل ملت زړه وسوځه، ستا مرستيال کولای شي، قانوناً په داسې مواردو کې کار وکړي، هيله ده واک خپل مرستيال مولوي محمدي ته وسپارئ.

**B.B.C پښتو:** د مجاهدينو نورو مشرانو ستاسې له پرېکړې سره موافقه لري؟

**حقاني:** محترم مولوي خالص موږ ته کتباً ډاډ راکړی، حضرت صاحب، ګيلاني صاحب هم توافق لري.

که داسې ونه شول، حکومتي دستګا به همداسې فلج پاتې وي، په روغتيايي، تعليمي او نورو شاخو کې به خلک له سختو ستونزو سره مخامخ وي، همدا د حل لاره ده.

# له سده وتلي

۸ - ۹ - ۱۳۷۴

د اتحاد علماء غونډه ده... زه د باندې له ډگروال صاحب سره گپه کوم... درانه ماشینونه چې د ډبرو غټ گټونه او کمر د توږلو، اره کولو لپاره لېږدوي، داسې ښکاري لکه د غرغرې دار یې لگولی...

ډگروال صاحب وايي... داسې ورځ به راشي چې دا یو نیم درجن مې دلته درته څړولي وي... ما خبره نه وه کړې، چې غږ شو... ور ولاړشوم... وايي دننه دې غواړي...

چې دړه مې بېرته کړه، کوټه له ملایانو ډکه وه... په یوه بنه، یوه څېره... لکه ټولو په یوه وار سترگې راپورته کړې وي، له ببرو وروځو لاندې یې له رنجو ډکو سترگو گاتي داسې ښکارېدل لکه سنگسارېدو ته یې ډبرې را اخیستې وي...

وېرې واخیستم، لکه گبني نیولی وم... نه دننه تللی شم، نه بېرته گرځېدای...

د حقاني صاحب لکه زما وارخطایي ته پام شو، ځنگ ته یې ور وبللم، په ملایمت یې پوښتنه وکړه... لکه ملایانو ته په ما او لیک مې تېم ورکوي... چې داسې دانه مې ساتلې...

ذاکري صاحب هماغسې د عذاب په ویش لگیا دی... وايي سیاف ته ولیکه: "په بنده سا مې قلم را واخیست..."

"لنډیز"

جناب محترم استاد سیاف صاحب! السلام علیکم:

"... موږ په روغه جوړه او دا چې منلی شورا جوړه شي خپل وس وکړ... خوله بده بخته گټه یې ونه کړه... اوس تاسې ته خبر درکوو، چې مقابله مو نه کوو، که چېرې اسلامي حکومت جوړ شو، الله جل شانه دې جوړ کړي، همکاري به درسره کوو، خو که ستاسې له شورا او پرېکړو تکر او فتنه رامنځ ته شوه، مسوولیت به یې د استاد رباني او ستا پر غاړه وي...

په داسې حال کې چې مشرانو شورا تحریم او د مقابلې اعلان کړی، شورا او پرېکړې یې له فتنې پرته څه نه شي راختی.

تاسې موږ ته لیکلي چې د مولوی صاحب خالص نظر زما نظر دی، اوس خالص صاحب له شورا سره مخالفت وکړ، خو تاسې ورسره ولاړ یاست... د دغه تضاد معنا څه کېدی شي...؟

که تاسې له زړه غواړئ موږ به کوښښ وکړو مشران واقعي شورا کې په گډون راضي کړو، د دې لپاره باید له هر ولایت درې تنه یوه پلاوي کې رسماً وټاکل شي، چې د شورا د تزکیې او مشرانو رابللو چاره پر مخ بوځي... په دغه صورت کې امید شته یو اواری ترلاسه شي، که داسې ونه شول بیا ته یوه شه او ستا شورا..."

ما پخپلو تکو مسوده ولیکله... خو ځینې تکي یې راباندې واړول چې اسانه شي، هغه دی، چې لوړ متن ترې رامنځ ته شو...

ذاکري صاحب راته کړه: ته خپله ورسره ولاړشه... وایي یو سړي چاته ویل که خط ور ولیکي... هغه ورته کړه پښه مې خوږېږي... ویل خط په لاس کاږي، پر پښه څه کوې...؟ ویل مجبور یم د خپل خط د لوستو لپاره ورسره ولاړ شم چې بل څوک یې نه شي لوستلی،

عبدالرحیم اخوندزاده، قاضي میرزاخان دلیلي او زه رهي شوو... د پولادي امیر مانۍ کې هماغه اوسپنیزه خېره... په ورته هیبت او صلابت ډېره لګولې... استاد باغ بالا مانۍ کې دېره دی، اخوندزاده او قاضي یې وروبلل زه یې دباندې ایسار کړم... په یو څه ځنډ یې وروغوښتم... راته وایي دا ملایان لکه ته د سده باسې...؟ ما ویل زه یې په لېونتوب اړولی یم... اخوندزاده صاحب ورته کړه، ټول له سده وتلي یوو، دوی چای چښلی و... ماته یې د شین چای ګیلاس کېښود... سوړ و، ډک مې پرېښود... استاد یو لیک وکیښ:

محترمو ورونو علمای کرام حفظه الله تعالی!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته وبعد...

**ما په استاد یو خط ولیکه او د یو هیئت په ذریعه امرصاحب حکمتیار ته واستاوه شه او یو هیئت ستاسو خواته در واستاوه شه، چې په ګډه مولوی خالص سره خبرې وکړي، او په دې ښه پوه اوسي، چې خدای ناخواسته که ټول خلک ایتلافي نظام ومني، د اتحاد تنظیم ته یې منل د امکان څخه ډېر لیرې ښکاري، چې د ګلم جمو یو نفر هم په دې مجلس کې ناست وي، زه به په کې نه یم، زما د ننیو خبرو فیته در وغواړئ تاسو ته به پته ولږي چې موږ څه غواړو، هیله ده دورونو په قناعت کې تاسې هم مرسته وکړئ.**

**والسلام علیکم**

۱۳۷۱ / ۱۰ / ۷

بسم الله الرحمن الرحیم

# اتحاد علمای افغانستان

تاریخ: / /۱۳۷۲ هـ ش

برادر محترم حکمتیار صدر اعظم دولت اسلامی افغانستان

بمنظور تحلیل و بررسی وضع نابسامان فعلی کشور و جریان جنگ های دردناک وویرانی خانمانسوز و بدنام کننده برای مسلمانان و دولت اسلامی که ثمرات پربار پانزده ساله جهاد را لحظه به لحظه نابوده می برد، اجتماعی مسؤلانه از علما و قوماندانان و اهل خبره و سران و بزرگان اقوام، بروز دوشنبه ۱۷ عقرب ۱۳۷۲ در شهر جلال آباد دایر گردید.

درحالیکه در برابر وضع جاری انزجار کامل مردم مظلوم افغانستان و مراتب تأثر و تأسف همه امت اسلامی که انصار جهاد بوده اند و در رابطه با پامال شدن حرمت و مصالح ملت مسلمان و آبروریزی برای همه داعیون اسلام و نهضت های اسلامی و خطرات مداخلات شوم دشمنان و آینده تاریک نتایج داش پانزده ساله جهاد و قربانی بی مثال امت اسلامی به شما انتقال می دهد برای آنکه این سقوط قهقرائی از حد موجوده آن نیز جبران ناپذیر نشده باشد مواد مندرج آتی را از جناب شما خواستار است.

الف: آتش بس عاجل و فوری جنگ جاری را اعلان نمائید و قوتهای محارب در موقعیت های موجوده شان متوقف گردند.

ب: همه راه های مواصلاتی در مسیر کابل وولایات بدون قید و شرط باز گذاشته شود.

ج: برای حل مسائل متنازع فیها به هیأتی مشتمل از کبار علما و مصلحین اختیار کامل تفویض گردد تا در چوکات شریعت منور اسلام و مصالح ملت مسلمان و ارمانهای امت مسلمه به حل و فصل آن بپردازند.

دغه مکتوب په همدغه متن احمد شاه مسعود ته هم لیږل شوی...



دافغانستان اسلامي دولت
دصدارت عظمى مقام

دولت اسلامی افغانستان
مقام صدارت عظمی

شوری محترم اتحاد علماء افغانستان!

السلام علیکم و رحمة الله و برکاته!

در رابطه با مطالب مندرجه مکتوب مورخ۱۳۷۲/۸/۱۷ تان با احترام عرض می کنم:

الف: با اعطای صلاحیت عام و تام حل وفصل همه قضایای متنازع فیها مطابق شریعت اسلامی به هیأت حکم صددر صدموافقیم و اطمینان می دهیم که نسبت به فیصله های هیئت التزام خواهیم ورزید.

ب: با توقف جنگ و اعلان اور بند موافقم، با باز شدن همه راه های مواصلاتی توافق داریم.

از خداوند کریم برای خود و شما توفیق خدمت صادقانه در راه نجات کشور ازین وضع دردناک، اقامه صلح و تشکیل نظام صد در صد اسلامی مسئلت می جویم.

با احترام

برادر تان« حکمتیار»

*********************************

فضیلت مآب ذاکری صاحب و علمای نهایت محترم

السلام علیکم و رحمة الله و برکاته!

صحت و موفقیت شما را در وظیفه ایکه در پیش گرفته اید از رب العزت خواهانم.

فرستادگان شما تشریف آوردند و روی مسائل با ایشان صحبت نمودم که ان شاء الله شما را در جریان قرار خواهند داد.

امیدوارم معضله موجود به لطف الهی و تلاش شما حل گردد.

احمد شاه مسعود

# زور حقیقت نه دی

## څه کېدی شي، څه کولی شو...؟

وضعه دردوونکې، پرمختیاوې لړزوونکې دي، حال بوږنوونکی، مستقبل تیاره دي، زه داسې ګنم نه باور شته، نه اطمینان، یوازې هیلو کې سا چلېږي، ژوند په امید تکیه دی، نیم ژواندې اسرې د ژوند ارابو ته دیکه ورکوي، نور د ژوند لپاره نه وخت شته، نه حالات مساعد دي.

وخت د مرګ پر خوا دی، حالاتو له ژوندانه لاس اخیستی د مرګ په انتظار ولاړ دي، هرڅه د مرګ په چوپړ کې دي.

د جګړې غاړې، تنظیمونه د خپلو خلکو پر ځای بهرنیو ته ګوري، لکه خپله پرېکړه تصمیم یې نه شته، د ملت اراده یې تر پښو لاندې ده، پر توطئو، معاملو یې ایمان راوړی، په مخفي کارۍ بوخت دي، اقتدار یې قبله ګرځولې، واک ته په سجده پراته دي...

اقتدار که په هره بیه وي، هر قیمت ته چمتو دي، په هرڅه بولۍ لګېږي، هرڅه لیلام دي.

حقاني صاحب په ليدو کتو بوخت دی، يوه ته ورځه، بل ته کينه، زه د هغوی په خوله يوه پر زړه بله له ورايه ګورم، نه پوهېږم حقاني صاحب څرنګه ورسره د خير، ښېګڼې هيلې پېيلی شي...؟

زه د خپل زړه خبرو ته وخت نشم مونداى، که کوم ماښام له حقاني صاحب سره د يوازې کېناستو فرصت مومم تر ډېره دواړه چوپ وو، لکه د ويلو څه نه لرو، لکه زه د ده پر زړه پوهېږم، دی زما پر مدعا... داسې چې غواړو څه ووايو، خو نه يې وايو، نه يې شو ويلی... چې خبرې د نهيليو بربوکيو کې نغښتې... له ويلو پټه خوله ښه ده... شيخ فريده پټه خوله دې بهتري ده...

زه د خجالت احساس کوم، چې نه مې شوی کړی د زړه خبرې راپورته کړم، ځان په يو ډول منافقت پر راته ښکاري... پوښتنه دا ده، چې دغه مشران په جرګه، نرخ او کاڼی معتقد کېدی شوی...؟

د حقاني صاحب سترګو کې يو ژور درد ګورم، يو دوک او نهيلي موم، څه خبر زما سترګو کې د بغاوت سکروټې ليدی شي...؟

زه چې ورته په نيوکو شکايتونو خوله پرانيزم... راته وايي: موږ نور څه کولی شو...؟ نه له يوې غاړې سره درېدی شو، نه له بلې سره، زور کشاله نه شي اوارولی، بې له دې چې د جوړې او سولې خبره وکړو، بل حل نه شته... دا زموږ مکلفيت او مجبوريت دی... که نه ته ووايه څه وکړو، څه کولای شو...؟

زه غلی شم دی هم چوپ شي، څه شېبه دواړو ځانونه دغسې چوپتيا ته سپارلي وي، چې ورته ګورم پر څېره يې د څرګندي نا خوښی نښې ګورم، له وضعې، حالاتو، که زما له نيوکو او احساساتو...؟

لکه حقاني صاحب له خپل مزاج مجبور دی، د جرګې، نرخ او کاڼي

مجبور ، مرکې او سولې ته ژمنتیا... چې پکتیا د جرگو وطن دی... دلته هر قومي مخور په دغسې ژمنتیا ځان اړ گڼي، چې دلته د حکومتونو په پرتله د جرگو سیستم غښتلی راوتلی... چې حکومتونو هم جرگو ته کتلي، جرگې ته په مخ اړولو یې گام اخیستی دی.

دغه ولسونه چې څومره جنگیالي پېژندل کېږي، دومره نرخ، کاني قومي کودونو، جرگې او سولې ته ژمن او معتقد ختلي...

دا خو مو هر چاته دا خپل زړگوټی سپین ساتلی
چې مو د وخت په داړه مــــارو هم یقین ساتلی

(...)

## د مولانا فهیم بنډار:

له مودو پس مې حاجي نسیم وموند ورسره کش یې کړم چې له فهیم سره گورو، د بهرنیو چارو وزارت واټ ته د صدارت راختلې دروازه نظار شورا ترلې د توره بازخان څلور لاري دروازه خاصو مراجعینو ته له پوښتنو، پلټنو وروسته پرانیستل کېدی شي.

حاجي صاحب له وسله والو سره غوړونه وجنگول، زه یې پر اشاره وروغوښتم، کلك یې تالاشي کړم، حاجي نسیم خندل، زړه راته وایي بېرته وگرځه، خو د وسله وال له ډاره مې دا کار نه شوی کړی.

د صدارت بنه نه دا چې اوښتې بلکې بیخي الوتې، فضا ترینگلې او مرموزه ده، صدارت لکه پوځي قرارگا داسې ښکاري، وسله وال یوه بله خوا ځغلي، یوه لوی سالون ته په تلو حاجي نسیم یوې کوټې ته ننوت، زه سالون کې ولاړ یم، د استاد رباني او مسعود لوی عکسونه پر مخامخ

دېوال لګېدلي، وسله وال له سر تر پښو راته ګوري، یو نیم له چا سره څه وایي، خو پوښتنه نه کوي، حاجي نسیم راووت، ورته وایم په څه بلا دې واړولو، دی څه نه وایي، خاندي...

پر پوړیو وختو، حاجي بیا یوې کوټې ته ننوت، زه ولاړ یم، یو عسکر وروغوښتم له ساره سترې مشي سره یې پر یوه چوکۍ د کیناستو وویل:

حاجي نسیم بله کوټه کې دي، چې راووت زه یې لاس نیولی ورسره ننویستم، یو ژنی پټه خوله ناست دی، موږ هم غلي کیناستو، لکه په خبرو بندیز لګېدلی، لس دقیقې وروسته یو وسله وال له مخامخ کوټې راووت، موږ یې وروغوښتو چې ننوتو کوټه کې نه میز و، نه چوکۍ، پر سره غالۍ نوې توشکې پرتې دي، پستې غتې تکیې دیوال ته ایښې... یو پنډ پربړ سړی ناست دی، یا الله دا مولانا فهیم دی؟ دا قتدار له سړي داسې بلا جوړوي...؟

ماته د جمعیت نظامي کمېټې یو مامور سترګو ته ودرید، چې پر موټرسیکل به ګرځېده، خوش باش خوش پوش... دا په څه غضب اوښتی.

سترې مشې مو وکړل، معلومه شوه ، دا د مولانا صاحب رسمي دفتر نه دی، دی چې له چا پټېږي نو پر دغه کوټه ننوځي، یا به آن کار دیگر بوخت اوسي...

مولانا صاحب چې اوس جنرال دی، له واره حقاني صاحب د نیوکو تر غشو لاندې ونیو، نه ښه نه بد، د حکمتیار پر ملاتړ یې پړ کړ، تر دې چې حزب ته یې د وسلو مهماتو په ورکولو تورن کړ، وایي موثق اطلاعات ورسره دي...

ما ورته کړه! حکمتیار له حقاني صاحب ستاسې پر ننګه ګیله من

دی...

مولانا پر پاکستان خوله ورخلاصه کړه، چې کابل یې له خپلو جاسوسانو ډک دی...

ما ورته کړه تاسې د پاکستان مینه کې دومره ډوب وئ چې موږ مو پر پاکستان د نیوکو په تور دوزخیان بللو...

ده وویل: جنرال رحیم وردگ او حامد کرزی د پاکستان اجنټان دي... اوس یې زما پر رحیم وردگ او حامد کرزي څه...؟

که نه جنرال زما وطندار دی...

حامد کرزی خوارکی یې دومره ډانډاس کړ، چې د ده په خبره سرش زیر بالش خات شد...

جنرالي مولانا فهیم ته دا زیان اړولی چې ډېری یې د خاد پخوانی جنرال گڼي، خادست یې بولي، که هرڅو وايي مجاهد دی، نه یې شي پرې منلی...

ډاکتر نجیب الله هم د خاد له تور او غضب څان نه شوای خلاصولی، وایې ډاکتر د خاد پر ریاست همېشه د پښېمانۍ او افسوس اسویلي ایستل او خپلو ملگرو ته یې د ده پر غاړه د دغې دندې غورځول د کارمل توطیئه گڼله.

## له پیسو خالي بانکونه:

## په یوه بڼه د څو کرنسیو چلښت:

افغانستان بانک ترمخ داسې بیروبار وي، چې سړي ته د دموکراسۍ د دورې مظاهرې ور په زړه کوي، زما یوه ملگرې په ټوکه کې وویل، د

رباني صاحب سخاوت ته گوره، د پيسو خومره حوالې يې خلکو ته ورکړي...

معلومه شوه، چې د حل او عقد شورا د رشوتونو له امله د بانکونو خزانې تشې پرتې دي، درشونو په احکامو سربېره د بانکونو په مخه کې ولاړ سوداګر دا يوه مياشت د پيسو د نشتوالي له امله هره ورځ حواله په لاس دلته بېګاه کوي.

يوه ورځ مو د پښتني تجارتي بانک له خزانه دار سره ملاقات وشو، د خزانه دار نوم رانه هېر دی، خو په قوم ځدراڼ و، ده د حل او عقد شورا لپاره، د داسې رشوتونو کيسې وکړې، چې د نړۍ په تاريخ کې به د رشوت او اختلاس دغسې رسوايي نه وې شوې.

دا وخت افغانستان کې په يوه بڼه خو کرنسۍ چلېږي، د پنځو او لسو زرو بانك نوټونه نوي راوتلي، دوستم او رباني ته روسيه کې جلا جلا بانکنوټونه چاپېږي، پر دغو نوټونو روسي قاچاقبران پېښور کې ډالر رانيسي، حکمتيار چې له وړاندې دغه پيسې چلينج کړې وې، يو ځل بيا د لسو پنځه زرو نوي چاپ شوي نوټونه ناچله اعلان کړل، ځکه خو افغانۍ خپل ارزښت له يوې مخې بايللی، ډېرې راکړه ورکړه په کلدارو ده، حکمتيار هم د پيسو چاپ لپاره مډرن ماشينونه موندلي، د پيسو د چاپ کاغذ يې پاکستاني کسټم ضبط کړ...

که څه هم حکمتيار پخپلو اعلاميو کې د دغسې بې پيشتوانې افغانيو د چلښت مخه ونشوی نيولی، خو سياسي بې ثباتۍ د افغاني کرنسۍ ارزښت دومره وغورځېد چې د حکومت لخوا له رشوت او بډو پرته مارکيټ کې نه شوی چلېدی...

بسم الله الرحمن الرحيم

# اعلاميه رياست مالي حزب اسلامي افغانستان

غرض رفع مشکل بانك نوت هاي جعلى افغاني به همه افغانها اعلان مي گردد که :

۱- ازنگهداري بانك نوت هاي افغاني وخريداري آن خودداري کنند.

۲- عجالتاً بانك نوت هاي چون ريال سعودي وايراني، کلدار پاکستاني ودالر بحيث اسعارمورداستفاده درتبادله هابکارگرفته شود.

۳- بانك نوت هاي افغاني اکثراً جعلي وبي پشتوانه بوده،هرحکومت آينده مجبورخواهد بود تا همه رالغوقرارداده وبانك نوت جديد عرضه کند، که درآنصورت همه آنانکه بانك نوت هاي جعلي را نزد خودنگهداشته اند زيانمند خواهند شد.

٤- درعوض حفظ بانك نوت هاي افغاني ، بايد اسعار خارجي دربانگ ها ويابطورشخصي نگهداري شود.

## ناکامه تجربه:

د جمعیت فرهنګي انجمن کې له زړو یارانو سره د ملاقات فرصت ګوتو ته راغی، فاضل صاحب د برکي اورده چپنه اغوستې، د مدرسې له وختونو تازه او تاند ښکاري... اجرالدین ویاړ هم له پخوا زیات غښتلی معلومېده، چې د هېواد ورځپاڼې رئیس ټاکل شوی، خو د هېواد وضعه لکه د ټول هېواد خرابه ده، اجر الدین ویاړ له ما د همکارۍ غوښتنه وکړه، ما ورته وویل، اوس مې دا دوکان تړلی، د حرفونو سوداګري مې پرېیښې.

ویاړ وویل: تحقیقي مضامین راته لیکه، ما ورته ویل، په څه تحقیق، په دې چې کتابخانې داسې چور او وسوځول شوې، موزیم لوټ شو، بانکونه او ملي شتمنۍ هغسې تالا شوې...؟

فاضل د ژواک صاحب خبره وکړه، خو ما ورته ویل زه ستاسې له لاسه له ژواک سره د مخامخېدو سترګې نه لرم، اجر الدین بیا د قلمي همکارۍ او ډبلې حق الزحمې خبره وکړه، ما په لنډه ور پرې کړه: د ړندو ښار کې مې د هېندارو د پلور ستوماني نه ده ختلې... د دولت پر خزانو چور ګډ دی او چې څه پاتې وو، د حل او عقد شورا له سره ځار شول، د بانکونو ترمینځ سوداګر هره ورځ له سهاره تر مازیګر حوالې په لاس د پیسو لپاره د توغندیو له خطر سره ولاړ دي، د ډبلې حق الزحمې درک به له کومې لګوي؟

فاضل د اطلاعاتو او کلتور وزارت د نشراتو ریاست خبره وکړه، خو ما ورته وویل: زه د وچې خانې کوم، که د استاد رباني پاچاهي ومنلی شم، نو د اطلاعاتو او کلتور وزیرحیثیت خو والله که راباندې ومنې.

په خبرو خبرو کې اجرالدين له ملايانو سر وټکاوه، ويې ويل: ترڅو چې ملايان وي، ښه ورځ به ونه وينو، ما ويل: اخوانيان لکه مرفوع القلم ګورې، د اخوانيانو په دفاع کې لګيا شو، خو فاضل خبره ورلنډه کړه: دا هم يوه ناکامه تجربه وه.

بسم الله الرحمن الرحيم

# اتحاد علمای افغانستان

تاريخ:۱۳۷۱/۷/۲۶

الحمدلله رب العلمين والصلوة والسلام علي رسوله الكريم وعلي اله وصحبه اجمعين اما بعد :
اتحاد علما ء افغانستان او جهادي مهمو قوماندانانو د۱۳۷۱ هـ ش دميزان په ۲۶ مه نيټه په كامل اتفاق سره فيصله وكړه چي متخاصمي ډلي لكه حزب اسلامي افغانستان،او جميعت اسلامي افغانستان ، همدارنګه اتحاد اسلامي افغانستان اوحزب وحدت (اهل تشيع ) او نور دي خپلي شخړي دفيصلي له پاره اګه چي دالله (ج) فرمان دي ( فا ن تناز عتم في شي ء فردوه الي الله والرسول ان كنتم تؤ منون بالله واليوم الاخر...... فلا ور بك لايؤمنون حتي يحكموك فيماشجربينهم ثم لا يجدو ا في انفسهم حرجاً مما قضيت ويسلموا تسليما ) دالله (ج) كتاب او درسول الله صلي الله عليه وسلم سنت ته محول كړي ، او علماء به دكتاب او سنت سره سم فيصله كوي ، له دغه تاريخ نه وروسته به هيڅ يو لوري پر خپل متخاصم لوري باندي حمله نه كوي او كه له دي فيصلي نه سرغړوي نو هغه په واقع كي متمر داومسؤل بلل كيږي بلكي زموږ دجهاد په دي حساسه مرحله كي غواړي دجهاد ثمره ضايع كړي البته دمصلح هيئت معلومات او نظريات هم راغوښتل كيږي او دموضوع دتحقيق له پاره به داتحاد علماء افغانستان تر كلكي څارني لاندي نيول كيږي .

# د حکمتیار ملاقات

## د کابل ناپوځي کېدو وړاندیز

حکمتیار صاحب مخې ته راووت، وایي دا خو د سولې هیئت نه دی د سولې لښکر دی په کوټه کې څلورو دیوالو ته په بېلا بېلو بڼو او ډیزاین کوچونه ایښي، ایله شل تنه هغه هم په تکلیف کوټه کې ځائیدی شوی، نور دباندې پاتې شول.

حقاني صاحب خپلو خبرو کې وویل د کابل امنیت امانت دی، دکابل قوماندانانو شورا ته دې وسپارل شي، دا ستاسې (حکمتیار) غوښتنه هم وه، موږ غواړو په صداقت دا کار ترسره شي، له پلمو بهانو ډډه وشي، فیصله بشپړه شوې، اعلان یې پاتې دی، مولوي صاحب خالص، پیر صاحب، مولوي محمدي د فیصلې ملاتړ کړی، دلته به د انتخاباتو او منتخبې شورا لپاره زمینه مساعدېږي، داسې حکومت به جوړ کړی شي چې په تحزب متهم نه وي.

موږ غواړو د فیصلې د اعلان اجازه راکړئ استاد رباني هم د همکاری وعده کړې، ان شاءالله تقصیر به نه کوي.

د قوماندانانو اطمینان ستاسې له طرفه او زموږ اطمینان د قوماندانانو له طرفه ضرور دی، موږ ستاسې ملاحظات پام کې نیولي د فیصلې مهم اړخ دا دی چې کابل باید غیر نظامي شي، او بېطرفه

حکومت راشي، دواړه غاړې به د خپلو بندیانو لست راکړي، چې د فیصلې له اعلان یوه ورځ وړاندې خوشې شي.

**ډاکتر فاروق اعظم:** مذاکرات اخیر ته رسېدلې نور باید اعلان شي، ستاسې نکات او ملاحظات په نظر کې نیول شوي، تاسې مطمئن اوسئ دا خلك چې راټول دي پر ځان یې هم شاهد نیسو او پرتاسې هم...

دا واقعیت دی چې جنګ د حل لار نه ده، یو تنظیم حکومت نه شي کولی، په داسې ګډوډۍ کې ملك دوام نه شي کولی، ملك ته یو ثابت نظام په کار دی.

ولایتونو تعهد کړی چې د اصلاحي شورا د پرېکړې تر شا به ولاړ وي، مذاکرات ښه روان دي، هیله ده په تطبیق کې یې تاسې همکاري وکړئ، ځکه ستاسې ډېر څه په هغې کې مراعات شوي دي، تاسې د دغې فیصلې په تطبیق کې ډېر څه کولی شي.

**مولوي غلام رباني:** حکمتیار صاحب هغه ګناه چې دا دوه کاله استاد رباني کوله اوس یې ته کوې...

**مولوی صدیق الله:** زموږ فیصلې مخکې چا ونه منلې، یو ځل یې موږ د مقابلې لار غوره کړه، بیا پیغامونه راغلل موږ معطل شوو، اوس هم د کابل قوماندانان دې ته اماده دي چې په ګډه به یې مقابله او مقاطعه کوو.

**مولوي نظام الدین حقاني:** په کابل کې د شورویانو سره جنګ کې دومره بې عزتي او بېدیني نه وه، راغلې، لکه اوس چې راغلې، موږ د خوست، ګردیز پکتیکا خلکو پرېکړه کړې چې د دغه جنګ مخه به نیسو د جنګي ډلو پر وړاندې به درېږو...

ته به خپل وس نه دریغوې اعلانیه به یې کوې، پټې معاملې خو

زموږ د مشرانو ښې زده دي، خو موږ هرڅه ښکاره غواړو...

لکه مخکې چې حقاني صاحب وویل تاسې له موږ سره د فیصلو په تطبیق کې همکاري کړې، حکومت که په زور کېدی شورویانو به کړی وی، که په پیسو ټینګېدی رباني به دا کار کړی و، حکومت په تفاهم چلېږي.

**حقاني:** د دې خکلو له آزار او ښېراوو باید وډار شو، که فیصله نه شي منلی په ډاګه راته ووایه چې ودې منله، بیا پلمې بهانې نه غواړو.

له یوې بلې خوا له حکمتیار سره د دوستم د همغږۍ په غندنه خبرې وشوې.

**حکمتیار:** پیر صاحب ګیلاني هم د تره کي د دیني امورو مشاور و، (۹) میاشتې یې دا دنده ترسره کړې، که داسې وي بیا دا هم وغندئ...

پر قوماندان شېرخان کوچي دا خبره بده ولګېده، حکمتیار صاحب وویل ټوکه مې کوله.

عبدالقیوم خان! مخکې به موږ کمونستان پرچمیان په حزب ډارول، خو اوس حزب خپل ځنګ پورې ونیول.

**حکمتیار:** داسې ښکاري چې هیئت دا ګڼلې چې که فیصله اعلان کړي، مخالفت به یې وشي، خو داسې نه ده، موږ د فیصلې د تطبیق وعده درکوو، د اوربند، مسلحو قوتونو وتل، د کابل امنیت د کابل قوماندانانو ته سپارل، موقت حکومت، شورا اوله حساسو پوستونو د کمونستانو لیرې کول، دا ټول درسره منو له مخالف سره به یې مخالفت کوو، موږ مخکې هم ټولې فیصلې منلې خو متاسفانه، مقابل طرف ترې سرغړونه کړې.

موږ له دې وړاندې منځګړیو ته بشپړ واك ورکړی، خو دا ځل

متاسفانه داسې واك نه شو ورکولی، خپل عذر او شرایط لرو، دا د هم آهنګۍ شورا شرایط دي که مراعات شول ومو ويل مرسته به کوو.

موقت حکومت باید دوو هفتو کې جوړ شي، دایمي اوربند او د جګړې ختمول د موقت حکومت مسوولیت دی، په کار نه ده اول شورا جوړه شي بیا حکومت...

که اول شورا جوړوو، بیا حکومت دا ډېر وخت غواړي، د شورا تر جوړېدو باید د حکومت جوړول ونه ځنډول شي، تاسې لنډه لار انتخاب کړئ، موږ چې څه وایو په هغې ولاړیو، تاسې وويل فیصله به هله اعلانوو چې دواړه خواوې پرې توافق وکړي، په دې صورت کې مسئاله حل ده، دا ښه صورت دی.

زموږ د معلوماتو له مخې هېڅ طرف توی وړی واك نه دی ورکړی، دواړو خپل شرایط وړاندې کړي، فیصله دې دواړو ته واورول شي، بهتره دا ده چې له هم آهنګۍ شورا سره وګوری، د دې لپاره چې بیا څوك مخالفت ونه کړي، که هغوی دا وګڼي چې له مخ یې کرکه کېږي، لیدو ته یې څوك حاضر نه دي، هغوی بهٔ څنګه ستاسې فیصله ومني؟

**حقاني:** دا اوس چې د هم آهنګۍ شورا سره دلیدو خبره کوې، اول به دې ویلي وو، مشترك ملاقات به شوی و، موږ به فیصله نه کوله، موږ داسې ګڼله دوستم ستا نمایندګي منلې ده؟

**حکمتیار:** مانه دي ويلي دا ونیسئ هغه مه نیسئ، تاسې چې هر څوك درسره نیسئ زه کوم اعتراض نه لرم، خوښ یم، موږ چې هم آهنګۍ شورا جوړه کړې داکار مو سنجیده کړی، جنجال یې نه ګڼو، چاره نه وه، ځکه ملك خطرناك حالت طرف ته روان و.

استاد رباني او مسعود دغه جنګ کې استعمال شوي، موږ دوی

سره جګړه نه درلوده، که دلاور ته بمونه نه وی ایښودل شوي، نن به هم لوی درستیز و، پښتانه به له شماله وتل.

۲۲ میاشتې پر ما جنګ و، زه ورته یوازې ولاړ وم... د خالص او محمدي دروازې مې وټکولې هغوی زه په حقه ګڼلم، خو د ملاتړ جرآت يې نه شوای کړی، دې طرف ته یو کمونیست چا نشوی راښودی، خو هلته لوی درستیز دلاور، جنرال بابه جان، ګارنیزیون، خاد، او دفاع وزارت او قطعات ترې ډك، دي...

حکمتیار دوه درې ځلې د توضیح غوښتنه وکړه... ده د فیصلې له مجهولیت سر وټکاوه.

یوه هفته کې يې د کابل تخلیه او دوو کې د رباني استعفا غوښته.

**حقاني:** بیا وایم چې جګړه حل نشي راوستی، له دې عذاب په خبرو او تفاهم وتلی شو.

**حکمتیار:** مجامله نه کوم، موږ په دواړو لارو کار کوو، خو دې ته ترجیح ورکوو، چې جګړه ونه شي.

**حقاني:** بیا هم وایم کابل باید غیر نظامي شي، انتخابات وشي، ملي اردو جوړ شي.

**حکمتیار:** مسعود راډیو تلویزیون کې ناروا تبلیغات کوي، د ګلبدین دوستم بدنامې ملېشې یادوي.

**عبدالرحیم اخوندزاده:** د بدنامو نوم خو تاپرې ایښی و.

**حکمتیار:** حقاني صاحب! تابه زه هم پېژندلی وم، مسعود هم، مسعود خو هغه سړی دی چې له تا تښتېدلی و.

**حقاني:** له مانه، له مولوی منصور او قاضي امین وقاد...

**حکمتیار:** موږ نن شپه د عملیاتو وخت ټاکلی، خو که سوله وشي،

موږ تعهد کوو.

**حقاني:** تاسې باید د جنګ حل د خبرو په حل مقدم نه کړی.

**حکمتیار:** داسې ښکاري تاسې خپله فیصله ځندوئ؟

**حقاني:** فیصله لیرې نه ده، ستاسې جنګ نژدې راته ښکاري.

**حکمتیار:** فیصله باید ډېر ژر اعلان شي.

**حقاني:** موږ غواړو لکه تاچې ځنګه مطمئن کولای شو هغوی هم داسې مطمئن کړو، دا لږ وخت غواړي، د هغوی اطمینان له تا یو څه ګران دی.



بسم الله الرحمن الرحیم

با بازشدن راه‌ها کاملاً موافق بوده حاضریم همزمان
با اخراج نیروهای مسلح از شهر کابل و تأمین امنیت
شهر و مراکز دولتی آن توسط شورای جهادی ولایت
کابل همه راه‌های مواصلاتی به شهر کابل را باز نمائیم

در دوران آتش بس مؤقت چهارروزه
به خاطر استقبال از پیشنهاد هیئت ملل صلح و
رفع مشکلات اهالی مصیبت زده کابل مارکیت‌های
مصرف عاجل در مناطق سرکریان اول ، چاردهی
دهمزنگ و افشار احداث شود

در صورتیکه طی مدت مؤقت آتش بس کار
هیئت در راستای حل مشکل و مواضع اعلان
شده ما منطقانه باشد در رابطه با زمان و تمدید
آتش بس تصمیم خواهیم گرفت

# د تیښتې حقیقت

د حکمتیار صاحب دغې خبرې چې مسعود هغه سړی دی چې له تا تښتېدلی و، زما سودا کړه پر سبا مې له حقاني صاحب پوښتنه وکړه؟.

ده وویل:

۱۳۵۵ لمریز کال میزان میاشت وه له میرانشا پېښور ته تللی وم، گورنر هاوس احاطه کې یو دفتر دی کچري یې بولي د توپانچې لینس مې نوی کاوه که څه کار مې و، که گورم قاضي امین وقاد، مولوی نصرالله منصور او احمدشاه مسعود هم ناست دي، روغبړ مو سره وکړ، مسعود څان څادر کې پېچلی و، تر څادر لاندې یې لاس راکړ، زما پام نه شو چې د ده لاسونه یې تړلي دي، موږ له جوړ پخیر نه و خلاص، چې ده تشناب ته د تلو خبره وکړه، تشناب ته چې ولاړ څند یې وکړ چې کتل مو د تشناب له کړکی یې څان غورځولی و...

دی یې کابل حکومت ته د جاسوسی په تور نیولی و، له دې ورځې بیا ورك شو، تر هغې چې کمونیستانو کودتا وکړه...

مذهب پدې خاطر منلی چې په اجتهادي فضا کې دود
کې شو ده استنباط له قرآن او سنت نه ترټل
هر څه دقیق شوي دي.

۲- په اسلامي حکومت کې باید اقتدار د صالحو، متقي
پاکانو او هغو کسانو په لاس کې وي او کمزوري،
ملحد او فاسد عناصر په اسلامي حکومت کې د ګډون
او په ولس د استیلا او تسلط حق نه لري

۳- یوه لوړه شوری شته چې د ولس واقعي نمایندګي
او تمثیل ولکولای شي، مستقیماً د ولس له خوا
انتخاب شي او یا د هغو وکیلانو د تمثیل شوري
او متفق علیه شوری له خوا یې عمومي منظوري شي
کامله شو او حق ورکړو چې د راتلونکي حکومت

بسم الله الرحمن الرحیم

**Gulbuddin Hekmatyar**

AMIR OF
HEZB ISLAMI AFGHANISTAN

**گلبدین حکمتیار**

امیر حزب اسلامی افغانستان

DATE:

تاریخ: ۳/جوزا/۱۳۷۷

په هکله فیصله وکړي څو د ارګ شورى هم د جعل کارۍ
او رشوت له لیارې د اهل حل وعقد په نامه جوړه
شي نشو منلی .

۴- که ادارت یوه منل شوي، موقت حکومت ته
وسپارل شي او بیا د تصویب شوي لایحې
سره سم د شورى د صلاحیتونو او د غړو د ټاکنې
کار پیل شي نو بیا له اوږنه شده شوروي یو
لږ هم بدي نوره کې به د راتلونکي د
اولسي لوی
اَمن او د ګډې د ګټې لپاره هر راز
تعاون ته تیار یو .

# د استاد رباني ملاقات

د استاد رباني خبره غوږېدلې، مزمل د خبرو وار وړومبی کړ، استاد خوشاله ښکاري، هیله ده زموږ خبرې ومني...

استاد په موسکا کندز سمنگان کې پخپلو فتحو غړېده له یوې لنډې یادونې سره یې بیانیې ته ځان جوړ کړ.

له حمد وثنا وروسته: له ټولو مصلحینو په سر کې حقاني صاحب مننه کوم، حقاني صاحب په ډېر اخلاص جهاد کړی، ډېر برکتي مجاهد دی همېشه یې مشکلاتو کې په صبر او ایمانداری استقامت ښوولی.

اوس هم په سختو شرایطو کې چې جنگ دی، د سولې لپاره بوخت دی، زه ورته د توفیق دعا کوم، چې د اسلام او مظلوم افغانستان لپاره هلې ځلې کوي، له چاسره چې د اصلاح نیت وي حتماً یې الله تعالی بریالی کوي.

حوادث ډېر دردناک دي خدای تاسې ته توفیق ورکړ، چې دا حالت ته خاتمه ونیسئ خو تر اوسه زما د تجربې او برداشت له مخې دا ټول حوادث چې راغلي زموږ له خوا څه خطاگانې وشو خو نورې توطیې هم وشو، له خارجه وشو، اصلي هدف دا و چې مسلمانان او مجاهدین بدنام وکړي، او د امید دا ځای ختم وشي، چې د نورو لپاره مثال او اسوه حسنه ونه گرځي، چې بیا څوك د جهاد نوم وانخلي داسې که هر چا جهاد وکړ له همداسې سرنوشت سره به مخامخ کېږي، دا ډېره خطرناکه دسیسه ده.

ازبکستان وایي مداخله نه کوي... بیاوایي دا ناممکنه ده چې بې تفاوته پاتې وشي... وایي د بنیادگری په مقابل کې چوپ نه شي پاتې

کېدای، ډېرو ملکونو په بېلا بېلو طریقو د مداخلې هڅه کړې، حقاني صاحب او نورو ورونو ته توفیق غواړم چې په دغه نیك کار کې بریالي شي.

او په دې زیات کوښښ وشي، د دې پر ځای چې د کابل لپاره د ملل متحد د غذایي موادو مخنیوی وشي، بیا یې د بطروس غالي په امر پرېږدي، خو د خدای او مسلمانانو په غوښتنه یې نه پرېږدي، چې پر خلکو د اوراگانو د ډزو مخه ونیول شي، دا ستاسو خپل کار دی زه نور څه نه وایم واقولي قولي هذا...

## حقاني: له حمد وثنا وروسته:

عزتمندو!

له استاد سره زموږ تعلق پخوانی دی، د ۱۳۵۴لمریز له روژې وړاندې د شعبان میاشت کې موږ هجرت وکړ، له دې وړاندې مو هم ارتباط و، خو دغه وخت کې استاد او نورو دوستانو چې ځینې غایب او شهیدان شوي دي، زموږ مخامخ لیده وشول، او یو تعلق ټینگ شو، که څه هم یو ډول تحزب او تفرقه موجوده وه، خو هدف یو و، څوك په یوه نقشه، څوك په بله نقشه...

کوم مشکلات او اختلاف چې موجود و، الله تعالی د هغې نه تسامح او عفوه کوله او د هغه ستر او عظیم هدف لپاره چې د مسلمانانو لاس تش او دښمن مجهز و، خو د مجاهدینو تکیه پر خدای وه نو الله تعالی نصرت ورپه برخه کړ، منځنی اسیا او شرقي اروپا له شوروي استعمار آزاد شول.

ورونو!

مور خدای او خپلو خلکو ته مسوول یو، یو صحابي ته روژه ماتی راغی ده ته پخوانی حالت وریه یاد شو چې شپږ ملگري وو، امر ورته ویلي وه یوه کجوره به پشمنی بله ماښام خورئ، بیا نیمه کجوره شوه وروسته یې یوازې دا زړي زبېښل، بیا ماهي اوبو راپورته کړی و، آمر اجازه ورکړه چې پوخ یې کړی ویې خوري، دا د الله تعالی له طرفه یو رزق و، صحابي[رض] وايي هغه شپږ نفره اوس په بېلا بېلو سیمو کې والیان دي، وړاندې یې د یوې کجورې وس نه درلود، اوس دومره عزت وسایل؟ په دې یې وژړل چې هسې نه آخرت مو خراب شي، الله تعالی ټول اجر په دې دنیا نه وي راکړی؟

مور ته هم الله تعالی له هغې بېوسی وروسته داسې عزت راپه برخه کړ، خو اوس چې گورو د خپلو خلکو منځ کې له نفرت او بې عزتی سره مخامخ شوي یوو.

د دښمنانو له پېغور سره مخامخ یوو، چې داسې جهاد لکه د افغانستان داسې اسلام لکه د افغانستان، باید د کابل د خلکو غم وخورو، د دې لپاره چې خپل ایمان مو ساتلی وي، دا کار وکړو.

ورونو!

**سوله فتح مبین ده، لکه د حدیبې سوله، د سولې لپاره ملسمانانو ډېر د تکلیف شرطونه منلي، باید سولې ته غاړه کېږدو.**

عزتمندو!

مور باید یو لار او چاره ولټوو، افغانان یو کړو، له تحزب او سمتیت راوگرځو، دا فتنه ورکه کړو، تفرقه ختمه کړو.

ددې لپاره له استاد درې غوښتنې لرو.

دا چې موږ د خپلې فیصلې په اعلان تشجیع کړي، او له اعلان سره یې تائید کړي، او په تطبیق کې هکماري وکړي.

تر ټولو دمخه لارې خلاصې شي، مسلح قوتونه کابل پرېږدي، کابل غیر نظامي شي، دایمي اوربند اعلان شي، که استاد په دغو برخو کې موږ ته ډاډ رانه کړی، موږ دا دروند پېټی نه شو پورته کولای.

## قوماندان انور ډنگر:

موږ حقاني صاحب ته اطمینان ورکوو، د خلکو او اسلام لپاره هرې قربانۍ ته حاضر یوو، موږ د اصلاحي شورا له طرحې او فیصلې ملاتړ کوو، مخکنۍ فیصلې دواړو غاړو ماتې کړې... دا فیصله باید ماته نه شي...

## مولوی صدیق الله:

د کابل قوماندانانو چې دا دوه کاله کومې بدبختۍ کابل کې لیدلي دا موږ ته مالومې دي او خدای ته... اوس موږ او تاسې یو ځای ولاړ یوو، کابل د ټول افغانستان مرکز دی، موږ له دې طرحې او فیصلې ملاتړ کوو، نه منونکي ته یې یو لاس یوو.

## مولوی غلام رباني:

استاد باید د حقاني صاحب له کاروان سره مل شي.

## مولوی نظام الدین حقاني:

عذاب عام دی چې خاص ظالم ته نه رسېږي، استاد چې راغی له مجددي نه دوه چنده شو چې ده څه کړي په ده مسلط شول...

موږ سوال هم کوو، زارۍ هم کوو، خدای روی هم وړاندې کوو، زموږ فیصله او طرحه کې نه خارجي لاس شته او نه یکطرفه فیصله ده،

که نه عذاب خپرېدونکی دی...

**حاجي مالي خان گربز:**

په حقاني صاحب موږ توله پکتیا ولاړ یوو، په فیصله ټینګ یوو، تنظیمونه مو پرېښي، تنظیمو پسې نه ځو...

**ډاکتر فاروق اعظم:**

استاده!

دا خلك د دې لپاره راغلي چې ستاسې پر تعهد شاهدان اوسي.

**حقاني:**

له کابل به مسلح قوتونه وځي دا به د معین تقسیم الاوقات له مخې بې وسلې وځي.

وسله به په معینو ځایو کې ډیپو شي، شورا به د قوماندانانو، مخورو، پوهانو په ګډون جوړه شي او په معینه موده کې به موقته اداره او حکومت قایم شي...

**استاد رباني:**

زه فقط یوه توضیح ورکوم حقاني صاحب چې له موږ کوم توقعات کړي، د هغې د همکارۍ وعده ورکوو، پخپله موافقه ولاړ یوو، که چا خنډونه واچول بیا به هم ان شاءالله دا کار کېږي.

استاد رباني له مولوي نظام الدین ګیله وکړه چې حکمتیار ته څه نه وايي پر موږ خوله راخلاصه کا...

حقاني صاحب وویل حکمتیار صاحب ته یې هم سختې خبرې وکړې...

**استاد رباني:** بالکل یقین لرم.

# چهار اسیا ته تگ

**۱۷/۱/۱۳۷۴ د کب ۱۷:**

بیا هم د حکمتیار لیدو ته ځو، له څرخي پله پر بگرامیو وروگرځېدو، د وزلوبې چمن کې لسگونه ملي بس سر پر سر پراته دي، خو یوازې اسکلېټ، پرزې یې ایستل شوې.

د بگرامیو نساجي فابریکې ماشینونه د مخه لوټ شوي ودانۍ کنډواله پرته ده...

د سید نور محمد شا مېنې کورونو، چتونه نړېدلي، کړکۍ، ورونه یې ایستل شوي، له دغو کنډوالو یو ببر سر له ایستل شوي کړکۍ لکه د وحشت سمبول راښکاره شي...

چهار اسیا ته نژدې پاټک کې خورا گڼه گونه ده، خلکو لاسي کڅوړې، څادر کې من نیم اوړه او پلاستیکي هغو کې غوړي را اخیستي، زنځیر کې ایسار دي.

زموږ په وررسېدو چیغې شوې، په لوږه مو په تدریجي مرگ مه وژني، له دې مو په مرمیو وولئ، چې پاټک یې پرانیست، دوی هم منډه کړه، خو ډېری یې بېرته راوگرځول...

کابلیانو بلا کوله له مرگ سره یې ډغره وهله، د ژوند په منډه کې لا ستومانه نه برېښدل، ژوند یې غوښت، له مرگ سره په جگړه بوخت وو. کابل جان در گرفت دودش برامد، ساربان څو ورځې وړاندې پېښور کې سا ورکړه، مشک تازه میبارد، ابر بهمن کابل. د کابل اسمان اوس اور، بارود او د گولیو ږلۍ اورولې، ساربان څرنگه ژوندی پاتېدی شوای.

ساربان په مهاجرت کې د پېښور سپینه وږی کې مېشت و، زه یې د زوی وړوکې هټۍ ته ورغلم، د ساربان د لیدو هیله مې وکړه، ویل سبا پر درې بجو راشه، چې ورغلم، ساربان ناست و، خبرې یې نه شوی کولای، گونگ و، ما ورته خپل ارادت یاد کړ، د ده له سترگو د اوښکو سېلاب پر سینه رېږه رامات شو...

پر یو نیم کور کې بیا هم ژوند ډیوه بله برېښېده، پر کړکیو یې پلاستیک نیولی، چې ټوپکیانو ته وښیي د ژوند له دښمنۍ لاس واخلي.

له حکمتیار سره د خبرو پته ماته ونه لگېده، چې خونې ته مې د ننوتو مخه ونه مونده...

دوولس گرامه ماغزه/ ۵۲۳

جواب برهان الدین «ربانی» تاریخ ۱/۱۰/۱۳۷۱ اکادعلمای ...

بسم الله الرحمن الرحیم

# ریاست دولت اسلامی افغانستان

یادداشت

تاریخ ۲۵/۱۰/۱۳۷۱

علماء محترم حفظکم الله ورعاکم

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته وبعد!

بارتباط اجراء احکام شریعت غرای محمدی درهمه ساحات زندگی متذکر می شوم

همه ما به خاطر اعلاء کلمة الله و تنفیذ شریعت اسلامی واز بین بردن تسلط کفر والحاد قیام نمودیم، وجز تطبیق شریعت هدف وآرمانی در زندگی ندارم، تطبیق احکام شرعی وجیبه دولت اسلامی بوده امیدوارم دوشا دوش به کمک علماء محترم ~~عظم~~ شریعت اسلامی درهمه ادارات دولتی نافذ گردیده اجازه نمیدهیم عناصر غیر مسلمان بر مقدرات کشور مسلط گردند

امضاء برهان الدین «ربانی»

# لیک؛ زما کمزوري

کاریزمیر کې د پخواني پاچا بڼ دی، د ونو څانګې یې داسې سره اوبدلې، چې لغړو ښاخو د یوې عجیبه او ښکلې منظرې بڼه خپله کړې، چې څرنګه یې زړه غوښتي څانګې، ښاخونه یې سره تاو کړي، مثلث، مستطیل، بېلا بېلې زاویې او مخروطې شکلونه یې ترې جوړ کړي، ته به وایې د ونو څانګو، ښاخو پټه خوله شاعري پیل کړې...

که څه هم جګړو یې پر حسن ګردونه غورځولي، خو د وړو لاندې یې پټ ښایست لا هم څرګند دی.

د حقاني صاحب لخوا ښاغلي مسعود ته ډالۍ زغره وال لنډکروزر د ګڼو ګاډو په سر کې ولاړ دی...

د بڼ د برسر په دوه پوړیزه ماڼۍ کې احمدشاه مسعود پر سرو غالیو

ایښی یوه صوفه کې غزېدلی، مسعود په همدغه یوه بنه تر سترګو کېږي چې یوه بنه خو څېرې یې هنر ګرځېدلې.

جنګیالیو مانی پر پوسته او پوځي قرارګاه اړولې، د سلطنتي مانۍ حیثیت او ښکلا یې لوټلې ده، مسعود خو ګامه د حقاني صاحب ښه راغلاست ته راوړاندې شو، کوټه د سترګو رپ کې ډکه شوه، څوك ننوتل، ځینې د باندې پاتې شول، څوك زور وهي چې ننوځي. ما کوټې ته د تلو مخه ونه مونده، چې يو لاس مې په مخه کې خنډ شو، دره پورې شوه، دلته داسې کسانو هم پر کوټه هجوم وروړ چې زموږ ملګري نشوی پېژندل کېدای.

بې ته راوګرځېدم، که ګورم له وسله والو ډك دی، ټولو برګې کوماندوي دریشي اغوستې، ته به وایې د جګړې په میدان کې ولاړ دي...

يو ګوښه ځای مې وموند، شېبه شاوخوا ګورم، د فقیر بوټي بوی مې دماغ وتخناوه، له جېب مې قلم کاغذ راویست، څو کرښې مې نه دي لیکلې، چې دوه تنه راته ودرېدل:

کی هستی چه نوشته داری...؟

د حقاني صاحب له ملګرو یم شعر لیکم، لاس یې راتاو کړ کاغذ یې واخیست لوستی یې نشوای... کاغذ یې یووړ يو تن یې راباندې پېره کړ، بېرته چې راوګرځېدل تحقیقات پیل شول... نوم، د پلار نوم، د کوم ځای... څه کار... په دې بیا څه کوې، چاته یې ورکوې... تلاشي یې واخیسته قلم یې واړاوه، راواړاوه... وایي دلته لیکل منع دي... پنځه کسان نور راغلل هغوی هم پوښتنې وکړې، زه یې کلابند کړم، تر مازیګر د دوی ولکه کې یم، قلم او کاغذ ضبط شول، لکه د ژوبې څناور ننداری

ته ډلې ډلې وسله وال راځي، گوري، پوښتنې کوي، خپلو کې يې شاربې او بېرته ځي.

چا به د بندي کېدو حکم ورکاوه، چا به نور تورنه ټاپې لگولې، چې دښمن، د نفوذ مخه مومي، معلومات ټولوي کروکې اخلي، نخچې وړي او بلا نورې خبرې... ښه و قاضي بسم الله راپيدا شو، نه دا چې خبره يې سره کړه، بلکې پر يوه پياله ساړه چای يې هم ونازولم... له قاضي بسم الله سره مې د مدرسې له وختونو پېژندگلوي ده... د ښاغلي مسعود باوري باډيگارډ، د زړو سترگو يارۍ ته ژمن... ورته وايم که کلاشنکوف، تومانچه، راکټ، چرس هر څه راسره ليدل شوي وای، چا به سترگې نه وای را پورته کړې، خو قلم او ليک نژدې په ستر شر اړولی وم...

وايي: هر نکته جايی داره و هر سخن مقامی...

د فاضل صاحب خبره را ياده شوه: څرنگه چې جهاد کې د قوماندانانو ځنگ کې د لغړ زنيو شتون موډ گرځېدلی و له آمر صاحب سره د تخار سفر کې له رنگه سره سپين بسم الله ملتيا له ځينو سره دغسې شک پيدا کړی و، ځکه خو يو چا د خپل ځنگ ملگری ته ويلي وو: از... کده آمر صاحب مقبول است.


تلاش شدید برای صلح در افغانستان
کابل
اسلام آباد
تهران
ZAHOOR.

# د یوې اوونۍ یرغمل

د مني د پیل چیچلې ورځ ده، د لمر وړانګې تتې لګي، د ونو پاڼې مخ په زیږېدو دي، ته به وایې خزان وار له مخه لګېدلی، سپېره بادونه سرې ته پر مخ کلکې څپېړې ورکوي، دوړې سترګې له خاورو ډکې کړي، د وسله والو جیپان، د قوماندانانو لنډکروزر او پك اپ لکه وږې لیوان خالي او نړېدلیو، واټونو کې یوه بله خوا انګولي، د عامه کتابتون لوحې ته تم شوم، څومره کتابونه به سوځېدلي وي...؟ ګورم قانع لکه باز راباندې غوټه کړه، نه سات نه مسلات، نېغ یې آریانا هوټل ته ورسولم، پر لاره یې له کنځلو بله خبره نه ده کړې، جهاد، مجاهد ټول یې ډانډس کړل، هوټل ته په رسېدو څرګنده شوه، قانع د وچې خاني چلوي...

د جمعیت او نظار شورا ډېرى لويان او مقربين دغه هوټل کې ډېره دي، زموږ يوه همصنفى نورخان عرف شمس الرحمن د بغلان قوماندان هم دلته اړولې، ده هم د مقربينو لست کې ځاى موندلى، ځکه خو يې له ماسره توده ونشواى پاللى... البته قانع مغضوبينو ته رالوېدلې، دا وخت يې د تورې يارې ته لاس غزولى پر بدماشي يې خورې...

ده دوه نفرې کوټه غصب کړې، يو کټ خالي دى، زه يې پر خالي کټ وروغورځولم، راته وايې دا ستا شو...

ورته وايم زه په دې خلکو ښه نه لګېږم... وايې د دوى هغسې دغسې...

قانع داسې چلند راسره اخيستى، لکه دده يرغمل يم، ډوډى د هوټل رستورانټ کې په يوه وخت وېشل کيږي، له ما چا پوښتنه نه ده کړې، قانع صاحب مې لاس نيولى بيايي، لاس نيولى مې راولي.

سيد حبيب شاه هم دلې دى، پر لومړني ماښام درنو ډزو د ويرې وارخطايي لړى خپرې کړې، دا داسې وخت دى چې موږ ډوډۍ ته ناست يو، په دريم ډز مندې شوې قانع د کنځلو باړ چلوي، رستوران کې موږ دوه پاتې يوو، دى لګيا دى هماغسې ګولې غورځوي، زه له ده ببلېداى نشم که نه له زړه مې خداى خبر دى، مړى مې مرى کې نښلي، د قانع هېڅ خيال نه دى.

لږ وروسته لاندې کوز شوو، سيدحبيب شاه، په پروتې ډوډۍ نغاړې، قانع پر پښه پورې واهه، خو د هغه غوړونه ډزو کانه کړي، خوله يې له ډوډۍ ډکه ده.

سبا قانع لاس نيولى ورسره رهي کړم، يو کريټ انګور يې رانيول، ما وې د کريټ په راوړو کې د جوالي کار رانه اخلې، خو کور يې ودان په

دوو گوتو یې هوټل ته راورساوه.

غوري کې یې کیلو نیم پرمینځل پر مېز یې کېښول، امر یې وکړ خوره!...

نور یې یخچال کې ځای پر ځای کړل، وایي د پوهنتون استادان راځي په ګډه یې خورو...

قانع چې له کوټې وځي د یخچال دروازه پرانیزي یو وړی ماته ونیسي، یو پخپله خوله ننباسي چې راوګرځي بیا دغه عملیه تکرار کړي.

مازیګر ته لا وخت دی چې پاتې انګور یې له یخچال راوایستل، پر مېز یې له ایښودو سره خپل حکم ابلاغ کړ: خوره! د پوهنتون د استادانو هغسې دغسې...

زه د قانع برمته یم، پر دویمه ورځ یې پر دغه وعده په قسم او قرآن د تلو اجازه راکړه چې غرمې ته به هرو مرو ورګرځم، تر هوټل راسره ووت، پر هغه لنډه لار چې ارګ ته وروتلې او څوك یې نه پرېښودل ور برابر کړم، پر بدخشاني وسله وال یې غږ کړ، هغه نه نوکره خودی پرې وغوړمېږد، وسله وال غلی شو...

قانع وایي بنګلدیش کې یې سفیر ټاکلی، خو دده خوښه نه ده، دا د قانع د ګېډې خبرې دي، د زړه هغه یې پر څلورمه ورځ په سند او لاسوند راسره شریکه کړه، د استاد رباني یو امر یې راوښود چې بهرنیو چارو وزارت ته یې د کوټې کونسلګرۍ کې د ټاکنې په اړه کښلي، امر قاطع دی، خو وزیر لفرایي، چې پاکستاني مطبوعاتو نصراني لیکه نه نو پکې را ایسته، قانع یې مقرر نکړ...

کابل کې عصمت قانع پښتو لیکوالو ته غنیمت دی، چې دا وخت هغوی نه پر څمکه سیوری لري نه پر آسمان ستوری پرده یو څه ډاډه

دي...

محمد اسمعيل يون او خالق رشيد راغلل، خو انگور پاتې نه وو، دوی سره مې دا لومړني ليده کاته دي، په زړه خواږه لگېدل... خدای دې وساتي... څه به کېږي څه وشول...؟ له خولې زيات سترگو کې ښې خبرې کېدی شوای.

ماته په سترگو کې حال وايه
لارې کوڅې د غمازانو ډکې دينه

له عصمت قانع سره په غضب اوښتی يم، کله وايي بمونه ترم، ارگ کې ځان الوزوم، چې پر يوه ځای يې خمېره کړم... دغسې خبرې ان له پېښوره دده عادت دی...

پر کټ اوږد غزېدلی وي، راپاڅي وايي زموږ مبارزه ددې لپاره وه، دا لوړې محروميتونه مو د دغه ورځې لپاره گالل، اسلام او جهاد داسې وي؟ پاچا خان ريښتيا ويل: جگړه د روس او امريکا وه، دل پکې پښتانه شول...

لگيا دی ته به وايې داتول زما له لاسه، همدا خبره چې ما درته ويل داسې کوو هغسې کوو... تانه پرېښودم... اوس ما څنگه دا ورسره منلی شوای چې وتړه ځان پورې بمونه والوزوه دا مشران...

پر مصلحت گرايي او محافظه کارۍ پړ يم، چې دده د انقلابي هڅو او گامو مخه مې نيولې وه...

داسې گڼم لکه عصمت قانع ټوله پړه پر ما غورځوي...

قرلق د انيس ورځپاڼې رئيس هم دغه هوټل کې دېره دی، يو ماښام د ډوډۍ پر مېز قرلق له ما هيله وکړه که د مرستيال په توگه ورسره

همکاري وکړم.

دا خبره نه وه لکه پر قانع يې د توپك گوزار وکړ، غرب شو مېز يې پر سوك وواهه، قرلق ته وايي: ننگيال دومره خوار شو چې ستا معاون شي...

اوس دې قانع كرار شي، د قرلق خوارکي خوله وچه شوه، هيڅ يې نشواى ويلى، قانع مو په زاريو، عذرونو غلى کړ.

د قانع زړه ډك دى، دده ارادې خطرناكې ښكاري، وايي پر خداى كه يې په داسې اسانى راڅخه وخوري...



توريالى ځاځى، عصمت قانع او شهرت ننگيال- پېښور

# له مزاري سره؛
# کابل ناپوځي نشو

سهار د یو بل خولې په بویولو ځان اړ گني، چې د پروگرام پته ولگوي، د ځینو له سترگو دغه پته لگولی شي، د چا له شف، شف او حرکاتو درک در معلومېدای شي، بیا هماغه د اودسونو لړی پیل شي، دلته خبره یو څه څرگنده شوې وي...

زه د شپېړم حس په کارولو اړ اوسم، چې له مودو یې په مټ د درک لگولو پر تمرین بوخت یم، ددې یوه گټه دا چې ځینو پرمختیاوو ته له وخت وړاندې د لاسرسي لوري موندلی شم.

وایې عبدالعلي مزاري ته ورځو، چېرته، کوم ځای...؟ پته نشته...؟

گاډي، موټران چالان او کاروان چمتو شو، زه هم خپل گاډی ته وختم ډگروال صاحب راسره پر نوبت سلا شوی، یوه ورځ دده پک اپ بله زما جیپ...

د ساتونکو دوه گاډي ترمخ شول... نور په یوه لیکه پسې وخوځېدل...

د ښار خبره هماغسې ترینگلې او د ژوند سا ډوبه ده، ښار په دوو ښو کې رالنډ دی، چې جنگ وي... مرگ کوملې شلولې وي، چې سا کاږي ژوندي بنیادمان نغاړي، پر ژوند او هستی پسې یې را اخیستې وي، په هر گام مرگ په هر پل ژوبله... د ژوند په تغر ټولولو پسې د توپونو،

توغنديو غوړمبی خیژي، د ژوند لو گډ دی.

که کله د توپو، توغنديو خولې پټې وې، ته به وايې پر هديره تېرېږې، نن بيا له دغسې هديرې تيرېږو، دغه هديره کې هر يو خپله جنازه په خپلو اوږو گرځوي، چا د خپل ژوند، چا د عزت جنازه را اخيستې وي... پر نامعلوم لوري ځغلي...

د واک لوږه له هَلْ مِنْ مَزِيْد نه راگرځي... په مرگو نه مړېږي، په وينو توئېدو يې تنده د ماتېدو نه ده...

نو آباد ته په رسېدو يو ځل بيا د ويجاړيو په لړۍ ور برابر شوو... دغه وراني د جنگ په پرتله د لوټمار ښکاري... د غره لمن کې د خالي کورو له ايستل شويو کړکيو وسله والو ببر سرونه را ايستلې د خپل وحشت ننداره ته ولاړ دي، د خپلې قهرمانی مزې اخلي...

دهمزنگ کې جگړې اور لگولی، څلور لارې کې توپکيانو له شگو، خاورو ډکې بوجۍ کتار کړې، ټانکونه يې درولي، مورچې يې نيولې... چاته د چا پر وړاندې...؟

څلورلاري کې د ترافيکو پر مديريت دومره گولی موښتې لکه چيچک ځپلې څېره...

پر کينې لاس وگرځېدو، د خوشالخان خټک لېسې پخوانی ودانۍ چې د پوهنتون د لومړيو ټولگيو ليليه وه، له ښخه نړېدلې، پر شوروي سفارت حبيبي لېسه د گوليو چيچک خوله لگولې...

نن يو بل سلطنت او قلمرو ته ننوځو... کابل د واک پر متعددو مرکزو وېشل شوی، جلا سلطنتونه، د هر سلطنت خپل قلمرو، پولې او سرحدونه، که پښبه دې ورواړوله د ژوند ډېوه گل ده، لکه ډېورنډ د کابل پر ټټر يې چاړې ښخې دي.

د درېيمې کارتې «پوش سيمې» يوې مانۍ ته تم شوو، ښکلا يې لوټ ده...

راياد شول... د ماضي د ښايستونو دړه مې پرمخ ېېرته شوه، د کابل د ښکلا او امن پرون ته ننوتم... د ژمي رخصتي مې د درېيمې کارتې يوې مانۍ د ساتونکي په توګه اړوله... زه د خپلو يادونو پر قبر ولاړيم... په نږېدلي بې شناختې بې دبرليک قبر...

د غټانو له دغو مانيو ښايي ځينې کوم شرکت د بهرنيو اتباعو (کورنيو) د مشتېدو لپاره پر کرايه نيولې، مياشت دوې، زيات و کم به دلته ميشت وو، نور به يوه پيره دار پکې اړولي و.

مانۍ زموږ د يوه عزيز وه، "واحدي" چې د خپل وخت لويه علمي تکنوکرات کورنۍ ده...

د ژمي تر پای مې د هغه مانۍ د ساتونکي په توګه (۲۴۰۰) افغانۍ ګټلې وې، ځکه خو مې هغه کال مدرسه کې ښه غوړ تېر کړ، خو اوس د هغه مانۍ درک نشوای رالګېدلی، نه مې شوی پېژندای...

عبدالعلي مزاري د قاري محمد امان نوايي مانۍ کې دېره لګولې، عسکري قشله ګرځېدلې...

سالون لکه تالار دومره لوی دی، يوه بل سرکې لويې ديوالي بخارۍ د ماضي يادونو ته وازې خولې نيولې، چې دا وخت د دوو نورو بخاريو... تورو نلو ته مرمرين دېوال دوه ځايه بې دوله سورۍ شوې دي...

داسې ښکاري لکه دوو نومرو کې د قاري صاحب مانۍ رغېدلې... شا ته يې يو بل لوی پخلنځی دی، چې افغان لوی پلورنځی رستورانت ته له دې پخلنځي پاخه خواړه په ځانګړو مناسبتو کې وړل کېدل...

قاري امان نوايي، د وخت لوی سوداګر و، دربار ته نژدې ګڼل کېده،

نادرپښتون واټ کې يې د بهرنيو لوکسو توکيو لويه مغازه وه، افغان لوی پلورنځی يې هم ملکيت گڼل کېده، چې له لومړي پوړ ته له دروښي پرته د ختو اجازه نه وه...

(شوخک) پسې کښلی و... قاري صاحب دې مهرباني وکړي د افغان پلورنځي نوم دې واړوي، افغانان چې خپلو ملي جامو کې دغه پلورنځي ته د ننوتو مخه نلري څرنگه کېدای شي، افغان لوی پلورنځی ونومول شي...؟

په سالون کې ښاغلي مزاري په شاهانه انداز پر صوفه ناست دی، بله هغه لومړني مېلمه لپاره ده، ترمنځ يو وړوکی مېز... څو صوفې د مشرانو مېلمنو لپاره دي، نور چوکۍ لکه د ټولگي پرتې دي...

دهليز کې د خميني تصويرونه ځړېدلي، سالون کې د پخوانيو لگېدليو تصويرونو ځای خالي او د يوې تابلو هېنداره ماته ده...

حقاني صاحب د لومړني مېلمه پر صوفه کېناست، د مزاري بل اړخ ته ډاکتر فاروق اعظم، مزاري صاحب بلا خوله ور وياند دی، په ډېر بلکې غرور شمېرلې خبرې کوي، د مذهب پر ځای د قوم له دريځه لگيا دی، مانا د شعيه پر ځای يې پر هزاره منگول گلولې...

لکه د مذهب هغه يې محسني ته پرېښی، چې دی نه اخوند دی، نه آيت الله.

ډېری بلکې ټولو ټوپکيانو، جگړه مارو د خلکو په دغسې ملکيتونو کې اړولي، له همدغه غصب شويو ملکيتونو درته له شريعت، انصاف او عدالت بر بړ لگيا وي.

پر احاديثو او قرآني آيتونو حواله ورکوي... له خولو يې څگونه باديږي.

د بېگناه ولسي وګړو کورونه، جونګړې یې د توغندیو تر اور لاندې نیولې وې، خو په غونډو ناستو کې له ملت مظلوم ومردم بې دفاع درته لګیا وي... له عمري خلافت درته ګډ وي... مانا حضرت ابوبکر یې پر زړه برابر نه دی...

۱۳مه روژه ده، د چای ډوډۍ تکلیف نشته، د جوړ پخیر له لنډې پوښتنې وروسته ډاکتر فاروق اعظم وینا پیل کړه، پر سالون د مزاري رعب غوړېدلی...

**ډاکتر فاروق اعظم:**... ما میخواهم جناب شما لشکر صلح را تائید و رهنمایی دارید، با لشکر صلح یکجا جهت تامین صلح این جریان راتقویت بخشید... خلاصه اینکه از چند نفر اهل نظر، علما، مو سفیدان و قوماندانان یک شورای موقت بیطرف ساخته شود که یک اداره بیطرف مؤقت بمیان اورده، که در گیر جنگ نباشد، مصالح مملکت را علیا از منافع تنظیم پندارد.

شورای ممثل تحت یک اداره بیطرف نمایندگان واقعی ملت را جمع نماید ، ازین جهت دوره موقت بیطرف را برای تدویر یک شورای واقعی حکومت منتخب ضروری میدانیم.

وقت تمدید شده استاد ربانی به پایان رسیده، جانب مقابل اصرار به استعفای استاد ربانی دارد، ما باید با همکاری هم استاد ربانی را قانع سازیم که دوام این اداره به نفع مملکت و خود ایشان نیست...

**حقاني صاحب له حمد او ثنا وروسته درې خبرې پیل کړې...**

...ظلم او وحشت به اندازه رسیده، غارت اموال و ناموس مسلمانان به پیمانه یی شده که اگر ما ازین بیشتر غفلت کنیم، جلو انرا نگریم،

معنا این است که خود درین گناه شامل هستم، منع جنگ بطریقه حکمت بر ما واجب است...

ما گردن خود را به این خلاص کرده نمیتوانم که در جنگ شرکت نکردیم چوکی نمی خواهم، مال مردم راغصب نکردیم... لاکن نهی از منکر هم نکردیم، اگر ما از جنگ و کشتار منع نکنیم، سکوت اختیار کنیم، گوشه بگیریم، این خود گناه کبیره است.

روز ده بیست نفر بیگناه کشته می شود، راهها بند است اطفال معصوم، بکدام گناه به این ظلم و وحشت مبتلا است...؟

ماز شما تقدیر و دعا میکنم که درجنگ های اخیر شرکت نکرده، میخواهم دیگران نیز به شما اقتداء کند...

مسایل و مشکلات باید از طریق سیاست و مفاهمت حل نمایم، از طریق جنگ مشکلات حل شده نمیتواند، جنگ موجب غضب خداوند[ج] و ملت است.

ما که می امدیم دیدیم در این مناطق جنگ جهنم دنیا بوجود آورده... ما برای شما سعادت دارین میخواهم، امید است درچند چیز با ما همکاری لطف فرماید...

قطع جنگ، خلاص شدن راهها و اینکه کابل غیر نظامی شود، سلاح ثقیل بجا های مناسب دور از شهر منتقل و دیپو شود...

امنیت کابل به شورای قوماندانان کابل سپرده شود... یک حکومت بیطرف موقت برای همین وقت حاضر جور شود، شورای ممثل موقت زمینه سازی بکند، که شورای منتخب جور شود و در وقت مساعد حکومت انتخابی بمیان آید...

شما با ما موقف عدم جنگ بگیرید، با ما مثل برادر کلان کارکنید که

قناعت ربانی وحکمتیار حاصل شود، به ما مشوره بدهید، از اعلان فیصله ما تائید نمایید و در تطبیق آن همکاری و مساعدت نمایید، ما نیاز به مشوره و حضور نماینده شمار داریم که در تصویب طرح و تطبیق فیصله کار شود...

**مزاری صاحب! له بسم الله وروسته...**

ار برادران تشکر که در ماه رمضان علماء و قوماندانان قدمی خیر در رابطه صلح و اتش بس حل مساله برداشته، لطف کرده، اینجا تشریف آورده و بما افتخار بخشیده، مخصوصاً مولوی صاحب حقانی که ایشانرا احترام خاص قایل هستم که جهاد کرد و در وضع اسفبار کابل شرکت نکرد، در کابینه مقامی بوی قایل شده و نپذیرفت که مطلوب نبود که برای شخص خودش جهاد نکرد، ورنه چوکی وزارت کافی است... ولی ایشان نپذیرفت، کوشش های صلح جویانه خود را مقدم دانست...

ما هم جنگ را راه حل نمیدانیم، تفاهم و پذیرش را راه حل میپنداریم.

ما باید مشکلات خودرا خود حل نمایم...

جنگ سر ما تحمیل شده... دوازده جنگ... در جنگ اخیر که موقع خوبی بود که انتقام بگیریم، شرکت نکردیم...

ربانی همه تعهدات را نقض نمود،پشاور... اسلام اباد و... ما گفتیم که جنبش نیست، مساله حل نمیشود، باز هم امضا نمودیم، کمیسیون های اداره پنج وزارت را ربانی پذیرفت ولی عملی نکرد، دو صد هزار نفر مسلح از وزارت دفاع اعاشه می شود، معاش میگرد، همه از یک

منطقه و تنظیم...

این که ملیشه است و آن ملیشه است بهانه است، بابه جان کیست، دلاور کیست...؟ ما مانع ایجاد نمیکنیم، از راولپندی ما را حذف نمود، میتوانیستم در بامیان دولت اعلان کنیم، کارمل و نجیب مسلسل پشنهاد میکرد که هزاره جات را خود مختاری میدهیم ولی ما نکردیم، میتوانیستم جلو حضرت صاحب رابگیریم ولی نکردیم.

خدمت حقانی صاحب احترامی که داریم ملاحظات خود را تقدیم میداریم.

طرح قوماندانان کابل عملی نیست... مساله کابل، مساله یک ولایت نیست، سرنوشت در خوست و جلال آباد تعیین نمیشود در کابل تعین می شود...

باید حکومت قابل قبول و قانع کننده ائتلافی بمیان آید، اردوی ملی اسلامی تشکیل شود، دولت موقت بیطرف توطئه است... ما در موضوع سیاسی رعایت نداریم، سیاسی باید ریشه یی حل شود... باید دولت ائتلافی تشکیل شود، انحصار طلبی نباشد، حکومت بیطرف بمعنای حکومت غربیها است، اگر حکومت غربیها راقبول کنیم ابروی جهاد میرود...

ربانی (۱۲۰۰) ملیارد افغانی بدون پشتوانه در روسیه چاپ کرده،... حکمتیار و ربانی که طرح قوماندانان کابل رامیپذیرد، اهداف سیاسی خود دارد ولی عملی نیست، شعار سیاسی از شعار اعتقادی فرق میکند.

**داکتر اعظم:** معنای حکومت بیطرف این که درجنگ درگیر نباشد، نه اینکه از غربیها... شورای غیر تنظیمی ممثل ملت.

د ماسپښین لمانځه وخت شو، د ځینو سترګو کې پوښتنې ګرځېدې، چې بې ځوابه پاتې شوې، خادر وغوړېدل، صفونه ودرېدل، ښاغلي مزاري حقاني صاحب ته د امامت وويل، شاعر ملايي وړاندې کړ، څوک لاس په نامه، د چا څړېدلي، ټول يوه صف يوه ليکه کې.

له لمانځه وروسته له سره خبرې پيل شوې چې د مخکنيو هغو په تفصيل او تشريح ګرځېدې... د حقاني صاحب له اړخه د بيطرفه موقت حکومت ممثلې شورا، د کابل د ناپوځي کېدو، امنيت د کابل قوماندانانو ته د سپارل کېدو، دايمي اوربند دلارو خلاصېدو او مناسب او مساعد وخت کې د منتخبې شورا او حکومت پر جوړېدو او د مزاري صاحب لخوا د قابل قبول، ائتلافي حکومت او ملي اسلامي اردو رامنځ ته کېدو...

د ژمي مازيګر خورا لنډ را رسيږي... يو ځل بيا د لمانځه تابيا ونيول شوه، خادر وغوړېدل، صفونه ودرېدل، حقاني صاحب څنګ ته ولاړ يو شعيه ملا وړاندې کړ...

له وروستي او غوځې پايلې پرته د تلو پرېکړه وشوه.

مزاري صاحب روژه ماتي ته ټينګ شو، د مخه ښې لاسونه وغزېدل... ما در خدمت هستيم... مسأله حل نظامی ندارد... ټکو رخصت شوو.

ملي اردو به څوک جوړوي، ائتلافي حکومت کې واک په کوم معيار ويشل کېدای شي چې قابل قبول بڼه رامنځ ته کړای شي؟

حقيقت کې د جګړو شر ائتلافونو رامنځ ته کړی، ډلبنديو عذاب غوړولی.

چې ائتلافونه په سياسي کچه نه د ژبې، مذهب، سيمې په بنياد

غزېدلی، خورا خطرناک...

سوله او جوړه څرنگه رامنځ ته کېدای شي...؟

په زور سوله نه کيږي، لکه په زور چې کلي نه کيږي، دلته د زور هوس سرته ختلی، د سولې مخه يې ډب ده.

څکه خو حقاني صاحب د جرگې کچکول تش گرځوي، چې دا خلک په نرخ او کاني نه شي پوهېدای، پر جرگو معتقد نه دي، پر وطن او ملي گټو يې ايمان وار له مخه زيانېدلی.

سوله په زور نه کيږي، خو په زاريو هم نشي ترلاسه کېدای، جرگه له ښکيلو غاړو يو اهليت غواړي، چې ما دلته ونشوی ليدای، کوم چې زموږ د کليو ولسونو عام او نالوستي يې ښوولی شي، او هغه پر بديو د پوهېدو هغه دی، چې لکه آرټ دولسي ډپلوماسي منطق گرځېدلی، څوک چې له دغه هنر بې برخې شي، پر سترگو يې د جاهليت پردې وغوړيږي، د لوستو جاهلانو د لښکر جنگيالي ترې جوړ کړي.

رښتيا دا چې ماته ددغه وړيو د شړی کولو خوب بې تعبيره ښکاري...

لکه ډېر تنگ شوی يم...



# د خبرو ترجمه

له حکمتیار صاحب سره چهار اسیا کې په یوه اوږده کوټه کې په کوچونو ناست یوو، مولوي عبدالرحیم اخوندزاده، مولوی نظام الدین حقاني او حاجي مالي خان گربز هم له حقاني صاحب سره ملگري دي...

حکمتیار صاحب د کابل راډیو، ټلویزیون تبلیغاتو او پروپاگند ته گوته ونیوه، چې د حزب مجاهدین د گلبدین او دوستم د ملېشو په نامه یادوي، په ده او حزب پسې ناروا تبلیغات کوي، سپورې ستوغې وايي: دده په وینا له دغسې تبلیغاتو سره ځرنگه کېدی شي سوله ټینگه کړی شي...

په خبرو خبرو کې حکمتیار د صلاح الدین نوم واخیست، عبدالرحیم اخوندزاده د صلاح الدین پوښتنه وکړه، حکمتیار صاحب ویل زما زوی چې سعودي کې لوست وايي...

عبدالرحیم اخوندزاده ورته کړه: شه ستا هم صلاح الدین دی-(د استاد رباني مشر زوی هم صلاح الدین نومېږي)

حاجي مالي خان گربز حکمتیار صاحب ته پخپله لهجه لگیا دی: میژ وې ته دولته ته نوست یې، هلته اشځه نوسته ده، (مطلب یې دا و چې دلته ته صدر اعظم وې، پاکستان کې بینظیر بوټو..) وشه خبره دو ده چې میژ غوشتل هغې شځې ته کم رو نشو، میژ خو په پوله ایسو- پوکستون ته کیز نشو کتی...

حاجي مالي خان پر حکمتیار صاحب پرله پسې نیوکې وکړې، په هغو تکو چې نه رباني مسعود او نه دی د افغانستان د واکمنۍ او مجاهدینو د قیادت ظرفیت لرلی شي... د مالي خان خبرو کې ولسي منطق د خپلې برلاسی جنده رپوله، حکمتیار صاحب پټه خوله وه، د مالي خان د خبر په ځواب کې یې وویل: د حاجي صاحب خبرې به ماته څوك ترجمه کړي؟- زه خو د ده په خبرو پوه نه شوم، چې ده څه وویل؟ زما په زړه کې وګرځېده، د خپل ولس په ژبه نه پوهېدل عیب دی، که جرم او کمزوري....؟ خو ما کې دومره جرآت له کومه شو....؟

الساکت عن الحق شیطان اخرس...

## جنرال دوستم ته نوی وړاندیز:

حل او عقد چا نشوای منلی، تر دې چې دوستم او مزاري هم ورسره غاړه نه شوی وړی.

رباني په دوستم پسې موسی توانا (دی وروسته دوستم سره یوځای شو) ورولېږه، د ده په خوله یې دوستم ته پیغام ورکړ، چې صلاح الدین ورته ښکاري، د افغانستان تاریخ کې د لومړي ځل لپاره موقع لاس ته راغلې، چې د شمال لږکیو ته زرین چانس ګرځېدی شي، باید دا موقع ضایع نه کړو، اوس چې د شمال تاجکو، ازبکو د نجیب رژیم نسکور کړ، یو ویاړ یې په برخه شو، ځینې غواړي د جنوب پښتانه بیا واکمن شي، چې دا ویاړ برباد کړي، دا ذهنیت رامینځته کړي، چې ګنې موږ د قیادت او واکمنۍ وړتیا نه لرو، بېرته مو پخواني محکومیت ته ورټېل وهي، له ما چې کوم امتیاز غواړئ، زه چمتو یم، دغسې یوه خبره استاد رباني صدر اعظم فرید ته هم کړې وه:

((...گوره الله تعالی یو چانس موږ ته برابر کړی، ته صدر اعظم یې، زه جمهور رییس او مسعود دفاع وزیر، ټول واک له تاجکو سره دی، د حکمتیار لار د جګړو او ماجراوو لار ده، ته د یوه مستقل شخصیت په توګه عمل وکړه، تر هغې چې موږ یو، ته به صدر اعظم وې...))

بسم الله الرحمن الرحیم

محترم ستر جنرال عبدالرشید دوستم

السلام علیکم و رحمة الله و برکاته و بعد!

دعا میکنم با عموم برادران صحت داشته باشید
شاید حرفهای زیادی را به شما رسانیده باشند اما
یقین دارم فریب دشمنانت را نخورده اید چون
هرگز شما را از پهلوی خود نمی خواهم برای یک لحظه
دور ببینم، حرفهایی را که جنرال مؤمن و مصلح الدین
گفته اند کاملاً تائید میکنم، در جلسه که شما با برادر
مسعود به حضور هم می نشینید همه مسائل را فیصله میکنیم

مطمئن باشید

[signature]

٧٢/١٢/٢٦

دوستم او کیان حل او عقد ته خپل استازي ولېږل، خو حزب وحدت له نظار شورا سره د افشار، چنداول، او جمال مېنې جګړو له حل او عقد لیرې وساته.

مزاري دوستم ته مخابره کې له علیک سلیک وروسته وویل:

**مزاري:** خبر شوم حل او عقد شورا کې برخه اخلئ، موږ خو د یو بل متحدین وو، نظار شورا زموږ پر ضد په هېڅ وحشت درېغه ونه کړه...

**دوستم:** سپین ږیري «استاد رباني» یو پلاوی رالېږلی، زموږ ټولې غوښتنې یې منلې، بیا مو نسیم مهدي کابل ته ولېږه، دی به تاسې سره هم وګوري.

**مزاري:** له مهدي سره به خبرې وکړو، خو تاسې حل او عقد ته د خپل استازي لېږل وځنډوئ، د دې پر ځای دې له حکمتیار سره د خبرو مخه پرانیستل شي.

**دوستم:** سمه ده مهدي سره به خبرې وکړئ، خو چې داسې ونه شي، چې نجیب زموږ تاسې محرومو ملیتونو رانسکور کړ، دا ویاړ مو له لاسه ووځي، بیا دا خبره را پورته شي، چې یوازې یو مخصوص قام حکومت کولای شي او موږ د حکومت کفایت نه لرو.

**مزاري:** ستاسې نظر سم دی، خو د شمال او جنوب په وېش خبره نه اوارېږي، باید یوه معقوله تجربه رامینځته کړو.

## د تخریبي هڅو مرګوني بېلګه:

لکه وړاندې یاده شوه دواړه غاړې د یو بل مشرانو له منځه وړو لپاره پیسې بندي، د جنګي کرښو د اکمال لپاره لکونه ډالر بادوي د یوې بلې

غاړې قوماندانانو ته یې د پیسو ورخونه ورمات کړي.

د جګړې کربښې ډېری قوماندانان له بلې غاړې پیسې اخلي، حکمتیار، د مسعود او مسعود د حکمتیار د مینځه وړلو لپاره د پټو عملیاتو او جاسوسی لپاره پیسې لګوي.

محمد یونس قانوني دغسې فعالیتونو له امله یوه چاودنه کې ټپي شو.

د دغو پیسو ډېری برخه په چل او دوکه وهل کیږي، د ښکېلو غاړو د مشرانو له منځه وړو ته خیالي پلانونه او نقشې وړاندې کوي، په دې توګه له حکمتیار او مسعود بې دریغه پیسې ځي.

څرخي پله کې مې ډګروال سید نعیم په نوي څېره کې موند، حالات بدل ښکارېدل، له پاچا صاحب سره ستړې مشې کې مې پر زړه وخوړه چې کومې لړزوونکې پرمختیا خپل سیوری رارسولی.

پاچا صاحب کیسه د ټوکو په بڼه پیل کړه: د ده په وینا پر دې خواشینی نه دی چې چاودنې به وژلي وو، بلکې پر دې خپه دی چې ستا پښه به ننګرهار او زما لاس وردګو ته وړل شوی و...

د جنرال (.......) دوه یاوران (.......) او (..........) له ښاغلي مسعود سره نژدې اړیکې لرلې له دوی یې یو (.......) د سیمه ییز تړاو له امله له حقاني صاحب سره هم راشه درشه لرله، په را وروسته کې د مسعود او حقاني ترمنځ اړیکې د دوی په مټ ټینګېدې....

څرنګه چې حقاني صاحب د سولې په هڅو کې د موټرو له کتار سره چهار اسیاب ته ځي راځي، که د دغه کاروان کوم موټر کې چاودونکې توکي او بمونه ځای پر ځای او چهار اسیاب کې له حکمتیار سره د ملاقات پر وخت وچول شي... په یوه غشي دوه ښکاره ویشتلی او دواړو له شره خلاصېدای شي.

دوی یو ځل له ما د کوم ناروغ په پلمه موټر وغوښت، بیا یې له ضابط عمرخان د هغه موټر غوښتی و، تر هغې چې د یوه موټر په ترلاسه کولو توانېدلي وو، موټر کې یې پنځه ویشت کیلو گرامه چاودونکي توکي او بارود په خورا مهارت ځای پر ځای کړي وو، تصادف ته گوره چې موټر حقاني صاحب تر جلال اباد له ملایانو سره ولېږه، په سروبي کې د قوماندان زرداد زړه په موټر ورغی، خو چې کتل یې موټر له بارودو او چاودونکو توکیو ډك دی، په دې توگه دغه توطئه شنډه کړی شوه، که نه شونې وه حکمتیار، حقاني له گڼو کسانو سره له منځه تللی وی...

ښکېلو غاړو د یو بل پرضد دغسې پټو ښکاره هڅو کې نه د بېگنا کسانو مرگ ژوبلې ته کتل نه انساني ضایعاتو او عواطفو ته، دا چونگ له خرواره د یوې پېښې یادونه وه، دغسې لسگونه هڅې د جگړې ارخونو د یو بل پرضد ترسره کړې، په ملیونونو ډالر یې لگولي او ځینو مکارو دېره مارو ترې په بډه وهلي دي...

له سختو جگړو وروسته دواړو غاړو د دریو ورځو لپاره اوربند اعلان کړ، چې بهرني اتباع له کابل ووتلی شي، خو د کابل بې دفاع اوسېدونکی په ډېره بې دردی د دغې جگړې قربانیان گرځېدل، د دوی لپاره چا د اوربند اړتیا نه شوی لیدی.



# فطرت

په حدیث شریف کې راغلي: ماشوم د اسلام له فطرت سره نړۍ ته راځي، دا مور او پلار دی چې له هغه یهودي، نصراني، مجوسي... جوړوي. هېڅوک له موره مجرم نه دی زېږېدلی، دا حالات، چاپېریال او نظامونه دي چې د غل، ډاکو، قاتل او بدماش نوم ورپورې کړي، مجرم یې ورگرځوي، گلم جم، ټوپکي یې کړي، د خلکو په سرو کې میخونه ټک وهي، په ژوندوني یې سترگې باسي، پوزه غوږونه یې پرې کوي، کورونه یې لوټي، پر عزت، مال او ناموس یې بلوسي...

هو! هر زوکړی د ربښتیا له فطرت سره نړۍ ته راځي، داسې چې نه غل وي، نه ډاکو، نه قاتل او بدماش... خو وخت او حالات ترې قاتل، ډاکو او بدماش جوړ کړي، بیا خپل ورور وژني، د خپل کلیوال پر سینه د کلاشینکوف ججوره تشوي، خپل خلک او هېواد فتحه کوي...

د روسانو له تېري وړاندې دوستم د تفحصاتو یو خاموش کارگر و، اسدالله سروري او... ښایي په چا کله لاس هم نه وي، پورته کړی، خو اوس نه په جگړو مړېږي، نه یې په وینو تویولو او لوټماریو هوسونه خړوبېدل...

هغه چې د قوماندان او ملېشه په نامه یې وېره ترهه په زړونو غوړولې، له دې وړاندې یې زموږ منځ کې د ژوند گډه منډه وهله، نه توپیر و نه برتري...

ایډیالوژۍ، د واک سیالي او سیاستونه دي چې خلک له یو بل لیرې کوي، دوستان په دښمنانو اړوي، د یو بل پر وړاندې یې وسلې پورته

کولو ته درووي، د دين، ژبې، مذهب او ... په نامه يې ديوالونه ترمنځ درووي.

د ثور له کودتا وړاندې زموږ يو کليوال علی مرجان له ټولو نيک خويه، منلي او خواخوږی ځوان ياديده، خو له کودتا د يوې اوونۍ په تېرېدو مرجان پر ځان بل پوست وغوړاوه، بيا هغه مينه ناک مرجان چا ونه ليد، مرجان د ډار او وېرې نوم وګرځېده...

مرجان اوس چېرې دی...؟ مړ به وي که ژوندی، يو وار بيا به مرجان خپلو منځو کې هماغسې خوږ او زړو ته نژدې ووينو...

چې هېڅوک له ځايه ظالم او سخت زړی نه وي، زوکړی.

## تريخ حقيقت:

ربړه د يوه بل اړخ په حذف او نفې نشي اوربدای... کمونستانو له ځان او خپلې ايډيالوژۍ پرته پر هر څه چليپا تېروله...

تنظيمو خپله منګول کې د واک انحصار غوښت، د ځان لپاره د اقتدار هرې بيې ته چمتو وو... د هر چا خپله جګړه، خپله سوله، خپل اوارې، خپله روا ناروا وه... هغه وه چې ټول پر نولسو ګونډه شول... د دښمنۍ بيه او د دوستۍ قيمت ښايي دومره لوړ نه اوسي چې سړی دېواليه او د پولۍ ټک ته کېنوي...

د رژيم له پاتې شونو او جنرال دوستم سره دومره مخالفت پلمه ده که واقعيت...؟ پلمه څکه چې هرې غاړې خپل څنګ کې د رژيم ولاړ افراد پاک او د بلې غاړې ناولي بلل...

ډاکټر حنيف ته وايم ښه نه وه دوستم يو حقيقت پېژندل شوی

وای... تریخ حقیقت...؟ چې شدید او ړوند مخالفت تپنې ته مخه پرانیزي... راته وایي، ته هر درې کاله پس یو حقیقت راباسې... افغان ملت هم ستا حقیقت و... ظاهر شاه هم ستا حقیقت و، څه شول...؟

تاته د خپلو حقیقتونو لالهاندي در پیښه ده... زه غلی یم، ځواب نه لرم که جرئت...؟



# د محمود میستري او حقاني ملاقات

د محمود میستري، لومړني لیده له حقاني صاحب سره انټرکانټیننټال هوټل کې پلان شوی دی.

له ښه بخته د میستري لیدو ته په وخت ورسېدو، دوه درې واره بیا هم حقاني صاحب او د علماوو شورا ځینو غړیو سره میستري وکتل، د میستري لیدو ته په روانېدو به ملایان اودسونو پسې ولګېدل، د ملا ایسته تېرېدل، اودس وچېدل او بیا اودسونه د اوښ غوو دي...

تر هوټل تګ اسان نه دی، که څه هم په دغو شپو ورځو کې اوربند دی، خو لاره خطرناکه او حالات ترینګلي دي.

تر هغې چې ملایانو نصوار اچول، یوه بله خوا ایسته تېرېدل، بیا یې په ولاړه او ځانګړو حرکتو اودس وچاوه او بیا له سره اودسو تازه کولو د ملاقات پر وخت ګېنته نیمه اړوله.

لار د نظار شورا وسله والو نیولې، څلور لارو او واټونو کې له نورو ورځو زیات ټانکونه او وسله وال تر سترګو کېږي، چې د سګریټیو په ډکولو او فقیر بوټي په دودولو بوخت دي، تنکي ژني چې لا یې شونډې نه دې تورې وسلې په لاس ولاړ دي، دوی لوېې عسکري دریشی اغوستې، ګنې د میستري هرکلي ته یې منظم پوځ درولی، خو په دغسې یونیفورم کې له پخوا زیات مسخره ښکارېدل، داسې معلومېده، د څو هېوادو پوځیان راغونډ دي.

مزمل صاحب ته مې کړه: د استاد ربانې پوځ ته ګوره، په څونې ټینګ

دسپلین يې د میستري هرکلي ته درولي دي...؟

مزمل راته کړه، مستریان هم خیرن خچن وي...

(انټر کانټيننټال) لکه د کابل سرايونو کرايي کوټو داسې بڼه لرله، له دويم پوړ يې د تشنابو اوبه څاڅي، د سرويس او خدمتونو درک نه شته، کوټو کې قوماندان، باډيګارډان او خپلوان ډېره دي.

نيم ساعت موږ لابي کې بې پوښتنې ناست يو، حقاني صاحب د چای وويل، د ارمونيې تورو چای جوشو کې يې چای کېښود، ګيلاسونه خيرن وو، بل يې د دوو نيمو لکو افغانيو راوړ، محمود ميستري هم راورسېد.

حقاني صاحب د سولې په اړه خپل پلان وړاندې کړ او په دې اړه يې د خپلو فعاليتونو، ستونزو او ګواښونو يادونه وکړه، حقاني صاحب لومړی په عربي د ميستري هرکلی وکړ، نوره وينا يې پښتو وکړه، چې ډاکټر فاروق اعظم پر انګرېزي ژباړله.

حقاني صاحب وويل: که څه هم دغه حکومت د ناقصې او نيمګړې طرحې له مخې جوړ شوی، خو که اوس راتلونکې شورا په ازاده او خپلواکه کچه جوړه شي، اواری رامينځته کېدای شي، څکه خو د راتلونکي حکومت د ټاکنې لپاره جوړېدونکې شورا کې بايد د زور او زرو د نفوذ مخه نيول شوې وي، خلک بايد د خپلو استازو د غوراوي پوره حق ولري.

حقاني صاحب له محمود ميستري مننه وکړه، چې د مسلمانانو ترمنځ د سولې لپاره راغلی، او د اصلاحي شورا د فعاليتونو او لاس ته راوړنو په هکله يې هم معلومات ورکړل.

ميستري د حقاني صاحب د وينا او هلو ځلو ستاينه وکړه، د ده طرحه يې تاييد او خپله وبلله، ده وويل له نورو اړخونو سره له کتلو به

په گډه د وروستي حل پر پلان کار وکړي، چې افغانستان د جګړو او ویجاړیو له خونړیو منګولو وژغورل شي.

محمود میستري له ښاغلي حقاني مننه وکړه، چې په واضحه عربي يې خبرې وکړې، ده وویل د حقاني صاحب وینا ماته خوند راکړ، تاسې ښه ملګري راټول کړي، چې ستاسې وینا يې په انګلیسي وژباړله، څرنګه چې زما ملګري په عربي نه پوهېږي، زه به په انګلیسي خبرې وکړم، تشکر کوم چې ماته د خبرو موقع راکوئ، تاسې او ستاسې ملګري چې په دغو سختو شرایطو کې غواړئ د هېواد د نجات لپاره لار پیدا کړی، د قدر وړ دي، لکه تاسې چې وویل موږ رښتیا هم د سولې لپاره راغلي یو، تاسې ډېر تلاش کړی چې سوله راشي، امنیت ټینګ شي، زه د ملګرو ملتو د امنیت شورا له خوا مؤظف شوی یم، ستاسې خبرې واورم افراد، ډلې او تنظیمونه وګورم، خوشاله شوم چې ستاسې خبرې مې واورېدې، زموږ هیله ده دا اوربند اوږد او دایمي شي. نن سهار موږ ښاغلی رباني ولید، د اوربند په اړه د هغه ځواب مثبت و.

د سولې په اړه چې تاسې خپل پلان تشریح کړ، پر هغې خوشاله شوو، چې ډېر مثبت اړخونه لري، ستاسې نظریات عملي او موږ ته نژدې ښکاري، موږ يې خپل نظر کې نیسو او پخپل رپوټ کې به ځای ورکړو.

افغانان مغرور او سرشاره قام دی، چې خپل نظریات ژر نه شي بدلولی، خو تاسې د یوه افغان په توګه په دې برخه کې اغېزمن رول لرلی شئ، باید د افغانانو په ذریعه دا کار ترسره شي، موږ بیا راځو او بیا به تاسې سره وګورو، پوښتنې به وکړو، چې له موږ سره څومره مرسته کولی شئ، زه یو ځل بیا د ملګرو ملتو او خپلې خوا ستاسې او ستاسې له ملګرو مننه کوم.

د کابل قومندانانو په استازیتوب قوماندان ارسلا وویل: غواړو د افغانستان کشاله د سولې او خبرو له لارې حل شي، افغانان له جنګ ستړي دي، د دغه جنګ قربانیان د کابل خلك دي، دوی د کابل له قوماندانانو غواړي امنیت یې وساتي، چې دوی یې ورونه زامن دي.

د کابل قومندانانو شورا کې د تنظیمو قومندانان شته خو تنظیمي ګټې یې شاته کړې، د امنیت یوازینی لاره دا ده چې کابل غیر نظامي شي، وسله وال ځواکونه له کابله ووځي.

**حقاني:** د کابل قوماندانانو جګړو کې برخه نه ده اخیستې، د سولې له پروسې سره یې همکاري کړې، دا زموږ غوښتنه ده چې جنګي ډلې له کابل ووځي، کابل غیر نظامي شي...

**میستري:** یو ځل بیا تشکر کوم، تاسې د وطن لپاره وجنګېدی، خو کورنیو جګړو کې مو برخه نه ده اخیستې، دا لار چې تاسې تعقیب کړې، غوره لاره ده، مننه، خدای په امان.

د میستري په راتلو د اوربند، له امله د هوتخیلو، قابل بای او نورو برخو لېږدېدلي خلک د خپلو مېنو، کورو لیدو ته ورغلي، خو ملېشو دغو کورو کې ماینونه ایښي، چې یو شمېر بېګناه هېوادوال په کې والوتل.

پر سبا یې قوماندان انور ډنګر شکر دره کې مېلمانه کړو، دی له خپلو جنګیالیو سره ځرخي پله ته راغلی و، له جنګیالیو سره یې چلند د ملګرتیا وو، د تلو په وخت کې یې ورته کړه: میندې مو وغیم، لږ د سړې زامن شئ، په داسې ځایو کې لږ سړیتوب کوئ، قدر مې کړی...

له انور ډنګر د ډاکټر نجیب زړه تک شین و، چې د شمالي لار به یې تړله- ډاکتر به د شمالي خلکو ته ویل چې د ډنګر له لاسه ستاسې د

انگورو حاصلات په وخت مارکیټ ته نه شي رسېدی، دی سم کړی چې لار بنده نکړي، بیا یې یو بل سړک وغځاوه، خو انور ډنگر به هغه ته هم ځان رساوه.

ده شکر دره کې یوه ښایسته مانۍ رغولې، کړکیو ته یې رنگینې پردې نیولې، قیمتي کوچونه یې ایښي دا ښې به د چا ملکیت و، غصب کړی به یې و، که یې رانیولی، ماته داسې ښکارېده، د پخواني پاچا د کورنۍ ملکیت وي، ښایي پر ده یې پلورلی وي، یا یې په زور لاندې کړی وي.

(والله اعلم)



# د حل او عقد ډرامې تمثيل

د لیندۍ پر ۸ مه حل او عقد شورا له ټاکلې نېټې لس ورځې وروسته دایره او پر دویمه ورځ یې یوازینی کاندید برهان الدین رباني د جمهور رئیس په توګه اعلان کړ.

د حل او عقد شورا په اړه د تعبیرونو له اړخه له اوله اختلاف موجود و، ځینو حل او عقد او لویه جرګه په یوه مفهوم او معنا استعمالوله، ځینو به بېلا بېلې معناګانې او مفاهیم ورته کارول، خو دا ښکاره خبره ده، چې دې ټکي د خپل ثقلت له مخې ډېرو ته د ویلو پر وخت مشکلات پیدا کړي وو، د یو څو رهبرانو او د هغوی مرستیالانو خو له رادیوګانو سره مرکو کې په دې ټکي ژبې کلکې نښتې، انجینر احمد شاه یوه مصاحبه کې د حل او عقد په ځای عل او عقد کلمه وویله، د عین او ح - ق او دال ټکي یې ګډوډ او ژوول، سیاف صاحب خو بیا عقد او حل تلفظ کاوه، چې اول غوټه ده او بیا یې پرانیستل، خو دا غوټه همداسې غوټه پاتې شوه چا خلاصه نه کړه.

۱۳۶۹ لمریز کې د مجددي او سیاف په مشرتابه د مجاهدینو عبوري حکومت سترې محکمې لویه جرګه منتخب اسلامي حل "و عقد افغانستان" په نامه یو معجون مرکب جوړښت په اعلان ۴۴ مادو کې یو قانون رامنځ ته کړ... د دغه قانون لومړي فصل کې چې د مجاهد، مهاجر، قوماندان، عالم، موسفید لپاره ځانګړې تعریف وړاندې شوی د اهل حل او عقد په پېژندنه کې کاږي: اهل حل وعقد عبارت از اشخاص

نیکو، صاحب رای هستند که مرجع حل و فصل قضایای مردم باشد، از منکرات و گناه پاک ومنزه پنداشته شود...

در جهاد مقدس سهم گرفته باشد، اقارب نزدیکش (پدر پسر، برادر) در مقامات بلند پایه دولت ملحد، ریاست یا بالا تر از آن یا دستگا خاد مصروف کار نباشد، فهم مناسب دینی داشته به امانت، تقوی وعدل متصف بوده به فسق وفساد مشهور نباشد و شعائر اسلامي را رعایت داشته باشد، منسوب به گروهای منحرف سیاسي نباشد، علیه جهاد مقدس موقف نگرفته باشد، اشخاصیکه بعد از اخراج قشون سرخ از وطن از صف دولت ملحد خارج شده اند منتخب شده نمیتواند...

سیاف صاحب د لویې جرگې پر مخالفت له پخوا ولاړ و، د ده په اند لویه جرگه کې ارذال هم راتلی شي، خو حل او عقد ته بیا تزکیه شوی او یوازې پاک کسان مخه موندای شي.

خو دلته یې له خپل تصویب کړي قانون په انحراف لویه جرگه منتخب حذف او د حل او عقد پرځای د پول نقد ډرامه پروډیوس کړه...

حل او عقد شورا بې له دې چې اتفاقي بنه غوره او د جمهور رئیس د ټاکنې ظرفیت او صلاحیت ولرلی شي، په ناقصه توگه دایره شوه.

د شورا په مقدماتې غونډه کې سید نور الله عماد اعلان وکړ، چې رهبران په دې موافق دي، چې شورا کې برخه واخلي، هغوی را روان دي، ممکن سبا راورسیږي، خو داسې نه وه، له سیاف پرته ټولو ورسره مقاطعه اعلان کړې وه، د کندهار، ارزگان، هلمند او زابل نمایندگان د دې لپاره چې سیاف صاحب د شورا له ترکیب، جوړښت او طرز العمل سره د هغوی له مخالفت خبر وو، د خپل ملاقات په پلمه پغمان ته په

بللو نظر بند کړل، د هغوی غیاب کې يې په هماغه ناقصه توگه شورا دایره کړه، له بلې خوا يو شمېر نور نمایندگان هم له شورا څخه په دغه ورځ د باندې پاتې شول او د هغوی په ځای خپله د دولت وزیران او نور کارمندان د شورا تالار کې کېنول شول او بې له دې چې د دولت ریاست ته د کاندیدانو نومونه د هغوی له پروگرامونو او برنامو سره خلکو ته ورسپېړي او ولس په دې رابطه خپلې سپارښتنې او مشورې نمایندگانو ته ورکړي، په داسې حال کې چې موجودو نمایندگانو ته هم د خپلو نظریاتو، پېشنهادونو او غوښتنو وړاندې کولو حق او وخت نه و، د انتخاباتو په رابطه د ټولو ملي، بین المللي او شرعي نورمونو پرخلاف له یوه ډرامایي حرکت سره په تالار کې يواځينی کاندید د هېواد جمهور رئیس په توگه اعلان کړای شو، کله چې ځینو نمایندگانو اعتراض وکړ، چې له رای گیرۍ مخکې باید نمایندگانو ته د خپلو نظریاتو د اظهار او وینا حق ورکړی شي، سید نورالله عماد وویل، لومړی به رای گیري کېږي، بیا به نمایندگانو ته د خبرو حق ورکول کېږي، په دې معنا چې لومړی به رباني جمهور رئیس ټاکي، هله د نظر د اظهار او خبرو حق او وخت پیدا کولی شي.

د حل او عقد شورا دایره شوه، د علماوو اتحاد له منشي مولوي سعیدالرحمن نه راواخله تر مولوي محمد میر، مولوي فضل هادي شینواري او گڼو نورو علماوو د شورا د تالار ښکلا گرځېدلي وو، بېچاره ذاکري صاحب او څو نور ملایان يې په ځای پرېښې وو، پته به هله ورته ولگي چې فتواگانې انتقادي پېشنهادونه وینا وې يې ټولې له نومونو لاسلیکونو سره مجله کې خپرې کړم.

په تالار کې خورا یخنی وه، نه د برېښنا درک و او نه هم د تسخین د

کومې بلې وسیلې، کله چې نمایندګان تالار ته ننوتل، دروازې وتړل شوې او نږدې دوه ساعته په تالار کې محبوس وساتل شول.

انجینر احمد شاه احمدزی د ستېج په مخ کې ودرېد ویې ویل: مشران را روان دي، لږ انتظار به نور وکړو، له ما سره د اذکارو ډېر ښه کتاب دی، زه به یې لولم، تاسې یې راسره تکراروئ، ډېر ثواب لري.

بسم الله الرحمن الرحیم

## دولت اسلامی افغانستان

علماء و قوماندانهای محترم

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته وبعد!

چنانچه اطلاع دارید درشرایط کنونی کشور عزیزما وارد مرحله حساس وفیصله کن گردیده است، باید درکشور عزیز مادولت مستقرو مستحکم بمیان آید. کشمکشهای خونین بدامنی ها خاتمه یابد، همه مردم مطابق به احکام الهی درفضای صلح و اخوت بسربرند، افغانستان ویران بعد از آزادی بازآباد گردد، راههای امن و مشکلات ملت محروم و زجرکشیده ما حل گردد قانون اساسی کشور که بر اساس قرآن و سنت تدوین میگردد برای تصویب آماده گردد حقوق و وجایب همه روشن گردد، ظلم و بیعدالتی ومحرومیت ها برچیده شود برای رسیدن به این ارمان والا به بنای هدایت رب العالمین که می فرماید «وامرهم شوری بینهم» علماء قوماندانان دانشمندان و اهل الرای از سر تا سر کشور درچوکات شورای اهل الحل و العقد که در اصطلاح معروف لویه جرگه یاد می شود همه درمرکز افغانستان شهر کابل جمع شوند تا در مورد زعامت اینده کشور تصمیم بگیرند.

و از آنجا که تشکیل دولت اسلامی و تعیین زعامت ورهبری برای کشور یك فریضه دینی است، و تعیین زعامت بدون تشکیل شوری صورت نمیگیرد پس مطابق به قاعده اصولی تشکیل شوری «مالایتم الواجب الا به فهو واجب» یك وجیبه دینی است، ودر عین حال نص صریح قرآن کریم که می فرماید: «و امرهم شوری بینهم» اینهمه میرساند که باید به هرصورت ممکن مردم ما در تشکیل این شوری اقدام عاجل بعمل آورده اجازه ندهند دستهای تخریب ما را از ادای این فریضه دینی باز دارد.

یقین دارم ملت متدین ما با هوشیاری درشرایط حساس کنونی مانع هر دسیسه خواهند شد، و شورای بزرگ وسرنوشت ساز خویش را درموعد مقرر تشکیل خواهند داد و خود را از انجام این امردینی محروم نخواهند ساخت. خداوند حافظ ونگهدار همه باد.

والسلام علیکم ورحمة الله

برادرتان

برهان الدین ربانی

رئیس شورای رهبری ورئیس دولت اسلامی افغانستان

د تالار دننه او بهر وسله وال گوته په ماشه ولاړ وو، داسې معلومېده لکه د جاسوسی یوه خطرناکه شبکه د څار او تعقیب لپاره په سختو پولیسي فعالیتونو بوخته وي، هر نماینده له دوو زیاتو څارونکو له خوا تعقیب کېده، د ببرک او نجیب لویې جرگې به هم دومره سانسور او پولیسي نظام تر کنترول لاندې نه وي دایرې شوې.

وضعه نه یوازې دا چې له اختناق ډکه وه، بلکې د نمایند گانو د تحقیر او سپکاوي ښکارندوی هم وه،له دوو ساعتو زیات نمایندگان تر تړل شویو دروازو دننه قید وو.

بندیز او گرځبندیز دومره کلك و، چې چاته د قضای حاجت اجازه هم نه ورکول کېده، تشنابو ته څوك نشوای وتلی، چې له امله د ځینو سپین ږیرو او بوډاگانو پرتوگونه لانده شول...

مولوي نظام الدین حقاني د رایې ورکولو په طرز العمل اعتراض وکړ، خو د واکمنو بریخو له یوې او بلې خوا چغې کړې او د (ملای اخلالگر) په چغو یې داسې یوه هنگامه جوړه کړه، چې د مولوي نظام الدین حقاني اعتراض چا نه شوی اورېدای.

له همدې ځایه وه، چې مولوي نظام الدین حقاني او یو شمېر نمایندگانو له تالار د احتجاج په عنوان د وتلو هڅه وکړه، که څه هم د دوی مخه ونیول شوه او وسله وال کسان د تالار په دروازو کې گوته په ماشه ودرېدل، خو له مولوي نظام الدین حقاني سره یو شمېر نمایندگانو د شرم دا داغ له خپلو ځانو لرې او له تالاره په وتو بریالي شول، په تالار کې دوه صندوقه کېښودل شول، چې په یوه د رباني صاحب رنگین تصویر لگېدلی، په داسې حال کې چې په تالار کې د کابینې غړي د کمیسیون هیئت او ډېری هغه افراد، چې واکمنو له

دولتي ادارو او خپلو متعهدينو راتول کړي وو، د رباني صندوق ډک او بل چې کانديد يې معلوم نه و، کومه پانه راونه وته، په دې توگه د حل او عقد ډرامه د رباني صاحب د انتخاب په اعلان پای ته ورسېده.

د قوس په ۱۱مه کابل راډيو د شپې ۸ بجو خبرو کې وويل: د حل او عقد شورا په ننۍ غونډه کې د رايو په اتفاق د استاد سياف پر پېشنهاد پرېکړه وشوه، چې له دې وروسته غير اسلامي ډلې ټپلې او افراد په هېڅ نوم او عنوان د نشاط او د فعاليت اجازه نه لري او د پخواني رژيم هېڅ يو لوړ رتبه او حزبي کارمند نه شي کولی د اسلامي دولت په کوم ارگان کې کار وکړي او نور به د پخواني محلد رژيم ټول پاتې شوني له دولتي ادارو ايستل کېږي، د خبر په پای کې استاد سياف پخپل غږ وويل: دغو عناصرو نژدې وه زموږ د څوارلس سوه کلن ملت نوم او ننبان ورک کړي.

ده د افغانستان تاريخ له څوارلس سوه کالو د يادولو وړگانه، له دې وړاندې يې د جهالت او کفر زمانه پېژنده، د جهالت او کفر پر ضد مبارزه ده د خپلې ځانگړې فلسفې له مخې غزوله، دا سې چې اول به بېل او کولنگ را اخلې د جهالت، شرک او بدعت نښې نښانې به ړنگوی، بلدوزر به پرې تېروې چې د بت خانې پر سر د مسجد گومبزه نه شي جوړېدی.

په داسې حال کې چې د ملتونو تاريخ له اديانو لرغونی وي... تاريخ او نېته توپير لري... تاريخ دين نه دی...

د قوس ۱۲ مه د سهار له لمانځه وروسته ذاکري صاحب د سياف صاحب په اړه چې دا ټوله ډرامه دده پر پروديوسرۍ تمثيل شوه، د زړه له څوښه ښېرا وکړه، چې ټولو لمونځ کوونکو ورسره امين کړه.

حقيقت دا و چې که سياف، رباني، مسعود پر شا نه وای ټپولي، کېدای شوی د شورا له تکميل، توافق او تزکيې وروسته یو منلی اتفاقي حکومت جوړ شوی وای، حکمتيار د رباني له جمهوري رياست سره قسما توافق درلود، یواځینی شرط يې د کابينې په تېره دفاع وزير تبديلول و، له بده بخته سياف د صدارت پر سر د سياسي سوداګرۍ داسې یوې معاملې ته غاړه کېښوه، چې د صدارت په شمول يې د ډېر څه په بايللو د يوه بل خونړي جنګ اور بل کړ، خو رباني د خپل مرموز طبيعت له مخې د صدارت چوکۍ په داوطلبۍ له ځينو سره په سودا اچولې، چې تر اوسه يې ددغه چوکۍ په تمه د ډېرو خولې چوپ کړي دي، رباني صاحب په يوه ډز دوې مرغې په نښه کولې، له يوې خوا يې د صدارت لپاره ډېر کسان په تمه کړي او د هغوی له مخالفت څان ببغمه کړی او له بلې خوا يې د صدر اعظم له احتمالي شر نه هم څان ژغورلی دی.

احمد شاه مسعود الوطن عربي مجلې سره مرکه کې ویلي: د پير ګيلاني له صدارت سره موافق دی، د مسعود په وينا د ډاکټر نجيب الله په اړه به مشران پرېکړه کوي. پوښتنه دا ده چې د ببرک کارمل په اړه چا پرېکړه وکړه؟

خيرخانه کې د یوې پوځي فرقې په چونۍ کې مولوی خالص خپل لنډ او ساده فارمول استاد رباني ته وړاندې کړ، په دې ټکو:

يو خواته ستا ملګري دي، دا مو پټېلې حکومت او واک بايد تاسې سره وي، بل اړخ ته ټول ملت دی...

دا سمه نه ده چې هم مو د حکومت پر مشرتابه خېټه اچولې وي، هم په ټول واک...

اوس دوې خبرې دي... دا چې یا مقتدر وزارتونه تاسې واخلی، مشري ملت ته پرېږدئ، داسې څوک مشر وټاکو چې ټول ملت ته منلی وي... یا جمهوري ریاست ته واخله.. نور وزارتونه به ملت ته ورکړو...

استاد کما في السابق وویل له ملګرو سره به له سلا وروسته ځواب درکړو...

د مولوی میر حمزه په خوله یې احوال دا و چې که مولوی خالص غواړي صدر اعظم شي، موږ ورسره موافق یوو...

مولوي خالص وویل: که دوی دا ډول فکر کوي ستونزې به نورې هم زیاتې شي... په دې مانورو ربړه نه شي اوارېدای... مولوی خالص د افندي صاحب په اړه ویلي و، چې پیر ګیلاني د افغانستان اصلي اوسېدونکی نه دی... د ده پلار له عراق څخه راغلی، د افغانستان مشرتابه ته نشي کاندیدای... خو پیر صاحب د استاد رباني له خوا د صدارت په تمه تر مودو خپته خیشته ګرځوله...

استاد سیاف او حضرت صاحب هم له دغسې شالید مستثنا نه دي... استاد ځان سید بولي او مجددي له سرهند سره پېیلی.

بي - بي - سي له کابل د خپلو خبریالانو د رپوټونو په اساس یوه پروګرام کې د مسلط وضعیت او جګړې په رابطه د خلکو غبرګون داسې څرګند کړ... څو تنو په ژړغوني اواز د ملګرو ملتو پر ضد شعارونه ورکول، چې ولې د افغانستان جګړې او ربړې په اړه له خپل اثر او نفوذ کار نه اخلي، یوه تن په خپل لړزېدلي اواز له ملګرو ملتو غوښتنه وکړه: مسلمان نه غواړو کافر راولېږئ کافر... څکه چې د مسلمانانو مسلماني لیدلې.

# د مولوي حقاني دریځ

## ۱۳۷۱ / ۱۰ / ۱۰

**له امریکا غږ سره مرکه:**

**امریکا غږ:** ستاسې په مشرۍ د افغانستان علماوو، قوماندانانو او مخورو استاد رباني ته پېشنهاد کړی و، چې قدرت خپل مرستیال ته وسپاري، خو داسې ونه شول او استاد رباني د دوو کالو لپاره د هماغه شورا له خوا انتخاب شو، ستاسې نظر په دې هکله څه دی؟

**حقاني:** څرنګه چې د استاد تمدید شوې موده هم پای ته رسېدلې وه د شورا د تدویر په هکله له مشرانو سره ملاحظې او انتقادونه موجود وو، موږ غوښتل شورا په واقعي توګه تکمیل او دایره شي او ټول اړخونه شورا کې برخه واخلي، خو استاد رباني دغه پېشنهاد ته چې واک خپل مرستیال ته وسپاري، مثبت ځواب ور نه کړ، هماغه و چې شورا په ناقصه بڼه دایره شوه او پینځو جهادي تنظیمو تحریم کړه.

**امریکا غږ:** ستاسې نظر د استاد رباني د ټاکنې په هکله څه دی؟

**حقاني:** زما شخصي نظر دا دی، چې کوم مشکل موجود و، هغه پرځای پاتې دی، امن، استقرار او د قوي ملي حکومت جوړېدل لاس ته رانغلل، که چېرې په واقعي توگه شورا لکه موږ چې پېشنهاد کړې وه دایره شوې وای، د جگړې مصیبتونه او د عدم استقرار ستونزې به له مینځه تللې وې.

**امریکا غږ:** ځینې مشران له واکه د استاد رباني گوښه کېدل غواړي، خپله رباني غواړي په قدرت کې پاتې وي، تاسې څه فکر کوئ، کابل کې به څه پېښ شي؟

**حقاني:** دواړه جانبه د زور له لارې دا کار تر سره کول غواړي، چې د حل لاره نه ده، باید د خبرو له لارې د حل منځنۍ لار وموندل شي، داسې چې د مظلوم ملت دغه ستره ارزو سرته ورسېږي او دا جگړې او وینې تویېدل ختم شي، دغه دواړه لارې چې یو په زور په قدرت کې پاتې کېدل او بل په زور د هغه لېرې کول غواړي، معقولې لارې نه دي، دا په حقیقت کې د کابل بېدفاع ښاریانو او ټول ملت سره زیات ظلم او جفاده...

**امریکا غږ:** د قوماندانانو، مخورو او علماوو نظر څه دی؟

**حقاني:** وړاندې موږ دې ټکي ته اشاره وکړه، چې د خبرو او مفاهمې له لارې دا مشکل حل شي، خو دا هم باید ووایم، چې د لارو بندولو باید ډډه وشي.

ټول اړخونه له شخصي، تنظیمي گټو، ملي گټې غوره وگڼي، په تفاهم د یوې سالمې ادارې په جوړېدو هېواد له دې بحران وژغوري، دا په جعلي، تقلبي او فرمایشي حرکتونو نه شي ترلاسه کېدای.

**امریکا غږ:** تاسې له دې بحران د وتلو کومه لار پېشنهاد وي؟

**حقاني:** د مشکل حل ته باید د خبرو یو مناسب جهت وموندل شي، له همدغه جهته اواري موندل کېدای شي.

**امریکا غږ:** د استاد رباني په قدرت کې پاتې کېدو سره به د کابل محاصره دوام ومومي، د ولایتونو اړیکې به له مرکز سره لېرې پاتې شي که څنگه؟

**حقاني:** طبعاً که مشکل حل نه شي، کابل به له سختې محاصرې سره مخامخ وي او ولایات به همدغسې له مرکز لېرې پاتې وي، څرنگه چې شورا ناقصه وه، اصلي مشکل په خپل ځای پاتې دی.

**امریکا غږ:** د ربېږې د حل لپاره ستاسې غوښتنه څه ده؟

**حقاني:** د خلکو واقعي نمایندگانو، بې طرفه قوماندانانو، علماوو او مخورو کمیسیون باید رسمي شي، چې د حل په یوه لار توافق تر لاسه کړي، متخاصمې ډلې باید له جگړې، محاصرې او لارو بندولو ډډه وکړي، مسئله به طبعاً داسې حل کېږي، چې د ملت لپاره د منلو وړ وي.

څرنگه چې شورا په سمه توگه جوړه نه شوه، هغوی چې شورا تحریم کړې، رانه وستل شول، د شورا د تکمیل، تزکیې او تصفیې لپاره زموږ غوښتنې ونه منل شوې، ځکه خو اصلي مشکل پرځای پاتې دی، زه بیا هم دا خبره تکراروم چې له جگړې، راکټي بریدو او لارو بندولو ډډه وشي.

**امریکا غږ:** ایا تاسې اوس هم د سولې په هلو ځلو بوخت یاست؟

**حقاني:** دا زموږ مسوولیت دی، موږ د الله تعالی بندگان یو، د بنده بندگان له ځانه نه جوړوو، جنگ د مرض علاج نه دی، حل په جنگ نه کېږي، بلکې په خبرو حل رامینځته کېږي، باید دواړه جانبه صالحو او

بېطرفو قوماندانانو، علماوو او مخورو ته واک ورکړي او په خپلو وعدو صادقانه عمل وکړي، الله تعالی د مسلمانانو ترمينځ سوله او مصالحه مقرره کړي، نه جنګ او وينې تويول.

## اعلاميه

*حقاني صاحب له امريکا غږ سره د مرکې پر سبا زه وروغوښتم، چې له اړخه يې مطبوعاتو ته يوه اعلاميه ورکړم، د اعلاميې غټ ټکي دا دي:*

که پر ولسي خلکو او سيمو بمباري او راکټي حملې دوام پيدا کړي، موږ بې تفاوته نه شو پاتې کېدای...

د افغانستان مجاهد او قهرمان ملت چې له شوروي يرغلګرو سره د جهاد په اوږدو کې د جګړو او هجرت کومې ستونزې او کړاوونه زغملي او په دې لار کې يې څومره قرباني ورکړي، په يقين سره چې د بشري تاريخ په حافظه کې د داسې دردوونکو پېښو ساری او د دغسې قهرمان ولس د صبر او زغم مثال نه شي ليدل کېدای.

په کار خو داوه چې د ملت پر ټپونو د ملهم پټي ايښودل شوی او دردونه يې درمل شوي وای، خو له بده بخته تېرو ۱۸ مياشتو کې د اقتدار خپل مينځي جګړو ملت له هغو زياتو مصيبتونو او کړاوونو سره مخامخ کړ، د اوبو - برېښنا قطع کېدل، د لارو بندول، د سونګ او خوراکي موادو قحطی، نا امنی او لوټمار سربېره هوايي بمباريو او توغنندويي بريدونو له مرګوني برخليک سره مخامخ کړ.

موږ د افغانستان قوماندانانو، علماوو، مخورو او هغو ټولو اړخونو

په استازيوب چې جګړو کې ملوث نه دي، له متخاصمو ډلو په کلکه غوښتنه کوو، چې پر ولسي خلکو او سيمو له هوايي بمبار او راکټي حملو ډډه وکړي، د برېښنا له قطع کولو، لارو تړلو، اوبو بندولو او د عام المنفعه تاسيساتو لکه پلونو، فابريکو له نړولو لاس ونيسي.

موږ په داسې حال کې چې له خپل مجاهد او مظلوم ولس سره د جګړې له امله رسېدلو ځاني او مالي زيانو په درد او دوک کې ځانونه شريک ګڼو، په ډاګه اعلانوو، چې که بيا هم پر ولسي وګړو او سيمو هوايي بمبار او توغندويي بريدونه دوام لري موږ بې تفاوته نه شو پاتې کېداى.

موږ يو ځل بيا په تاکيد سره وايو، که دغه ناوړه عمل دوام ومومي، موږ به مجبور وو، په لازم اقدام لاس پورې کړو، په دې صورت کې به د عواقبو مسووليت د متخاصمو ډلو په غاړه وي.

والسلام على من التبع الهداى

جلال الدين حقاني

بسم الله الرحمن الرحیم



# د افغانستان ملي اسلامي محاذ

NATIONAL ISLAMIC FRONT OF AFGHANISTAN



بدبختانه بر تعدد موعد تشکیل شورای اهل حل و عقد نیز کشیده میشد به همان اندازه اتهامات مبنی بر تخلف از لایحه مربوط نیز بیشتر میشد تا آنکه در هفته ها و روزهای اخیر اکثریت تنظیم های جهادی با دایر شدن این شورا اشتغال کرده و بجز جمعیت اسلامی است مخالفت خویش را اعلام داشته اند.

در پرتو این شرایط محاذ ملی اسلامی افغانستان به این باور رسید که دایر شدن چنین شورای بذات خود باعث درگیری یک جنگ داخلی شدید میگردد که تلفات هنگفت جانی و مالی موجود را بمیزان قابل ملاحظه افزایش خواهد بخشید و اگر با قطع نظر از این قیمت گزاف شورای مذکور هنوز هم با اصرار شما دایر گشته و شما را بحیث رئیس دولت انتخاب کند ـ که البته مطمح نظر شما است ـ به شما آن مشروعیتی را نخواهد داد که بموجب آن بتوانید وحدت ملی را تأمین و صلح و امنیت را در کشور برقرار ساخته، زمینه را برای رفع احتیاجات مبرم و اولیه مردم برابر نمائید چه رسد به اعمار مجدد و پایه گذاری انکشاف اقتصادی و اجتماعی.

بنا بر آن محاذ ملی اسلامی افغانستان و شخص خودم با جمعیت اسلامی افغانستان و شخص شما مجالس متعددی تشکیل داده در آن جلسه ها پیشنهاد کردیم که از یکطرف یک کمیسیون بازرسی تشکیل گردد تا اتهامات و شکایات را بررسی کرده در صورت لزوم تصمیمات لازم را عمل آورده و باین ترتیب هم زمینه برای اشتراک تنظیم ها، ولایات و ولسوالی های ناراضی فراهم گردد و هم اعتبار و اعتماد بر این شورا افزایش یابد. از طرف دیگر شورای قیادی یعنی مرجعی که تا وقت تأسیس ارگان های ممثل اراده ملت صلاحیت تعمیل این اراده را دارد، تشکیل جلسه داده راهی را برای بیرون رفت از این بن بست جستجو کند.

با کمال تأسف شما به هیچ یک از این خواسته ها جواب مثبت نداده بر دایر شدن شورا بشکل فعلی آن و انتخاب شدن خود بحیث رئیس دولت توسط آن اصرار ورزیدید.

من بحیث یک فرد که جز رفاه و سعادت ملت مسلمان افغانستان آرزوی نداشته و بحکم اعتقادی که

بسم الله الرحمن الرحیم



# د افغانستان ملي اسلامي محاذ

NATIONAL ISLAMIC FRONT OF AFGHANISTAN



ملت مجاهد افغانستان بمن داشته اند خود را مسئول تحقق آرمانهای شان میدانم شما را یکبار دیگر به عواقب وخیم این اصرار تان متوجه ساخته متذکر میشوم که ممکن است آنچه در نتیجه آن حاصل گردد کاملاً متضاد با چیزی باشد که شما و تنظیم شما برای افغانستان و مردم مسلمان آن آرزو دارید.

وما علینا الا البلاغ

با احترام

[signature]

سید احمد گیلانی

رهبر محاذ ملی اسلامی افغانستان

۲۹ قوس ۱۳۷۱

کابل

# د جګړو بل پیل

حل او عقد ډرامې کابل کې د خونړۍ جګړې اور ژبغرانده کړ، استاد رباني ښايي په دې پوهيده چې ددغه ډرامې له لارې د ملت سترګې له خاورو نشي ډکولای، خو د واك د دوام لنډ او تنګ پرتوګ يې ګرځولای شي، له دې ناخبره چې ددغه پرتوګ د ښختګ درزونه دټينګېدو نه دي.

رباني اعلان کړه: چې د حل او عقد شورا لخوا، د حکومت مشرتابه په تاکل کېدو د سولې ترنامه لاندې کوم فعاليت ته اړتيا نه ليدل کيږي، منتخب اسلامي حکومت واګې لاس کې اخيستی مخالف يې د باغي حکم لري.

پر دريېمه ورځ يې د حزب پر ليکو او سنګرونو بريد وکړ، شينه کې

يې د حزب ډېرې سنگرونه ونيول، جنرال بابه جان د نظار شورا د ځواکونو قومانده پر غاړه وره، ددغه برید پر ماښام محمد یونس قانوني له راډيو وويل: غوره دفاع حمله ده، د همدغسې يوه برید له امله موږ د حزب سنگرونه لاندې کړل... له دې وروسته به د حزب د راکټونو توغنديو له تهديد کابل خوندي وي...

د خپلو خلکو او ولسونو د فتحه کولو دغه جگړه په همدغسې کرکجنه بڼه غزېدلې، خپل هېواد کې له خپلو خلکو سره جگړه او د خپل ولس او هېواد د فتحه کولو هوس هرې غاړې په بړ بړ رسنيو ته اعلاناوه، دغه هوس داسې يوه نشه او جنون رامنځ ته کړ چې په وينو تويولو او وينو څښلو نشوی ماتېدی.

پر سبا يې حزب په سهيل او ختيز استقامت درانه بريدونه وکړل، په ختيز لوري يې د خپلو سنگرونو په بېرته نيولو د څرخي پله تر زندان سيمه لاندې کړه، سهيل اړخ ته يې تر جنگلك پرمختگ وکړ، جنگلك فابريکه چې وار له مخه لوټ شوې وه، دغه جگړه کې د اور خوراك شوه.

کابل کې خونړۍ جنگ نښتی، حکومت چې د بشپړ بري په هيله يې بريدونه پيل کړي و، پرله پسې ناکاميو بېرته په غار ننويست، څکه خو يې له سره د سولې او اوربند اشتها غزونې وکړې يو ځل بيا يې د پاکستان سفير ته ځولۍ وغوړوله، جنرال حميد گل او قاضي حسين احمد ته يې چې د خوب او تيز رگونه معلوم وو، رامنډه کړه، نواز شريف سوټي يې پسې راواخيست، اسلام اباد کې يې د سولې تړون ته راغونډ کړل.

دوستم له هرې غاړې سره د خپلې بيې لوړولو په چنو لگيا دی، د

حزب لخوا جرير په دوستم پسې لګېدلی، رباني پرله پسې دوستم ته د مينې ليکونه لېږل.

احمدشاه مسعود همايون جرير بندي کړ، نواز شريف اسلام اباد کې کله له يوه سره کيني کله بل وروغواړي يوه ورځ دوه درې سره يو ځای کړي، بله ورځ پنځه شپږ سره کېنوي...

د دوستم استازی يې هم راوغوښت مولوی خالص له دغو خبرو سره شلون اعلان کړ، چې ګنې د اسلام اباد له تړون د وينې بوی راځي...

## د اسلام آباد تړون کې د قاضي حسين احمد او جنرال حميدګل رول:

استاد رباني له پاکستاني سفير امير عثمان غوښتي د سولې لپاره ګام پورته کړي، قاضي حسين احمد او جنرال حميدګل يو ځل بيا کابل کې په کتنو بوخت دي.

حميد ګل له مسعود پوښتنه وکړه چې حکمتيار د واکمن صدر اعظم په توګه منلی شي؟. مسعود هو ځواب ورکړ، قاضي حسين احمد پاکستان ته ولاړ، خو حميد ګل کابل کې دی.

د اسلام آباد معاهدې زمينه د خورا ستومانوونکو ناندريو په پايله کې رامنځ ته شو.

مشران اسلام آباد ته وغوښتل شول، استخباراتو لوبه توده کړه، په لومړيو کې خبرې ناکامې ګڼل کېدې، نواز شريف د خبرو په وروستۍ شپه وويل ددې لپاره چې د ختې پوزه جوړه شي، يوه اعلاميه خپره کړئ چې خبرې ګټورې وې، او راتلونکي کې د غزېدا په ژمنه پای ته ورسېدې،

دلته يو ځل بيا د يوې طرحې زنگ ووهل شو، چې مشرانو اتومات لاسليك كړه.

د مولوي خالص دريځ له پيله څرگند و، دده په خبره له اسلام آباد تړون د وينو بوی ځي... ده له كابله د گلم ملېشو وتل نه بلكې بې وسلې كول غوښتل، ده حكمتيار ته هماغه وخت په ډاگه كړه چې له كابله د ملېشو په ايستلو به دغه مليشې د هېواد بله سيمه كې د شر او فساد مخه مومي، ځكه خو له كابل د ملېشو د اېستو پر ځای بايد د ملېشو د بې وسلې كولو غوښتنه وړاندې كړای شي.

مولوی خالص ويل امريكا او لويديز د افغانستان په اړه رښتيني نه دي، غواړي پر افغانستان لكه د سوماليی حالات راولي چې نړيوالې لاسوهنې ته مخه پرانيستل شي، دده په خبره افغانستان كې بايد له سره موقت حكومت جوړ شي، چې تنظيمونه او مليشې بې وسلې او ازادو ټاكنو ته زمينه برابره كړي.

(فرنټير پوست ۱٦ اگست ۱۹۹۳)

استاد رباني يوه كوټه او- حكمتيار بله كې ناست دی، غلام اسحق خان حكمتيار تر مخ كړ.

نواز شريف پسې دی د رباني كوټې ته راغلل، رباني سپك له ځايه پاځېده، حكمتيار وروړاندې شو، اسحق خان ترمنځ يو بل ته په نرۍ موسكا وكتل، غاښونه يې د كمرو د فلش له برېښناوو سره وپړقېدل، يو بل ته يې لاسونه وركړل.

خو ددغو موسكا تر شا د هغو زرگونو بېگنا او بې دفاع هېوادوالو د مرگ ژوبلې ناورين نشوی پټېدای، ددغه لاس وركولو بيه د كابل ويجاړي

لوټ تالان او د ژوبلو مرگونو غمیزې همدا پوښتنه راپورته کوله: بای ذنب قتلت. دا ټوله بربادي د همدغه یوې موسکا بیه وگرځېده؟

د اسلام آباد پر تړون لاسلیکونه وشول د قدرت حرص د وینو د سوداگرۍ پانگه تر گونډو کړه، تړون سعودي پاکستا او ایران د تضمین کوونکو په توگه توشیح کړ.

یو ځل بیا خبره بیت الله کې د لوړې تازه کولو ته ورسېده...

پاکستان د حکمتیار د دغه غوښتنې له امله چې له رباني سره دجمهور رئیس په توگه نه، د جمعیت د مشر په توگه خبرې کوي د استاد رباني رسمي استقبال ونکړ.

اسلام آباد تړون لکه د پېښور هغه په گونگ او مبهم متن کښل شوی، داسې چې هر اړخ ته د خپلو گټو د خوندیتوب، تعبیر او تفسیر گنجایش لرلی شي.

د دفاع وزارت ربړه په ځای پاتې ده، حکمتیار د دفاع وزارت تغیرات د کابینې چوکاټ کې خپل َصلاحیت گاڼه خو د رباني ویندویانو د دفاع وزارت کې تغیرات ناشوني او مردود اعلان کړل.

تړون حکمتیار صدر اعظم و مانه چې له یوې اوونۍ وروسته له مشرانو سره په سلا مشوره کابینه وټاکي په دې اړه حکمتیار جلال اباد کې د مشرانو غونډه وبلله خو رباني پکې برخه وانخیسته، د حکومت ویاند وویل دتړون له مخې اړینه نه ده له مشرانو یو ځایي مشوره واخیستل شي، په انفرادي توگه هم دغه نظر اخیستل کېدای شي.

له دې وروسته حکمتیار چهار اسیا کې د دغسې غونډې رابللو اعلان وکړ، خبرتیا کې په دې ټینگار شوی که کوم مشر غونډه کې گډون ونکړ د شکایت حق نلري، دغسې غونډه کې یواځې د تنظیمو مشرانو برخه

اخیستی شوای نه استازو، مرستیالانو...

صدر اعظم ته ښايي هر تنظیم د لسو تنو نومونه ورکړي وای، چې له دې څخه يې دوه تنه کابینه کې نیولی وای.

د چهار اسیا غونډې نصاب بشپړ نشو صدر اعظم جمهور رئیس ته دکابینې نوی لست په لېږلو پخوانۍ هغه منحل کړه، خو رباني دپخوانی کابینې د کار د دوام فرمان ورکړ.

صدر اعظم کابل ښار او ارگ ته نشي ورتلی او جمهور رئیس چهار اسیاب ته...

رباني د خپلو ویندویانو په خوله دا نیوکه ډنډوره کړه چې د کابینې پر لست مشران اعتراض لري، حکمتیار ویل هر تنظیم ته دوه وزراتونه يو مهم او بل غیر مهم رسېدلی...

دوه وزارتونه دوستم ته پام کې نیول شوي، هغه چې حکمتیار داته میاشتنی جگړې جوازگانه په دې ټکو چې گویا حزب له دولت سره نه، بلکې له ملېشو سره په جگړه بوخت دی.

د اسلام آباد تړون لکه د پېښور گندمك او... په څېر د تاریخ توره پاڼه او شرمېدلې فصل واړاوه...

# اسلام اباد تړون

۱ تشکیل حکومت برای مدت ۱۸ماه که در ان پروفیسور برهان الدين رباني به صفت رئیس جمهور و مهندس حکمتیار ویا نماینده اش بحیث صدر اعظم ایفا وظیفه خواهند کرد.

۲- کابینه در ظرف دو هفته بعد از امضای موافقتنامه به مشوره رئیس جمهور و رهبر ان تنظیم های جهادی تشکیل می گردد.

۳- بر پروسه انتخاباتی که بیش از ۱۸ماه را در برخواهد گرفت توافق شده که اعتبار به آغاز این مدت از ۲۹ دسمبر ۱۹۹۲میباشد.

الف: تشکیل عاجل یك کمیسیون انتخاباتی مستقل و باصلاحیت کامل مشتمل بر نمایندگان همه احزاب.

ب: کمیسیون انتخابات مکلف است درظرف ٦ الی ۸ ماه متصل امضای این موافقت نامه انتخابات برای تشکیل یك شورای بزرگ قانونساز برگذار کند.

ج: قانون اساسي کشور توسط همین شورا منتخب قانون ساز تصویب میگردد که در روشنایی ان انتخابات عام برای انتخاب رئیس جمهور و پارلمان در خلال همین ۱۸ ماه برگذار شود.

ح: یك شورای دفاعی مشتمل بر دو دو نماینده از هر تنظیم برای امورات آتي تشکیل میشود.

الف: یك اردوی ملی را تحقق بخشد.

ب: اسلحه ثقلیه را از همه احزاب و منابع تسلیم شود و در صورت لوزم انرا از شهر کابل وسایر شهرها بیرون برده و در نقاطی خارج شهر؟ جای بجا سازد و به این ترتیب امنیت شهر ها تامین گردد.

ج: تضمین گشایش همه راه های تدارکاتي غرض استفاده عام.

د: تضمین عدم استفاده از بودجه دولت برای اکمال قطعات شخصی و باندهای مسلح.

و: باید همه زندانیانی که توسط حکومت و احزاب در جریان خصومت های مسلحانه دستگیر شده اند فوراً وبدون قید شرط رها شوند.

٦- همه اپارتمانهای و املاك شخصی دولتی و مناطق مسکونی که در جریان خصومت توسط گروه ها غصب و اشغال گردیده باید به صاحبان اصلی ان مسترد گردد.

اقدامات مؤثر صورت میگرد تا برگشت افراد اواره بهٔ خانه و مناطق مربوط شان میسر گردد.

۷- یك کمیته متشکل از نمایندگان همه احزاب تشکیل میگردد، تا اجرا آت مالی و سیستم پولی کشور را تحت کنترول و نظارت قرار داده و جریان پول بانکی، را مطابق قوانین موجود مالی نگهدارد.

۸- کمیته مشتمل بر نمایندگان همه احزاب غرض نظارت بر توزیع مواد غذایی، مواد سوخت وسایر مواد ضروری تشکیل میگردد.

۹- غرض نظارت بر اتش بس وقطع مخاصمت یك کمیسیون مشترکي از نمایندگان همه احزاب تشکیل میگردد.

## وظایف و صلاحیت ها؟

رئیس جمهور دولت اسلامي افغانستان سمبول وحدت و يك پارچگی کشور بوده، باید امور دولت را به مقتضای شریعت و اصول قران و سنت اداره و رهبری کند.

به مشوره رئیس جمهور، صدر اعظم کابینه را تشکیل داده، سپس انرا بهٔ رئیس جمهور تقدیم نماید تا رسماً انرا اعلان نموده و مراسم تحلیف را بجا اورد.

۱- کابینه باید بحیث يك تشکیل متحد تحت قیادت صدر اعظم عمل نموده بر اساس اصل مسولیت دسته جمعی فعالیت کند.

۲- صدر اعظم و کابینه باید درهمه قضایای مهم به شکل منظم در تفاهم نزديك با رئیس جمهور عمل کند.

۳- رئیس جمهور و صدر اعظم باید در تفاهم با همدیگر عمل نموده و اگر اختلافی تبارز می کند، از طریق مناقشه با همدیگر حل نماید.

در صورتیکه قضیه لاینحل باقي ماند به مجلس مشترك رئیس جمهور و صدر اعظم مفوض گردد.

۴- همه تصاویب مهم مربوط به پالیسی در مجلس کابینه که تحت ریاست صدراعظم دائر میگردد اتخاذ میشود وزرا، معاونین ووزرای دولت برای امور کشور بصورت انفرادی و دسته جمعی در مورد تصامیم حکومت مسولیت دارند.

۵- تقرر رسمي قوماندانان قوای مسلح مطابق تعامل موجود پس از تفاهم ذات البینی باید صورت گیرد.

## صلاحیت های رئیس جمهور:

٦- رئیس جمهور دارای صلاحیت های و وظایف آتی میباشد.

الف: تقرر معاون رئیس جمهور دولت اسلامی افغانستان

ب: نصب و عزل قضات ستره محکمه و قاضی القضات به مشوره صدر اعظم مطابق حکم قانون.

ج: فرماندهی اعلایی قوای مسلح کشور در روشنای اهداف و موازین قوای مسلح افغانستان.

د: اعلان جنگ و صلح مطابق به مشوره کابینه و پارلمان.

هـ: انعقاد و خاتمه جلسات پارلمان مطابق مقررات.

و: استحکام وحدت ملی، حفظ استقلال، تمثیل بی طرفی و تشخص اسلامي افغانستان به نفع همه اتباع آن.

د: تنفیذ یا لغو فیصله های محاکم مطابق به شریعت در حدود مقررات.

ج: توظیف روسای هیئت های د پلوماتیك افغانستان به کشور های خارجی و تقرر نمایندگان دایمی افغانستان در سازمان های بین المللی مطابق معمول دپلوماتیك، پذیرش همه اعتبارنامه های همه روسای هیئت های دپلوماتیك خارجي.

ط: تصحیح قوانین ومقررات وا عطای اعتبار به فیصله نامه ها و امضای معاهدات بین المللي مطابق به قانون.

ی: رئیس جمهور میتواند مطابق به صوابدید خود برخي از اختیاراتش به معاون رئیس جمهور و یا صدر اعظم انتقال دهد.

ك: در صورت وفات ویا استعفای رئیس جمهور، امور ریاست

جمهوری مباشرتاً به معاون رئیس مفوض میگردد، که اوتازمان انتخاب رئیس جمهور جدید مطابق قانون اساسي از امور نیابت میکند،

ل: اعطای اجازه رسمی به طبع بانکنوت.

نوت: رئیس جمهور میتواند جلسه فوق العاده کابینه در امور حیاتی و مهم ملی که در چوکات اجرا آت روزمره عادی کشور نمی گنجد دائر کند.

## صلاحیت های صدر اعظم:

۷: صدر اعظم وکابینه دارای صلاحیت ها و وظایف ذیل میباشد.

الف: وضع و تنفیذ سیاست داخلی و خارجی کشور مطابق به نص و روح این موافقتنامه در حدود قانون.

ب: اداره و سرپرستی از امور وزرات خانه ها وسایر موسسات و ارگانهای اجتماعی و اداری و ایجاد هم آهنگی میان آنها.

ج: اتخاذ تصامیم اجرایی و اداری مطابق به مقررات و سرپرستی از امورو تنفیذ آن.

د: تسوید قوانین، تهیه لوایح ومقررات.

هـ: تنظیم و کنترول بودجه دولت و اتخاذ تدابیر غرض بکار انداختن منابع بخاطر اعمار مجدد اقتصاد کشور و بنیان گذاری سیستم ارزشمند پولی وبانکی کشور.

و: تهیه ونظارت بر تنفیذ پروگرام های اقتصادی اجتماعی و تعلیمی کشور وتاسیس یك مملکت اسلامی متکی بخود.

ز: تحفظ و ارتقای اهداف و مقاصد افغانستان در جوامع بین المللی

و بحث ومناقشه درباره تعهدات خارجی، پروتوکول ها معاهدات بین المللی وتدابیر اقتصادی.

ج: اتخاذ تدابیر غرض تامین صلح وامنیت، تعمیم اخلاق اسلامی و تحکیم انصاف در ادارات توسط ارگان عدلی مستقل و بیطرف.

## ۷ مارچ ۱۹۹۳

اینجینر گلبدین حکمتیار حزب اسلامی افغانستان

صبغت الله مجددی رهبر جبهه نجات ملی

انجینر احمدشاه احمدزی اتحاد اسلامی

آیت الله فاضل وحدت اسلامی

پروفیسور برهان الدین رباني رهبر جمعیت اسلامی و رئیس جمهور جمهوری اسلامی افغانستان

مولوی محمد نبی محمدی رهبر حرکت انقلاب اسلامی

پیر سید احمد گیلانی محاذ ملی

شیخ آصف محسنی حرکت اسلامی

## یادون:

اسلام آباد تړون کې پر نورو سربېره دوه ټکي زما له حافظې سره نښتي:

... د استاد سیاف په مشرۍ اوه گوني اتحاد کې، رسمیاتو او ورځنیو چارو د هجري لمریزې نېټې کارول ناروا وگرځېدل... ځکه خو دفتري چارې هجري قمري نېټو او کلیز ته واړول شوې... پاکستان کې میلادي کلیز دود و، موږ په هجري لمریز روږدي وو...

د نښتو او کليز دغه بدلون بېشمېره دفتري ستونزې رامنځته کړې وې...

اسلام آباد ترون له يوې مخې پر ميلادي نښتو راگرځي...

دويم ټکی د دولت وزيرانو دی چې افغانستان کې يې کومه مخېينه نه ليدل کېږي... د پاکستان د حکومتي او سياسي چوکاټ کاپي ده...



# مصلحینو شورا
# د قصر نظر بندي
# د استاد سیاف خاورې ایستل

تپلیو اجنداو کې د تنظیمو ښکېلتیا، د گاونډیو، سیمې او نړیوالو د گټو او موخو سیالي رامنځ ته کړه... مهاجرت کې د ملي جوړښتو او ارزښتونو اډانه وزیانېده، پردې پالنه دود او مود شوه، د شوروي تیري پر وړاندې د افغانانو د آزادۍ غوښتنې جگړه د بهرنیو اړخونو استازیتوب ته پاتې شوه... مهاجرت کې له کرښې اخوا پښتنو ملتپالو له افغان کډوالو په څنگ نیولو د پنجاب ایډیالوژي ته مخه پرانیسته...

افغانستان کې د افغانانو په وینه پردۍ جگړه توده او د افغانانو سرښندنې هایي جیک شوې...

څکه خو د شوروي عسکرو په وتلو سوله رامنځ ته نشوه... جگړې دوام وموند، جهاد د پردیو موخو تحقق ته استخدام شو... جگړه یواځې د جنگیالیو د وینې او سرونو د قربانۍ تر بریده افغاني ده... د جگړې اهداف، پایلې او برخلیک د افغانانو له واکه وتلې...

دلته وه، چې پر بهرنیو اړخونو تکیه ټاکونکې شوه... گاونډیو او باندنیو باید د افغانانو د سرښندنو پایلې او پای ټاکلی وای...

تنظیمونه د ګاونډیو او بهرنیانو په مینه کې دومره ډوب شول، چې د خپلولی پر ځای پردیتوب ته په ورماتېدو یې د پردې پالنې مسابقه رامنځ ته کړه، د کنفدریشن غږ پورته او د ځانګړي بلاک غوښتنه رامنځ ته شوه... کابل کې تنظیمي جګړې له همدې روحیې وغزېدې، چې د پرېکړو نیت، حقیقت او صلاحیت افغاني نه و....

ځکه خو چهلستون کې د افغاني جرګې اواري پاموور ونه بلل شو... د چند تانک غورازه نوم یې ورکړ خو د ترکي الفیصل، اعجاز الحق او جنرال حمید ګل پر وړاندې په ګونډو شول بګرامیو کې یې پرې له خپل اړخه د سولې ناکام تړون لاسلیک کړ...

مولوي محمدشاه فضلي د حرکت لخوا د سترې محکمې لاس کتوی رئیس د برهان الدین رباني د واک موده وغزوله... یوه بله خندنۍ ډرامه یو بل کامیډین ډېره پیکه تمثیل کړه... خو دغه کومیډي داسې تراژیدي رامنځ ته کړه، چې د غمیزو په نه ختمېدونکي لړۍ منتج شوه...

یو بل کاواکه ګام د حل او عقد په نوم پورته شو... داسې یوه رسوايي چې مجاهدین یې د اسلام آباد په رسوایو واړول...رسوايي په رسوايي... ترهغې چې جلال آباد کې یو ځل بیا د افغاني جرګې تغر وغوړول شو...

د استاد رباني له دې دریځ سره چې د حل او عقد لخوا دده پر ټاکنه، نور د سولې او منځګړیتوب اړتیا او جواز نشي لیدل کېدای، مولوی حقاني کابل پرېښود.

میرانشا ته په رسېدو حقاني صاحب B.B.C ته وویل... ماله پیله "کابینه" کې برخه نه ده اخیستې، په دې هځو او انتظار چې دا حکومت یو افغان حکومت شي، ملي اسلامي حکومت شي، له تنظیمي او سمتي

حلقې راووځي، او له خپل ترلي ائتلاف څان خلاص کړي...

ده زياته کړه... له بده بخته دا يو ائتلافي حکومت دی، دا د يوه تنظيم مانا جمعيت حکومت دی، دا يو سمتي حکومت دی، ځکه خو مې دغه حکومت کې برخه نه ده اخيستې... ترهغې چې يو نماينده حکومت نه وي جوړ شو دغسې حکومت کې برخه نشم اخيستی...

د نماينده حکومت په اړه د پوښتنې ځواب کې حقاني صاحب وويل: تېر کال ددې چانس برابر شو چې د گيلاني صاحب او مولوی خالص تر څارنې لاندې انتخابات وشي، خو رباني او مسعود مخالفت وکړ... اوس هم که ربښتينی آزاد انتخابات وشي يو چانس شته خو که د پيسو شورا جوړه شي لکه حل او عقد، بيا زه په داسې حکومت کې نه يم...

څه موده وروسته ډاکتر فاروق اعظم د مصلحينو شورا په نامه د روغې جوړې درېدلي فعاليتونه وغزول، ډاکتر اعظم ۳۱/۱۳۷۲/۱ تنظيمي مشران يو مناسب ځای کې گډې غونډې ته په بللو، جگړه کې ښکېلو غاړو د اوربند غوښتنه وکړه، تر ۱۳۷۲/۲/۳۱ ټولو مشرانو د مصلحينو شورا د بلنليک منلو ډاډ ورکړ... هغه و چې ۱۳۷۲/۲/۱۰ نېټه يې د ننگرهار شورا په مټ مشران جلال اباد کې راټول کړل... له دې وړاندې ننگرهار شورا د سولې يو بل جدي گام پورته کړی و... شورا جگړه کې ښکېلو غاړو ته گوابښ وکړ که هرې غاړې د دوی اوربند و نه مانه پرضد به يې له بلې غاړې سره ودرېږي، لومړی حکمتيار او بيا رباني خپله موافقه اعلان کړه، په دې توگه د ننگرهار شورا ځواکونه په ختيځ استقامت د دوی ترمنځ ځای پر ځای او يوه موده اوربند ټينگ و...

حاجي عبدالقدير د جلال آباد قصر پرانيست... لومړی غونډه کې يې ورته په ډاگه کړه، چې پر حکومت او نظام له توافق پرته له قصر

نشي وتلی... دا په حقیقت کې د حاجي قدیر لخوا د دوی د نظربندی اعلان و...

حاجي قدیر وویل: د طرحې او جوړ جاړي پر ځرنگوالي موږ پر تاسې زور او فشار نه راوړو... په دې اړه زموږ کوم شرط نشته، کوم ځانگړی ماډل او فورمول نه لرو... خو له توافق پرته مو نه پرېږدو... په ډاگه یې وایم چې له دې ځای څخه نشي وتلی... دا که بندیتوب گڼي که نظربندي ستاسې خوښه، خو تاسې زموږ درانه مشران یاست، موږ ستاسې عزت کوو...

له قصر د باندې د مشرانو اړیکې قطع کړای شوې... یواځې یوه باډیگارډ اجازه لرله له دوی سره قصر کې واوسي...

شیخ آصف محسني پر پنځمه ورځ له قصره په وتو، توانېدلی و، خو پر دویم زنځیر یې راوگرځاوه...

د جوړ جاړي په مخه کې یو ستر خنډ دفاع وزارت پر چوکۍ د احمدشاه مسعود پاتېدل و، چې د اسلام آباد تړون د پلې کېدا مخه یې ډب کړې وه...

ډاکتر اعظم خپل معیوبان راټول کړل، قصر یې کلابند دی... وایي له توافق پرته مشران له قصره نشي وتلی...

استاد رباني وارخطا او تلولی دی... په گرانه د قصر بڼ ته راوځي... غونډو ناستو کې دېرې پټه خوله وي... له دې پرته یې ځان خپله کوټه کې بندي کړی... یوه اوونۍ ووته، څه پرمختگ ونشو...

استاد سیاف پخپل مهارت ډاکتر اعظم، حاجي قدیر... قانع کړل، چې رباني د کومې پرېکړې واک او زړه نشي لرلی، ددې لپاره چې وخت له لاسه نه وي وتلی ښه به وي مسعود خپله غونډې ته راولو او یا یې

لیکلي توافق تر لاسه کړو... که ده ته د تلو اجازه ورکړل شي، مسعود به جلال آباد ته له ځان سره راولي...

استاد سیاف کابل ته د تلو مخه ومونده، ډاکتر اعظم هم ورسره روان شو، د لارې مجلس دوستانه و... استاد سیاف د زړه خبره خولې ته نه ده راپورته کړې... د باغ بالا مانۍ ته په گرځېدو د نیت نښې په څېره را دبره شوې...

د خبرو تون او لهجه واوښته ټکي زېږه، ستغ او لواړ شول... مانۍ ته په ننوتو د امیر عبدالرحمن خان روح غزونې وکړې... استاد پر ځان راخپور پوست ووت... د تمسخر او برترۍ په گډ انداز یې ډاکتر اعظم ته خپله پرېکړه اعلان کړه، ډاکتره! ته پوهېږې چې حاجي قدیر، عبدالحق، دین محمد د انگلیس په مټ د رهبرانو د وژلو توطئه جوړه کړې، دوی له پلرونو، نیکونو د انگلیس اجنټان دي، د ډاکتر برایډن له وختو یې له انگلیس سره مراوده وه، چې روغ یې جلال اباد ته رسولی و...

زما مکلفیت دی دا توطئه شنډه کړم... ځکه خو جلال آباد ته نه ځم...

استاد سیاف، احمدشاه مسعود ته هم کابل کې د پښو ټینگولو پیغام ولېږه... ډاکتر اعظم هک پک ودرېد... ده پخپل رنگ کې کوټ خوړلی و... صد لغمانی یک پغماني... عذر، ننواتې گټه ونکړه، په ډېر عجز یې له سیاف غوندې ته د خپل استازي لېږلو غوښتنه وکړه، استاد سیاف ورته کړه... دا ځواني درسره کوم... ښېنوا دې نه پرېږدم، حاجي دوران یې د خپلې ځوانۍ په توگه ورمعرفي کړ...

کابل کې د استاد سیاف له پاتې کېدو د قصر کلابندي وزیانېده، حاجي قدیر او ډاکتر اعظم د ختې د پوزې په جوړولو اړ شول.

جلال آباد تړون د تورو، ټکو په بڼه ترتیب او پر لاسلیکونو منظور شو رباني جوړه شوې غونډه کې هغه تاریخي کارنامه وبلله، شاعرانه خبرې یې کتار کړې، عاطفي او زړه سواند اکټونه یې اجرا کړل...

حکمتیار تړون ته د تاریخي موافقتنامې نوم ورکړ، خلکو ته یې په خطاب کې وویل: تاسې پر دغه توافق شاهد او گواه اوسئ... خو نه تنظیمي مشران د خپلو ژمنو او لوړو پاس وساتی او نه یې د خلکو گواهي پاموړ وبلله، د جمهور رئیس او صدر اعظم ترمنځ ناباوري، د جنگ لمبې هماغسې ژبغړانده ساتي.

د تړون له مخې ظاهراً رباني د ۱۸میاشتو لپاره جمهور رئیس او حکمتیار صدر اعظم شو. صدر اعظم کابینه اعلان کړه، خو ده نشوای کولای د صدارت مانۍ کې کار پیل کړي، ځکه خو یې چهار اسیا کې د صدارت موقت دفتر اعلان کړ، حکمتیار یو ځل پرېکړه وکړه دارالامان مانۍ د صدارت دفتر لپاره چې حزب وحدت له جنرال مؤمن نیولې ورغوي، خو دا کار یې نیمگړی پرېښود، قطب اَلدین هلال د صدر اعظم د مرستیال په توگه د صدارت عنعنوي مانۍ کې خپل دفتر پرانیست، خو دده لاسلیک د نظار شورا د مزاج مخالف مکتوب کې نشوی چلېدای، صدر اعظم به چې کوم امر او حکم ورکړ، جمهور رئیس به په جلا فرمان ویتو کړ، د راډیو تلویزون رئیس چې صدر اعظم له دندې گوښه کړ، جمهور رئیس د وظیفې د دوام فرمان ورکړ...

احمدشاه مسعود هماغسې ځواکمن پوځي واکمن دی، چې پر دفاع وزارت او جنگي ماشین بشپړ کنټرول لري، دفاع وزارت یې جبل السراج ته ولېرداوه، که زړه یې شو حکمتیار به له جبل السراج همداسې ډزوي لکه دی یې چې ډزاوه، مسعود لگیا دی فرقې، غونډونه

منظور وي، پوځي چارواکي افسران ټاکي دده له خوښې پرته دفاع وزارت کې پاته هم باد نشواى ښورولی، يواځې دفاع وزارت نه ټوله ملکي او پوځي اداره او بودجه دده واک کې ده، د دفاع وزارت له چوکۍ دده په ظاهري ليرې کېدو او کميسيون په رامنځ ته کېدا دده واکمني چا نشواى ننگولی...

د صدر اعظم ټلويزيون او چاپي خپرونو جمهور رئيس پسې او د جمهور رئيس مطبوعاتو د صدر اعظم پر ضد د تبليغاتو او پرو پاگند باړونه چلوي شهادت يوه گڼه کې په غټو تورو کښلي: د اسلامي حکومت صدر اعظم ورور حکمتيار او د ائتلافي دولت مشر برهان الدين رباني... لکه د دولت صدارت اسلامي، خو جمهوري رياست ائتلافي يا غير اسلامي دی.

کله چې حکمتيار پاکستان سعودي او ايران ته د صدر اعظم په توگه د کابينې ځينې غړو سره سفر وکړ د جمعيت مجاهد جريدې هغه د حکمتيار شخصي سفر وباله. د مجاهد دغه ټکي حکمتيار دومره عصبي کړ، چې يوه غونډه کې يې وويل: نه پوهېږو د سفر لپاره له مجاهد جريدې اجازه واخيستل شي يا له نظار شورا...؟

د حکمتيار د سفر پرمهال پاکستان کې د هرکلي مراسمو کې يوه ستونزه د ملي سرود وه.

دا خبره راپورته شوه، چې ملي سرود دې په کومه ژبه وي، غږ شو، دري. د مهاجرينو ستنېدونکو وزير فاروق اعظم له غبرگون سره د حزب مهاجر زاد وړانديز وکړ په عربي... له دې سره ډاکتر اعظم: وويل په روسي، خو چې پښتو نه وي... جمعيت يوه اوږده جهادي ترانه، چې د ملي سرود وزن آهنگ، محتوی او مفهوم نشي وړاندې کولای، ملي

سرود گاڼه... بیرغ او ملي سرود د کودتاګانو او حکومتونو په اوښتو نشي بدلېدای، ملي سرود او بیرغ ثابت ملي سمبولونه دي، درې رنګه ملي بیرغ هغه چې د لومړي ټولګي کتاب کې لوستې ترانه یې تر اوسه حافظو کې ده...

تور او سور یې هم زرغون
ډېر یې ګران پر هر پښتون
ستا محراب منبر نښان
لوړ دې وي پر ټول جهان
تابه ساتو په ښه شان
اې بیرغه د افغان

## ملي سرود

څو چې دا ځمکه اسمان وي
څو چې دا جهان ودان وي
څو چې ژوند په دې جهان وي
څو چې پاتې یو افغان وي
تل به دا افغانستان وي
تل دې وي افغان ملت
تل دې وي جمهوریت
تل دې وي ملي وحدت
تل دې وي افغان ملت  جمهوریت
ملي وحدت، ملي وحدت

# جلال اباد ترون

جلال اباد ترون په حقیقت کې د اسلام آباد ترون د پلې کېدا یو ډول توثیق او ټینګتیا ده، ځرنګه چې اسلام آباد ترون بشپړ تطبیق نشو، جګړو دوام وموند ځکه خو جلال آباد کې د مصلحینو شورا په نوښت د ننګرهار شورا په مټ جهادي مشران راغونډ او یوه بل ترون ته مجبور کړای شول.

ددغه ترون له مخې که څه هم دفاع او کورنیو چارو وزارتونو چارې باید کمیسیون ته سپارل شوې وای، خو مسعود هماغسې په جنګي او دفاعي اړخ واکمن دی، له همدې ځایه دغه ترون هم د جګړو مخه ډب نشوی کړای، ددغه ترون غټ ټکی په لاندې توګه ښوول کېدای شي.

## پریکړه:

- افغانستان کې د اسلامي نظام ټينګول
- د جهادي رهبرانو قوماندانانو او پوهو کسانو په شمول عالي شورا جوړېدل
- ټول هيواد کې د جنګ بندول او د لارو خلاصول
-د دفاع، داخله، خارجه ماليه او اطلاعاتو کلتور وزراتونو د کميسيونو فعالول
- ټول هېواد کې د يوه ملي اسلامي اردو جوړول
- د ملي امنيت په تشکيل او وظايفو تجديد نظر کول
- د مشرانو تر منځ د ۱۹۹۳ ميلادي کال د مارچ ۷مې فيصلې د هغو موادو تطبيق کوم، چې په اوسني تړون کې شامل دي.

ددغه تړون څخه د نظارت په منظور دوه دوه تنه جهادي قوماندانان راټولول، ددغه کار د سرته رسولو لپاره يو کمېسيون وټاکل شو په کوم کې چې له هر تنظيم څخه يو يو نماينده او دوه تنه مصلحين برخه لري، نوموړی کمېسيون به د خپل کار لايحه ترتيب او تر خپل اشراف لاندې هغه تطبيق کوي، که چېرې کمېسيون ونکړای شي، په ټاکل شويو دوو مياشتو کې ورسپارل شوی کار سرته ورسوي موضوع عالي شورا ته محول کيږي.

د پورته دوو مياشتو په موده کې ددفاع وزارت سرپرستي محترم جمهوررئيس او د کورنيو چارو د وزارت سرپرستي محترم صدر اعظم کوي.

دواړه د دفاع او کورنيو چارو وزارتونه د احزابو له نمايندګانو څخه

جوړ شوی باصلاحیته کمېسیونونه لري.

د انتخاباتو کمېسیون د اسلام آباد تړون مطابق ژر په کار پیل کوي.

۸- دجهادي مشرانو د اکثریت په خوښه او د جمهور رئیس په منظورۍ، د نولس غړو کابینې جوړول... چې اعلان به یې وروسته وشي، نور غړي به یې پخپل وخت تعین او اعلانیږي، عجالتاً معینان د کارو سرپرستي کوي...

پر تړون د مصلحینو شورا مشر ډاکتر فاروق اعظم د ناظر په توګه او کریم خلیلي، حاجي دوران، انجنیر حکمتیار، حاجي دین محمد، شیخ اصف محسني، پیر سیداحمد ګیلاني، لاسلیکونه کړي البته استاد رباني خپل لاسلیک سره کښلي: در خلال دو ماه انتخاب دو دو نفر قوماندانان از ولایات بصورت حتمي بعمل آید...



# درس که فرش...؟

داسې نظام او حکومت چا لیدلی چې صدر اعظم او جمهور رئیس یې د یو بل پر ضد توده جګړه بوخت وي...؟

د یو بل تر واک لاندې سیمې بمباروي، په توغندیو یې ولي، توپونه یې ورته چو کړي وي، د یو بل سیمو ته یې د ننوتو لارې پرمخ تړلې وې...؟

ددغه نظام صدر اعظم چهار اسیا کې دی، جمهور رئیس ارګ کې، دواړه د اسلامي نظام د ټینګښت پر ژمنو لګیا دي، دواړه د اسلامي حکومت غوښتونکي او مدعیان دي... دواړه د یو بل پر ضد جګړه لګیا دي... هر یو خپل وژل شوی شهید ګڼي... د بل هغه مردار...؟

د جمهور رئیس او صدر اعظم ترمنځ د مورک او پیشو غزېدلې لوبه پر اسلام اباد او جلال اباد سربېره کلای حیدر کې هم توده کړای شوه، خپلو امپراتوریو ته نه وو رسېدلي، چې د یو بل پر ضد یې توپونه وغوړمبول یو ځل بیا د صدر اعظم او جمهور رئیس ترمنځ جګړه کې ځوانې خاورې شوې، کورونه ونړېدل، چور ګډ شو، عفتونه لوټ شول...

سره له دې چې د پردیو په ګټه د واک غزېدلې جګړه ژبې قوم او مذهب ته ورواړول شوه، خو له ښه بخته له کابله ونه وتله، د قوم، ژبې او مذهب جګړه یې ونشوای ګرځولی... دغه کوټه سیکه ونه چلېده.

یوازې قوم لیډر نشي رامنځ ته کولای، لیډر څه چې حکومت به هم ټینګ نکړای شي، دې ته د خان، ملک، بای، کلانتر او خوجه ئین په کچه

کتل کېدای شي...

لیډر له ملت سره پیلی وي... د قوم له احساساتو سره په لوبېدو د لیډري او حکومت خوب ته تعبیر نشي موندل کېدای، ملت ته په سپکه کې د قوم قوت نشي پاتېدای... قومونه په واحد ملت کې درانه اوسېدای شي... د ملي مشرتابه له ظرفیت په بې برخې کېدو د قوم، ژبې او مذهب په نامه د فتنو رامنځ ته کولو انګېزه یواځې د واک جګړه غړولی شي... قوم او ډلو کله هم د ملت پر ضد جګړه نه ده ګټلې...

چا چې افغانستان کې د قومو د حقونو په پلمه جګړو ته مخه ورکړې، هغوی قومونه د خپلو ځاني موخو ترلاسه کولو ته استخدام کړي، د خپلو ګټو لپاره یې د خپلو قومونو وینې تلې کړې.

د پېښور مهاجرت، بېوطنی او دربدرۍ کې استاد رباني ته د لیډر او متفکر په سترګه کتل کېدل، چې د قوم پر ځای یې د ملت خبره پر خوله وه... د هېواد آزادۍ ته یې ځان ژمن باله...

خو دا وخت هېواد کې، واک او ارګ کې سړي ته خوار، ذلیل او حقیر بریښي... چې ملت یې ځان سره ونشوای درولی، پر خلکو یې بله جګړه وتپله، د لوی ملت پر ځای یې د قوم ځنګ ونیو... جمعیت اسلامي، د نظار شورا د جنګیالیو وړه ډله شوه...

دلته ولسمشر له خپل صدر اعظم په وېره کې اوسي... ملي اشتراک خپل واک او ځواک ته ګواښ ګڼي... د دولت او حکومت له اړیکو مسخره جوړه شي.

د کابینې غونډې چهار اسیا کې جوړېږي، خو تر چهار اسیا د وزیرانو رسېدل آسانه نه دي.

د نظار شورا له پاتکونو روغ تېرېدل د نصیبونو خبره ده...

د کابينې او صدر اعظم د غونډو پرېکړو، خبر د نظار شورا تر ولکې لاندې مطبوعات نه خپروي.

د پرېکړو د پلې کېدا مخه يې دې ده چې احمدشاه مسعود پخپل ځانګړي حکم د واره ويتو کړې وي.

د صدر اعظم امر له چهار اسيا نه وي وتلی چې د بطلان حکم يې ابلاغ شوی وي.

کابل کې حزبيان در په در ګرځي... د حکمتيار امرونه احکام په ادارو ګرځوي څوک يې کيسه کې نه دي.

هغه حزبيان چې له بريتو يې وينې څڅېدې سرکاري هوټلونو کې لوبيا، دالو ته ناست دي... پلوونه چرګان يواځې د نظار شورا د مينيو لړليک کې موندل کېدای شي... يوه هوټل کې دوې مينيوګانې، دوه ډوله ډوډۍ...

دلـــته پلوونه دي، هلته سوکړکان زموږ
دا پښتونستان زموږ دا پښتونستان زموږ

يوه ستومانه حزبي په مات زړه ويل... دا هر څه د انجنير صاحب له لاسه، ده په دغسې ذلت او رسوايي اړولي يوو...؟

د چهار شنبې ورځ چهار اسيا کې د کابينې غونډه ده... د وزيرانو وړوکې قافله تلو ته چمتو شوه...

قافله د صدارت دويم مرستيال او حج او قافو وزير مولوی ارسلا رحماني په مشرۍ وخوځېده... شاته يې په وسلو سمبال باډيګارډانو له سترګو د غضب لمبې ختې...

دويم لنډکروزر د قاضي وقاد دی... ساتونکي يې له ډېر زوره شنېدل

وریسې حاجي دین محمداو ...

پای کې د ډاکټر فاروق اعظم له باډیګارډانو تش خیرن سوزوکی، مولوی ارسلا له وړاندې دډاکټر صاحب د سوزوکي وروسته کېدو اشاره ورکړې، چې دغسې زوړ غورازه موټر يې د لنډکروزرو د کاروان رنګ بدې ګانه...

چهار اسیا ته تګ داسې دی لکه د تورخم دروازې په تېرل کېدو چې ډېره موده وزیران د خرو، کچرو، اوښانو په لارو له کرښې خپلو کورو ته اوښتل... له دې هم ګران او کړاوجن...

پر همدغسې سختو، اوږدو او کږو وږو لارو دغه سفر لنډېدی شوای...

د وزیرانو کاروان له کابل، پلچرخي له هغې بګرامیو، کمریو، بني حصار، چهار اسیا ته اوښتی شوای...

پلچرخي ته په نژدې کېدو له حربي پوهنتون سره د نظار شورا جنګیالیو وزیر صاحبان دریش کړل...

باډیګارډانو چې تر دې دمه يې سترګو کې اور ګرځاوه، د واره خپلې وسلې کېښوې، وزیران له موټرو د کوزېدو په قومانده سمدستي بېله کومې خبرې او پوښتنې کښته شول...

باډیګارډانو دواړه لاسونه پورته نیولي...

وزیران يې د حربي پوهنتون یوه نرېدلي تولګي کې لکه لوست ته کتار کړل.

نیم ساعت وروسته د نظار شورا برګه دریشي کې د اتلسو، شلو کالو ژنی راغی د وزیرانو پر وړاندې لکه فاتح سپه سالار ودرېد... لکه د دښمن اسیرانو ته چې ولاړ وي...

وايي... تاسې محترم شخصيتونه ياست که چا درنه ساعتونه پيسې اخيستې يا بل تکليف و، ماته وايي...

دباندې شور او غالمغال دی د نظار شورا دوه تنه خپلو ملګرو را ايسار کړي... وايي بايد برايشان درس داده شود... له مخابرې يو نرۍ غږ پورته شو درس... نه فرش...؟



# لاسلیکونه- انځورونه...؟

د کب ۱۷ مه یوه بله سره او چیچلې ورځ، له سرې سیلۍ سره تودې ګولۍ... بې څنډ او دمې غورمبي...

جګړه د چا پر ضد...؟ د خپلو خلکو د ځپلو جنګ، د خپل هېواد د فتحه کولو هوس... د یو بل وژلو مسابقه...؟

مخابرې بوختې، اړیکې جړ دي... له ډېرو چیغو د عبدالعزیز غږ ناست دی.

برخېر مهال له عبدالعزیز سره یوه شېبه کېناستم درک یې نشوای لګولی... دا چې جګړه پر کوم استقامت د چا لخوا غزېدلې، څوک وراندې تللي، چا په اصطلاح تاکتیکي په شاتګ کړی...؟ څومره زیانونه رامنځ ته شوي...؟

په نه زړه راته وایي درک نه لګیږي... خبرو ته یې زړه نه دی... را ولاړشوم لکه ټول د ځان پر ضد جګړه کې بوخت دي، ځانونه وژني، ځکه خو د چا د پرمختګ او په شا تګ، ماتې او سوبې پته نشوی لګېدای... رښتیا دغسې جګړې څوک نشي ګټلای... روسانو بایلله... مجاهدینو ونه ګټله دلته یې دواړه بایلي... بل ګټونکی راوځي...

وایي هره غاړه د خپلو کړښو د اکمال لپاره (۲۴) ساعتو کې له یو نیم لک زیات ډالر ښندي.

دومره لګښت له کومې راځي... د پردیو جګړو یو تریخ حقیقت...؟

لکه د حقاني صاحب زړه ته هم نهیلی لارې موندلې... ښه شوه که د

دغو وړيو له شړي کېدو لاس واخلي...

لاندې د سیند په نمجنه لمن کې د شگو غونډۍ کې لمر ته کېناستم لکه د کلي پیتاو خوړ لگي... اوبو ته گورم په نه زړه په نريو کړو وړو لارو پښه نیولی پل اخلي...

کاغذونه مې راوایستل... ځینې یادښتونه مې په هغسې بېړه کښلي چې اوس یې خپله نشم لوستی... د ځینو ټکو نښې کودونه رانه گډ وډ دي، که داسې ده بیا د یادښتونو څه گټه...؟

د ځینو په لوستو چې وتوانېدم، په سمو او څرگندو تورو مې وکښل...

تر ډېره مې سره راغونډ کړل...

یخ ونیوم... گوتې مې کرغېچ شوې...

چې کوټې ته راغلم، د غرمې ډوډۍ یې وړه، پیر صاحب کوټې ته له دوو کاسو سره ځغلېده... په زړه کې وایم یوه هماغه و چې شخې وریجې، سپور اوبلن دال...

چې د کوټې په دره یې پښه کېښوه، خوله یې له خوشالۍ جینگه پاتې وه...

کاسې یې کېښوې... یوه کې تور بانجان... بله وریجې...

ډگروال صاحب د واره د بانجانو کاسه پر وریجو واړوله... ما لاس مینځلي وو...

زړ مې له بانجانو خو مړۍ پورته کړې... ډگروال صاحب سره ولړل... وایي داسې نه کیږي...

د ماسپښین لمانځه کې مې حاجي توره باز ځنگ ته ودرېد، د کاغذو غوټه یې تر مخ کېښوه، حاجي تورباز جهاد کې درنه قرباني ورکړې... د

مجددي له تنظيم سره پېيلې، خو د تنظيم کيسه کې نه دی... له استاد سياف سره يې اشنايي ده... دهمزنگ بنديخانه کې يې هره اوونۍ د شمالي په خوږو انگورو نازاوه...

پېښور کې يې تنظيم په تنظيم د يووالي څولی گرځوله... لومړيو کې ښه و، دفترونو، مشرانو ته يې ورپرېښود، وروستيو کې يې له دروازې وړاندې مخه نشوی موندای.

استاد سياف چې د جلا تنظيم هوس واخيست، يو استدلال يې دا و چې اتحاد په زاريو نشي رامنځ ته کېدای... له ځان حاجي توره باز نه جوړوم چې اوس يې څوک دروازو کې هم نه پرېږدي...

دريغه استاد سياف، حاجي توره باز پاتې وای، د خدای پر وړاندې به د حاجي توره باز مقام لوړوي که د استاد سياف... هله به خبر شې چې تالو ژبې له ورشي...

حاجي توره باز د يووالي او اتحاد په اړه د قرآنکريم او نبوي احاديثو په استناد مطالبو راغونډولو بوخت وو، هغه به يې فوتوکاپي او پر کډوالو او تنظيمو وېشل، حقاني صاحب راته ويلې، حاجي توره باز چې څومره غواړي پانې يې ورکاپي کوه...

له حاجي صاحب سره زما پخوانۍ اشنايي وه، چې ده به سل پانې غوښتې ما به يونيم سل ورکاپي کړې.

دا وخت حاجي توره باز له حاجي محمد خان سره کابل کې يوه بله بوختيا هم غوره کړې، د جگړو له امله نړېدليو جوماتو کورو گرځي، د قرآنکريم پانې او سوځېدلې نسخې راټولوي، په گوليو لگېدلې، سوځېدلې پانې نسخې دلته حقاني صاحب ته راوړي، چې يو څه راغونډې شي، موټر ورسره کړي، غره کې يې ښخې کړي...

د محمدخان او حاجي توره باز له پېښوره ملگرتيا ده، دېرى وخت يې تبليغيانو سره اړاوه، حاجي محمد خان، وروستيو کې له ډاکتر نجيب الله سره کابل کې کتلي و، نر غوندې پېښور ته راستون شو، د ځدرانو خبره پته پنا يې نه ويله...

زه خوشال کمزوری نه يم چې به ډار کړم
پــه ښکاره ناري وهم چې خوله يې راکړه

ماترې له ډاکتر نجيب الله سره د ليدو پوښتنه وکړه: ټوله کيسه او ماجرايې له دې قسم سره راته بيان کړه، چې دده ژوند کې به يې لکه يو راز خپله سينه کې پټ ساتم...

چې کله يې وگورم ورته وايم... کله به دې له مرگه اورم چې د سينې کولپ پرانيزم... راته وايي ستا وار وړومبی دی...

د فوتو کاپي خبره راغله... څه د حاجي توره باز پانې او دېرې د اتحاد علما او جرگو غونډو پرېکړې... هغه وچې حقاني صاحب د فوتو کاپي ماشين راوغوښت... څرنگه چې ماشين د نوي ماډل و، په فعالېدو يې زما سر نشوی خلاصېدای...

په انجينر پسې گرځېدو، نه مو شوی مونډای... چا د يوه فوتوکاپي والا ادرس راکړ، پيدا مو کړ، خو پلچرخي ته يې د تلو زړه نشوای ټينگولی.

چې اجوره مو ورزياته کړه، له ناز نخرو يې هو کړه، د پک اپ په لېدو لکه بېرته پښېمانه شو، پښه يې ونيوه، خو چاره يې نه وه...

قضا مازيگر مو پلچرخي ته راورساوه... کتلاک ته گوري پر ماشين گوتې وهي سر يې نه خلاصېږي، ايله يې د شپې پر يوه نيمه بجه درک

ویوښت...

د پرېکړو پاڼې یې فوتوکاپي او زه هم ترینګ کړم.

کټ کټ خاندي... وايي د ملا صاحبانو امضا ګانو ته دې کتلي...؟ هغه څنګه...؟

له خندا شین دی... چا له امضا مرغابۍ جوړه کړې، چا لیوه، ګیدړه، لاری موټر، ټوپک او...

چې کتل مې په رښتیا هره امضا یوه انځور ته ورته ده، بېلا بېل انځورونه یې ذهن کې راپورته کول، د چرګ، آس، ټانک، الوتکې...

سهار مو چې رخصتاوه، اجوره مو نوره هم ورغوړه کړه... خوشاله مو ټکسي کې ولېږه.

قضا ماسپښین ډزې کرار شوې، د مازیګر له لمانځه وروسته سړک ته راووتم، چې فلاینګ کوچ مې له څنګه ودرېد...

یو خړ پړ بت مې مخې ته ولاړ دی، له خولې یې شخ ویښتان راوتلي د سر وېښتو او ږیرې فرق یې نه کیږي... د مخ کاسه کې یې یواځې سترګې ځلیږي، تکې شنې وړانګې ښندي، فلاینګ کوچ حرکت وکړ، د سړي څېره کې کوم بدلون نشوی ترسترګو کېدای، شونډې یې ښېرته دي، خوله یې د خندا نه ښکاري، غوښتل مې مخ پر وړاندې ګام واخلم چې له خولې یې د پوچې کنځا ټکي ووتل... مخ مې ور واړاوه، سید عبدالله پاچا دی چې دویمه پلا یې په دغسې ړنګه بنګه څېره ګورم.

په ۱۳۶۵ لمریز کې چې مور دواړه د حج په سرکاري سفر وتلي وو، له جدې یې سیده عزیزیه کې د جمعیت دفتر ته یووړو.

دی ټینګ دی چې عمره کوو... که هرڅو مې ورته ویل لږ ساړه خوره، نن به دمه جوړه کړو، خو دی په غوسه دی، چې حج ته راغلی

يې، عبادت کوې که استراحت...؟

له ناکامه ورسره ولاړم، حرم ته په ننوتو مو بيروبار کې يو بل ورک کړ... له صفا مروا په راوتو دروازو کې دوه درې ژنې ولاړ دي، قيچي گرنگوي، چې لږ سست دې وگوري د واره يې قيچي په وېښتو دربنخه کړې وي.

يو ماته هم راوړاندې شو خو مايې لاس ونيو لږ مخکې مې د نايانو درې، څلور دوکانونه موندل، هورې يې سر را ماشين کړ.

تېر ماسختن چې دفتر ته ولاړم، د پاچا صاحب درک نه و، سهار يې بيا هم پته ونه لگېده، غرمه شوه خو پاچا صاحب ورک دی، له غرمې وروسته يې پر تيلفانه د پاچا صاحب پته راکړه...

زه او استاد واصل نور ورغلو... که گورو د يوه دفتر پر کانکريټ احرام کې غزېدلی، خنگ ته يې شپږ اووه ليمو د اوبو جک او گيلاس ايښي، خوله وچه، رنگ زيړ، ته وايې وچکي نيولی، د سر وېښتو کې يې هغسې لارې جوړې دي، لکه کليو کې چې د ميږو، پسو، د وړيو له پريکولو ليدل کيږي، پوه شوم چې د هماغو چټاقو په لاس ورغلی.

پاچا صاحب مو پر همدغسې بده ورځ دفتر ته ورساوه د فاضل صاحب ورور ته مې چې معرفي کړ، ويل دريغه په دغه بڼه يې نه وای ليدلی...

دادی نن پاچا صاحب له هغې په ځيلې خبره گورم... ورته وايم څه درباندې شوي، دلته څه بلا غواړې، ژر ژر يې پر وچو شونډو ژبه تېره کړه... وايي دده (......) هغسې دغسې زما په نامه يې له استاد رباني پيسې اخيستې، په بده يې وهلې...

چا ويل...؟

شمس...

درواغ وايي، ټوکه به يې کړې وي...

قدردان ويل د ډېرو نورو په نامه يې هم پيسې وړې... ګرېوان يې شلوم، ولا چې مخ ته يې ورتوکړم، پرتوګ يې باسم... په غورو درېو لګيا دی... پر خوله يې څګونه ولاړ دي، شنې سترګې يې داسې خطرناکه شعاوې ښندي چې د سړي له زړه خيژي...

کوټې ته مې په راوستو سملاسي چای ور پوخ کړ، چې دمه يې جوړه شوه، غوسه يې هم نوکې سره شوه...

پر پاچا صاحب مې ټينګار وکړ، چې حقاني صاحب ته يې ياده نکړي... وايي ولې يې ياده نکړم...؟

ورته وايم شرم دې، د ليکوالو رنګ بدی دی... وايي په خدای چې په دغه رنګ بدی دې واړوم...

د ماښام له لمانځه وروسته له حقاني صاحب سره ولاړو، ډوډۍ مو هورې وخوړه، پاچا صاحب له خپلې ناراميې دوه درې واره د ويلو اشاره وکړه، خو ما به خوله جينګه کړه...

کور يې اباد څه يې ونه ويل.

# د ارگ شپه

پاچا صاحب غوښتل پر کابل يې وگرځوم، د سهار له چای وروسته ورسره رهي شوو، چې ټکسي کې مې د تلو ورته وويل شوندې يې وځړېدې، خوابې بده کړه...

ما ورته کړه: مار خوړلی له پړي ويرېږي، له کتار پرته کابل کې موټر سړي ته د سر خطر ولاړولی شي، يو څه قانع شو، خو لکه زړه ته يې پوره نه وي، لوېدلې...

کابل کې ځينو سيمو ته ننوتل منع دي... څېره، قوم، ژبه، تنظيم... درته بلا گرځېدای شي، کومو برخو ته چې د تلو شونتيا وه، څه ټکسي او څه پلې په منډه راتاو شوو...

پاچا صاحب د اباد او سمسور کابل په تېرو يادونو او خاطرو پسې سترگې غړولې، له خاورو ډکې يې موندلې... پر زړه سخت او له کانې کلک سيد عبدالله د کابل په ليدو ټوله ورځ لکه ماشوم په سلگو تېره کړه(........) ترې هېر دي، له ده سره د پيسو پر سر خپرې لگول يې له ياده وتلي...

ډاکتر صاحب فاروق اعظم د کډوالو وزير د ارگ دويم نمبر قصر کې دېره دی، دی يې د کوم تنظيم له سهيمې پرته کابينه کې نيولی چې په هڅو يې د جلال اباد ترون رامنځ ته شوی او يوه توافق گوټي ته يې مخه پرانيستې ده...

پاچا صاحب ته وايم راځه شپه پر ډاکتر صاحب واړوو، څه يې ونه

ویل... خو ارگ ته به ننوځو څنګه...؟

چې ارګ ته ننوتل خورا ګران دی... مور د ارګ شمالي دروازې ته څېرمه یوو، خو له هغې ورځې چې سقاو له ارګ پر دغه دروازه وتلی، بیا نه ده پرانیستل شوې... په کار خو داوه، چې ارګ ته یې د سقاو د ننوتو دروازه ترلې وای، که ګورو دروازه پرانیستې، ګویا هغه دود مات دی...

له غرمې وروسته دوې نیمې بجې دي، چې پر شمالي دروازه وربرابر شو، څلور پنځه بدخشاني زلمي برګو پوځي دریشیو کې له وسلو سره ولاړ دي... زه ترمخ پاچا صاحب راپسې...

له ډاکتر صاحب سره مو دلیدو ورته وویل... له سره تر پښو راته بیا بیا ګوري...

له خولې یې سون نه خیژي، پته خوله راوراندې شو، پر دواړو یې د تلاشي په دود لاسونه تېر کړل، بې له دې چې څه وواېي د تلو مخه راکړه، مور لا لومړی ګام نه و پورته کړی، چې له غرفې یو پنډ جنګیالی راووت، په ترخه غږ یې ودرولو... راوګرځې... مخې ته یې تیارسی ودرېدو... تحقیقات پیل شول...

څوک یاست... د کوم ځای، څه کار کوئ، څه کار لرئ، کارت درسره شته، نور څوک پېژنئ...؟

زمور ځوابونه به یې زړه ته لوېدلي وي، که نه، خو ظاهراً یې ځان داډه او قانع ښوده...

شونډې یې دومره وخوځېدې، چې مور یې غږ نشوی اورېدای، البته د سر اشاره یې د پوهېدا وړ وه، چې مور ته د تلو اجازه پکې نغښتې وه...

لومړی شمېره مانۍ ته په لنډو وروگرځېدو، قاضي صاحب میرزاخان دلیلي مخې ته راغی له روغبړ سره یې نېغ د ډاکتر صاحب کوټې ته بوتلو.

له جوړ پخیر نه وو خلاص چې چای یې راووړ، ډاکتر صاحب لکه له رسمیاتو مجبور وي، ځینې خبرې په لفافه کې، ځینې سترگو کې، ځینې په اشارو کنایو...

هسې هم خبره په پرده کې ښه وي، چې د استاد الفت په وینا نه یواځې خبره بلکې وینا، خطابه ټولو کې د تانیث نښې دي ځکه خوچې څومره پرده کې وي، هومره درنې، پخې او خوږې راځیژي...

ډاکتر صاحب په رسمي چارو بوخت دی... موږ ارگ کې د چکر په خبره ترې راووتو...

له سړک پښه نښې اړولی، ونو، بوټو او شنیلیو ته نشوی ورگرځېدای، چې تر هره ونه، بوټي لاندې د قضایي حاجت انباورنه پراته دي.

پارکونه ټول له دغسې ماینو ډک دي، پل نښې اخیستې، د گرځېدا امکان نشته...

د جنگیالیو شور زوږ گډ دی، یوه بله خوا ځغلي، جیپان، پک اپ، لنډکروزر انگولي چې درځخه تېریږي، د دوړو او خځلو لړې لوخړې پورته شي، سترگې له خاورو در ډکې کړي، سړی له مخ پټولو پرته نشي پاتېدای.

د ارگ خپله دنیا ده، دا نوره ورته لکه دنیاگی داسې ده، دغه دنیا خپلې رنگینې لري، خوله بدرنگینو هم خپله لمن ډکه ساتي، ځکه خو خپله غېږ کې کرکې، نفرتونه، جگړې او دښمنۍ هم پالي... لږ وړاندې له

جنگیالیو په جلا څېرو پنځه شپږ تنه ترهېدلي خو په کرار را روان دي.

ترمنځ یې یوه عمر خوړلی بوډا له ځانه لویه دریشي اغوستې، زړه قرقلي یې تر غوړونو را رسېدلې د نکټایي په نامه یې یوه خړه ریتاړه له غاړې ځړېږي، د بوډا ملگری هم لکه دده همزولي داسې ښکاري... له خپل سن درې برابره زاړه...

دوی ټولو دغسې لوېې او له موده لوېدلي دریشي او د نیکټایو ریتاړې ځړولې، بوډا لکه دوی ته په لیکچر لگیا وي، او دوی لکه د ټولگي نارامه زده کوونکي په بیزار سترگو ورته گوري.

بوډا د خپل لیکچر له اغېزې بې توپیره یوه بله خوا لاسونه غورځوي.
د پاچا صاحب لکه شرارت ته زړه شوی وایي کارتونونه گوره...
ما ورته کړه د خپل وخت لوکسې دریشۍ دی...

- نو له ځانو یې لوېې څرنگه نیولې...؟

- لوېې یې نه دي نیولې، پرې لوېې شوې، خوار ځواکی ځپلي...

- خوار ځواکي یې سرو ته هم ختلي...؟

- خپل وختونه دې لکه له یاده وتلي...

یوه شوو چې د ارگ کارکوونکي دي، چې اوس هم په هماغه شوق او مسوولیت خپلو دندو ته راځي... خو لکه نه پوهیږي له کومې یې پیل کړي، څرنگه یې شروع کړي...؟

زموږ خواته په رسېدو عمر خوړلی بوډا را وړاندې شو، پټه خوله یې د روغبړ غږ پرانیسته پوښتنه کې راته وایي، آغایت خوب است...

دا څوک دی، د اسماعیل شاهد خبره لکه مغزو یې کار پریښی که څه بلا....؟ ټولو د سترې مشې غېږې پرانیستی... پر له پسې د خیرو خیرت تودې پوښتنې پاچا صاحب ته وایي... آغا صاحب خوب آست...

دا سړی لکه پاچا صاحب سره بلد دی...؟

پاچا صاحب هم داسې توده ورسره نیولې لکه له پلار نیکه سره بلد وي...

عمر خوړلي بوډا خپل ملگری د چارو په سپارښتنه رخصت کړل... نه ښه نه بد د ارگ په اړه لگیا شو... از پدر، پدر خدمتگار بودیم...

او گنبد نغاره خانه است... بالا کوتی باغچه...کوتي باغچه مې ذهن کې له موده نقش ده... چې دلته یې سردار عبدالولي بندي ساتئ.

قوماندان گل حسن یې د ساتونکې ډلې مشر و... ده کیسه کوله چې سردار صاحب به کله کله د کوټې باغچې وړه کوټه کې د جنرالي دریشي واغوسته، په هماغه کش وفش به یې کوټه کې قدم واهه، له ځان سره به په خبرو و...

کله د امر او حکم په موډ کې کله لکه لمده پیشو کونج کې غلی...

په سردار صاحب پسې مشهوره ده، چې ویل یې... ځو کاله یې یواځې خولې هم پر افغانستان حکومت چلولی شي، داودخان پسې یې ویلي و مغزش پوده است، د چنگابښ شپږویشتمې کودتا کې یې چې بندي ورته ودراوه، ورته وویل: مغز من پوده است یا ازتو...؟

اورنگزیب چې خپل پلار شاهجهان بندي کړ، څه موده پس یې ځوک ور واستول چې حال یې واخلي... که څه غواړي وربرابر یې کړي...

شاهجهان وویل: هرڅه شته، د آرام او استراحت ټول وسایل موجود دي، که ځو ماشومان راتلی لوست به مې ورته وایه...

اورنگزیب د خپل پلار ددغه خبرې په اورېدو وویل: لایې د پاچاهي هوا له سره نه ده وتلې...؟

ماشومان څکه غواړي چې خپل حکم امر پرې وچلوي... پاڅه کښه

ووایه... زده کړه... ولې... خنګه...؟

کوټې باغچه کې يې نورمحمد تره کې بندي ساتي، همدلته يې پر خوله د بالښت په اېښودو وژلی و...

عمر خوړلی بوډا د کوټې باغچې پر تعمير راته غږېږي... نقشق وډيزاين کوتي باغچه غربي است که توسط اوستاکران و بناهای افغان تعمير گرديده.

البته کوتی لندنی ساخته دست انجينرای انگليس است... که از انگلستان سردار نصرالله خان با خود آورده بود...

ان طرف حرمسرای است... چې کتل مو د پخو پلنو دېوالو دننه بله مانۍ ده... پهلويش قصر شب جمعه... زير اداره غلام بچه رحيم جان پنجشيری... مجالس شبانه مخصوص...

طرف شمال غرب گلخانه است که در وقت اعليحضرت تعمير گرديده، دلکشا درزمان امير شهيد...

داود خان همراه خانواده اش در آن به شهادت رسيد...

منار ساعت (.....) متر طول داره ساخت کمپني انگليس که در کودتای ثور فير اول توپ منار ساعته چپه کد... سلامخانه پيشروی ارگ يک منزله اس لويه جرگه و مراسم عيد و ميلاد...

کتابخانه ارگ خيلی کتاب داشت... چاپی و قلمی و البوم های عکسا و میناتوری رنگه وسياه، سفيد... ظاهرشاه خودش کشيده بود...

ارگ مسجد مجلل دارد از زمان امير عبدالرحمن خان پنج وقت آذان و نماز ادا ميشه...

ده کاسه برجای ارگ بنديارامی انداختند... اطاق جرثقيل بالای دروازه عمومی اس بنديا خطرناک داشت...

رمضان پارسال سلاکوتا درگرفت... نزدیک بود ارگ خاکستر شود...

دده په وینا له ارگ تر ځمکه لاندې لار (تونل) افغانستان بانک ته ختلی د ارگ د خزانو کیلی څلور تونې ده، یوه تونه پادشاه بله خزانه دار بله..... چې سره پتلیز به نشوې کولپ نشوی بېرته کېدای...

خزانه محفوظ است، شو روز می پاله نمی یافه می پاله نیم یافه... یافته نمی تانه... یافتنی نیست.... قصر نمبر دو بعد از کودتای ثور جورشد، نمبر یک نشیمن احمدشاه جان بود دو منزله د شمال غرب ارگ...

پشت گلخانه، د کودتای تنی بمبار شد ویران است... کارش بند اس.

عقب دلکشا و گلخانه تاکوی کنده... خندق... راکتا که میاییه... میدوه، تونل کنده رفت و آمد داره...

در اوایل امی مجاهدین ارگ تقسیم بود، ارگ دربدر و غارت شد... نفرای دوستم بسیار خرابی کد یکطرف عکس وبیرغ دوستم بود طرف دیگه عکس استاد بیرغ سبز وسفید...

په پای کې څرګنده شوه چې عمر خوړلی بوډا نه له ماسره پېژندل نه پاچا صاحب سره...

ارگ په رښتیا بلنداژو، نیولی، مورچې یې کیندلې، له شګو ډکې بوجۍ یې یکې کتار کړې...

جنګیالي د ونو په ړې کولو لګیا دي... لکه پوځي فرقه او چاونۍ...

قضا مازیګر بېرته دویم نمبر مانۍ ته راوګرځېدو، نه برېښنا شته نه اوبه...

په ارگ کې تینګه بې آبي ده...

اوداسه ته مو له یوه خیرن بیلر کوزې ډکې کړې چې همدا اوس یې ټانکر کې ورته راوړې وې...

د قصر مخې ته مو اودسونه وکړل...

ماښام دی ارگ تیاره دی، د ارگ رنگینی لوت دي...

چېرې شمع بلیږي چېرې لمپه، الیکین او یو نیم څای گیس...

د جنراتور غږ هم خیژي...

ډاکتر صاحب ته ډوډی د ارگ له اشپزخانې راځي، د پنځه ویشتو دېرشو کسانو ډوډی حواله ده... پلو، غورمه، سابه، کوک، پیپسي، له تازه مېوې کیلې، منې...

د دسترخوان یو او بل سر کې الیکینونه ایښي... رڼا ته یې د ناستو ولاړو سیوري عجیبه منظرې جوړې کړې، د ډودی اېښودو پر وخت دغه منظرې نورې بوختوونکې ختلې... د شخوند پر وخت پر دېوال د ږیرو ښورېدا ماته د کلي ماشومتوب را یاد کړ، تته رڼا کې د سیورو هغه پتپتوني چې موږ به ورته تږله ورځ په انتظار تېره کړې وه...

نن ارگ پخپل تاریخ کې زموږ له کلي ډېر تیاره دی. هغه ارگ چې اویا کاله وړاندې یې رڼاگانو ته زموږ پر څمکه برېښناکوټ رغولی و، خو تر ډیوه لاندې تیاره وه...

له ډاکتر صاحب سره مو لنډې خبرې وکړې... بنډار نشوی تودېدای رسمیاتو پرې خپل سیوری غورځولی...

له چای وروسته قاضي صاحب یوې کوټې ته بوتلو، چې یو کس پکې د مخه خوبولی و...

دوې توشکې خالي وې، پر یوه زه بله پاچا صاحب وغزېدو...

پاچا صاحب بېرته راکېناست ویل راځه یو څل دباندې ووځو، هسې

نه د شپې په وتو او گرځېدو بندیز لگېدلی وي...

کینې لاس ته له ړنگیو ونو بوټو تېر شوو... پاچا صاحب ته وایم وړاندې مه ځه ماینونه دي...

وايي: بیا به درځخه ښه خلاص شم...

په راگرځېدو مې پاچا صاحب یوځل بیا په هغسې ښه وموند، چې نه دي د ویلو هغه څه چې ما لیدلي دي...

په منډه مې له بیلره کوزه راډکه کړه... خو پر یوه کوزه څه کېدای شوای...؟

درې څلور کوزې مې ورته راوځغلولې... وایم اوس به ښه ځان خلاص کړې...

لوند خیشت بستره کې ولوید...

د سهار له جماعت، ذکر او وظیفو وروسته چای ته راغونډ شوو، (شیدې) شین چای او بېگانی ډوډی...

ډاکتر صاحب لکه خپل دفتر هم ارگ کې لگولی، چې د وزارت دفتر د ملېشو واک کې دی.

له مخه ښې وروروسته پر هماغه دروازه ووتو، چې امیر حبیب الله کلکاني، پرې له ارگه وتلی و...

پر پاچا صاحب بیا د لېونتوب څپه راغله... له ځمکې، ځمکې لگیږي...

نه یې پرېږدم... داسې کوم... هغسې به وکړم...

دی مې د زنبق طلای مخه کې د جمعیت دارالانشاء ته ورخوشي کړ...

ما پر پلچرخي ورمنډه کړه...



د کابل محشر

# مسلمان زړه؛ پښتون تفکر

## ۱۷ فبروري ۱۹۹۴ پنجشنبه

راډيو به دې غوږ ته نيولې وي... چې دلته د شخړو منځ کې هم سړی د جګړو خبرونه له B.B.C اوري... ميرويس جليل بلاکوي له خندا شنه خوله درسره مخامخ شي... دده سترګې، غوږونه، لاس، پښې ټول په خبر پسې لالهانده مومې... ناست تا سره وي لته يې د خبر پيل کړې وي...

ورته وايم: موږ يې له مرګ ژوبلو خورو، چې روزي مو خبر پورې تړلې او خبر... دلته يواځې د مرګ، ژوبلو ورانيو ويجاړيو موندل کېدای شي...

دی وايي خبر، خبر دی، ښه بد نلري...

د میرویس کمال دی که نه افغانستان کې ژورنالیزم یواځې د جګړې هغه نه دی، چې په پام احتیاط ځان وژغورې... زورنالیزم دی... دلته د هر زورور، زور له خبریال خوارکي خیژي، پر لیکوال یې راباندې کړي وي، مطبوعاتو کې یې سره مالوموي... مهاجرت کې چې ګوري د ترور منګولې له ټولو زیاتې د لیکوالو پر مرۍ ښخې وې... چې دلته جنګیالي خدای مني، د خدای نه مني...

میرویس وايي د جګړو خبرونه سخت نه دي، دجګړه مارو ګران دي...

له څو لنډو خبرو پس د ستوکنډو یادونو ته وروګرځو، هغه مهال چې میرویس د ژباړونکي په توګه له بهرنیو خبریالانو سره غټ بکس په شا د غرونو دښتو لالهاند و...

وايي ښه وخت هماغه و، لږ تر لږ د راتلونکي ډاډ خو له سړي سره مل و...

موږهمېشه د تېر ارمانجن اوسو څکه خو له تېرو یادونو خوند اخلو... ظاهرشاه غندو، جمهوریت غواړو، خو چې داودخان راشي، د ظاهرشا ارمان کوو، د ثور کودتا وروسته د داودخان ارمانجن شو، د مجاهدینو له لاسه د ډاکتر نجیب الله...

پاکستان کې مې ډېر د پیرنګي په ارمان لیدلي... هسې نه موږ هم یو وخت د شوروي ارمان وکړو... چې وړاندې هم یې، ویل: خدایه د روس یې کړې...؟

د راډیو ستن د بي بي سي په نښه ولاړه ده، ساعت ته په کتو مې ټک تنې کېکاږله... دا لندن دی... د بېګبین د غږي په غږېدا...

لومړی خبر د غزل بابا امیرحمزه خان شینواری وفات دی... لکه له لاسو پښو مې دمه ختله، آه مې کړه، لکه پر ځیگر مې توده مردکی موښتې وي.

پیر صاحب ځای کې راکېناست... څه خبره ده...؟

دلته به بل څه خبره وي... حمزه بابا په حق ورسېد... ده هم اوف کړ... پر څېره یې د خواشینی نښې خپرې شوې... غلی شو... وړاندې یې د وړوکې کړکی خیرنه هینداره کې سترگې ښخې کړې...

د جنراتور غرهار خوت، راډیو جړ شوه... گل مې کړه او زه د حمزه بابا د یادونو او غزلښ د سوز او خوند نړی کې په سفر ووتم... نه ستړیا نه ستوماني... له غزونې "تریون" بهیر" پري وونی" نوې چپې" نوی پښتون" او... هاچې د بابا د هنر عرش ته په تکیه کېدو دمه شوم، لکه د ټول عمر ستوماني مې وخته...

د پېښور ډېگری کې د بابا مېنې ته تلو... کله رفیع صاحب سره کله صمیم صاحب او غیرت صاحب سره... یوه ورځ داسې نه ده پېښه شوې، چې راته ویل شوي بابا نشته، ویده دی، ناروغ دی، ستومانه دی، چاسره نه گوري...؟

موږ به یې د لاندیني پوړ یوه دنگ بېټک کې کېنولو- پر کټو به مو تکیه نه وه کړې، چې بابا به راورسېد... په صورت زهیر او کمزوری، خو څېره کې یې د ناخوښي هېڅ نښه نشوای لیدل کېدی... له ستړې مشې به خلاص نه وو، چې قهوه به راورسېده... زموږ لپاره ترخه... بوره جلا پیالی کې.. موږ به پیالې ډکې کړې او بابا ته به مو خپلې پوښتنې کتار کړې...

له آل انډیا راډیو، له پښتو فلم، پښتو ډرامې، خدایي خدمتگار

باچاخان، د بابړې پېښې، کيسه خوانی... پښتونستان... دده پر ژوند، لکه تحقيقات لکه پلټنې...

پوښتنې به کله گستاخي ته واوښتې... ستومانوونکی به ختې...

داسې به مو گڼله لکه د دائرة المعارف پاڼې اړوو، المنجد گورو، د هرې پوښتنې ځواب نغد و... لکه د ادبياتو تذکره مو پرانيستې وي...

د مولانا عبدالقادر، سمندرخان سمندر، صنوبر حسين کاکاجي، راحت زاخيلي، عبدالخالق خليق، دوست محمد کامل، قلندر مومند، اجمل خټک او... په اړه به مو پوښتنې کولې... چې کله به لکه د ماشومانو داسې شوې... رباب کې مو کومه نغمه خوښه ده.. ده به کره تېراوال څاخنې...

**خشک و تر و خشک چوب و خشک پوست**
**از کجا می آید این آواز دوست**

له رفيق شينواري به مو غړاوه، له پښتو قوالي...

د عبدالستار شاه پاچا په اړه به مو پوښت، اسلاميه کالجيټ پريښودو خبرې به مو ترې غوښتې، له پښتو لومړني فلم به مو غړاوه...

له جعفرخان اڅکزي سره د يوې اوږدې ليکنی مباحثې په اړه به مو پوښتنې کولې...

دا ډېر په زړه پورې بحث دی، چې څومره يې لولې تنده دې زياتيږي، يو ليک دې چې تنده ماته کړي، بل دې تر هغې زياته تنده واړوي...

جعفرخان اڅکزي يوه ليک کې کاږي... زه د خدای د وجود څخه منکر نه يم، د خدای څخه انکار د خپل ځان انکار گڼم، البته د اقرار صورتونه مختلف دي، تاسې چې څومره ځان د هغه محتاج گڼي، زه

هغومره دی هم دځان محتاج ګنم.

که موږ نه وای، خدای به نه وای، د خدای د عظمت صحیح تفسیر پخپله انسان دی، د خدای ۹۹ نومونه دي سلم يې انسان دی...

له دغسې منطق، تفکر او استدلال سره يې ګزوه... جعفرخان په پوښتنه پسې پوښتنه راپورته کوي، حمزه بابا په سړه سينه ورته ځوابونه کاږي چې انسان د الله تعالی مخلوق دی لکه نور مخلوقات خو پر عقل او شعور له هغو غوره...

د جعفرخان اخکزي له دغه ډول پوښتنو او نظرياتو سره حمزه بابا فتوا نه ده لګولې، عصبي شوی نه دی، کوم تور او پېغور يې نه دی راپورته کړی، ګناهګار يې نه دی پېژندلی...

علم کلام، فلسفې آن ساينس ته يې مخه کړې، په استدلال اوجدل يې بحث غزولی دی.

هغه مهال يې هم زموږ د پوښتنو ځواب کې جعفرخان په درنښت ياداوه، دده په وينا دغسې حالت په سړي راځي زه هم يو وخت له دغسې کيفيت سره مخامخ وم... دلته سړی د تضاداتو ښپو په مخه کړی وي، د يقين واګې يې له لاسه لوېدلي وي...

د صابر صاحب په وينا حمزه پخپله خدای ته رسېدلی، جعفرخان ته خدای ور رسېدلی... منزل يو، لارې جلا...

ما په سياسي او علمي بنډارو او مباحثو کې د زغم دغسې لوړ مثال نه دی ليدلی... د حمزه بابا نظريات په علم او استدلال ولاړ دي، د جعفرخان منطق د سياست او بېلا بېلو ايډيالوژيو تر اغېزې لاندې غزېدلی... د يوه فيلسوف په وينا که عالم خبره کوله منه يې، عمل پرې کوه، خو که د سياستوال وه، ورته ګوره چې د چا خبره ده، جغرافيه يې

کسه، څه وخت، کوم حالت کې یې دا خبره کړې...

د پرې وونی خطاطي اباسین صاحب رضاکارانه په غاړه اخیستی وه، د خپل زړه خپلې سلیقې خطاطي، له خپلو نخرو او ناړامیو ډکه خطاطي... خو حمزه بابا پرې خوا درنه نکړه، دوه ټکي یادونه یې ورسره مل کړه «...کتابت اباسین کړی، چې د اکثرو لوستونکو لپاره به نوی او تر یوه حده گران ښکاره شي، خو ورو، ورور به ورسره اشنا شي... چې څه خاص فرق یې نشته...»

له ټولو زیاته گستاخي زما هغه وه، چې پخپله ماته گوډه شاعري مې له حمزه بابا تقریظ غوښت، ناپوهي وه، ناداني وه... په خدای چې په یاد یې اوس هم له شرمه خولې، خولې شم... زما شاعري همزولو لیکوالو دخپلو تقریظونو وړ نشوای پېژندلی... خو حمزه بابا په مینه او لورېینه مسوده واخیسته، خپل تقریظ کې یې زما شاعري د مولانا حالي مسدس ته ورته بللی...

که څه هم د حمزه بابا تقریظ زما ټکي په ټکي یاد دی، خو له خپلې حافظې نه له اصل یې را اخلم... که ژوند و...

دریغه زه انځورگر وای، کاشکې مجسمې مې کاړلی شوای...

حمزه بابا د پښتو غزل د تشخص فني غورځنگ او هنري انقلاب رامنځ ته کړ، ده غزل کې د ملي احساس د ځایولو لار تېره او له ژوند سره مل کړ، په دې توگه یې د پښتو غزل د فني ښایستونو ټول عناصر پښتنې کړل...

حمزه بابا خپله شاعري کې د افغان ناسیونالیزم جامع تعریف او روښانه تصویر را اخیستی، د افغان ناسیونالیزم اساسات، نخچه او اډانه چې ده څومره څرگنده ساده اوربه وړاندې کړې، هغه افغان

ناسیونالیزم د ملي ایډیالوژۍ په بڼه له وارداتي هغې ډېر ښه بېلولی شي... ده د افغان ناسیونالیزم ځانګړنې په طبیعي بڼه په داسې سیاسي چوکاټ کې راټولې کړې، چې د افغانیت روح او دیني اعتقادات یې د ملي سیاست او ولسواکي فلسفه ګرځولې... ځکه خو موږ ښایي افغان نالسیونالیزم د حمزه بابا له فني تجلیاتو استنباط اور او باسو... که موږ اصیل افغان ناسیونالیزم غواړو له ټولو ځرګند یې دحمزه بابا فکر او فن کې موندلی شو:

حمزه بابا مسلمان زړه او پښتون تفکر د افغان ناسیونالیزم سرچینه ګڼي...

چې بې تا چاته ټیټ نه شي ننګیالی، زما ژوندون کړه
زړه زما دې مسلمان وي، تفکر مې د پښتون کړه

ما حمزه ته یثربي باده خاونده
په ښاغلې پیمانه کې د افغان را
ته اسلام او پښتو دوه ګنه زه وایم
خدای هم که انسان وای نو پښتون به و
حمزه سفر که د حجاز وي نو هم
زه د پښتون له قافلو سره ځم
وایي اغیار چې د دوزخ ژبه ده
زه به جنت ته له پښتو سره ځم

اجمل ختک وايي: پښتونولي (خوشال خان ختک) مې وينه، سوسياليزم مغزو او قرآن کريم مې زړه کې دی...

زيات يې مه گڼه له خدای او له رسوله
نوره نشته د وطـــــــن د مينې پوله
(ساقي)



حمزه بابا، استاد رفيع، توريالی ځاځی، عرفان ختک، همېش خليل او شهرت ننگيال

## جهاد هغسې فساد دغسې:

د گلم جم د چور تالان، ميکروب ډېر ژر د کابل تورخم - کابل کندهار او د هېواد نورو لويو او وړو لارو مجاهدينو ته خپور شو، دغه مکروب له مجاهدينو ټوپکيان جوړ کړل، يو پر بل پسې يې د پاټکونو زنځيرونو په بڼه د لوټ تالان نوي او مترقي لړۍ رامخې ته کره، په دې

توګه چور او لوټمار د حکومت او امنیت مسوولینو او د حق لارې مجاهدینو هویت وګرځېد.

پر لویو لارو دغو پاټکو د سوداګرو په مالونو او د مساپرو پر غوټو د محصول او ټکس په پلمه د لوټ تالان محشر جوړ کړی، هر پاټک د یوه جلا حکومت په توګه ځانګړی خو نامعین او نامشخص قواعد لري، د پاټکونو د دغه تور بازار عایداتو د مجاهدینو په نوم د هر ببر سري اشتها پارولې، ځکه خو هره ورځ د دغو پاټکونو شمېر لوړېږي، که ګوري د لارې پر سر نوې خېمې دروي، چې خپلو پاټکونو ته په اصطلاح قانوني حیثیت ورکړي، ځینې لا پکې داسې هم دي، چې له خېمې او کوټنۍ بې نیازه سهار راځي او تر ماښام د موټرو له سپرلیو او ډرېورانو خپل قلنګ ټولوي، تر دې چې د عادي مسافرو پر وړو وړو غوټو هم د محصول لګولو په پلمه خپله شوکه کوي.

یوه تن چې دوه پکولونه ورسره راوړل، د سرکنډو بابا زیارت پاټک د غوټې تالاشۍ کې یو پکول پر سر او موټر ته د تلو قومانده ورکړه، کله چې د غوټې خاوند ډرېور ته وویل، موټر ودروه، چې خپل پکول واخلم، ډرېور ورته وویل: شکر باسه چې په پکول ترې خلاص شو، ورته درېږم ځکه نه چې اول خو ډېر امکان لري، ډز راباندې وکړي او که داسې ونه کړي، نو وهل ټکول، ښکنځل او بې عزتي خو حتمي ده، مهمه دا چې زما خو په دې لار تګ راتګ مجبوري ده، زه بیا له دې ځایه سلامت نه شم تېرېدی، پرېږده یې، د پکول تاوان به زه درکړم.

جګړه مار په خلکو په زور سنګرونه، تونلونه باسي، له مهماتو، وسلو ډکې لارۍ پرې تشوي پوځي توکي تر خپلو مرکزونو، سنګرونو پرې لېږدوي، ددې کار لپاره یې ورسره په ورځو ورځو برمته ساتي.

د ټوپکیانو وحشت او لوټ تالان، د بربریت نوی ریکارډ ټینګ کړ، تازه میوو کې د زهرو له پیچکاریو ګڼ کسان وژل شوي دي...

وړو ټوپکیانو له یوې سیمې ولایت بل ته پیسې تابوتونو کې لېږدولې، دغسې د غونډو فرقو په نامه قوماندانانو ته ورکړل شوې پیسې هم تابوتو کې د ځمکې او هوا له لارې لېږدول کېدې.

د بګرام جلال اباد له هوايي ډګره د وسلو ډکې الوتکې سوډان ته الوځي، دغه وسلې او پوځي مهمات چاته رسیږي، بیه یې څوك ترلاسه کوي...؟

د وسلو دغسې بربنډ قاچاق سوډان حکومت ترلاسه کوي، سړي څه نشي ویلی؟ بګرام هوايي ډګر د احمد شاه مسعود د نظار شورا واك کې دی، له جلال اباد د چا په سلا د قاچاق دغه لړۍ غزېدلې....؟

له سوډان ننګرهار ته اسامه بن لادن د لېږد له راز احمد زيدان پرده پورته کړه، زيدان یو عرب ژورنالیست دی، چې نواز شریف ورته د پاکستان تابعیت ورکړ.

په رښتیا هم د مجاهدینو د پرون پیمانه چې له ویاړونو ډکه ده، ځنګه ممکنه ده، له هغه رسوا او شرمېدلي نن سره پیوندکړای شي، چې مجاهد او جهاد شرم او پېغور ګرځېدلی، له دې څخه دې نتیجې ته رسېږو، چې ووایو جنګ کمال نه دی، جګړه ورانول دي او ورانول ډېر اسانه دي، خو سیاست او حکومتداري هغه کره کاڼي دي، چې له ټولو وروستی ازموینه اخلي، کانکور ازموینه، دغې ازموینې تنظيمي مشران د کانکور ځیلیو هغو په توګه د حشر پر میدان بربنډ ودرول.

له همدې ځایه ده چې د جهاد ویاړمن پرون د نن په بدغوني فساد بدل شو، ځکه خو ویلی شو، جهاد هغسې او فساد دغسې...

## محکوم، مجبور او اسیر کابل:

کابل د دېوانو، پېریانو ښار گرځېدلی، هره شېبه جنگ لکه گڼ سري افسانوي ښامار په واټونو کوڅو گرځي، له خولې یې لمبې راوځي، انسانان په کې نغاړي، ودان کورونه په هدیرو اړوي، د دغه ښامار له زهرو ډکه گېډه مړښت نه پېژني، ښاریان مرگ په خپلو سترگو ویني، خو څه وکړي، چېرې لاړ شي، کوم ځای ځانونه وژغوري.

کابلیان ژاړي، خو د توپونو، توغندیو خولې له کرغېړني او زهرجنې خندا ډکې دي، هغسې د کړس کړس خندا چې نه یې د شپې خولې تولېږي نه د ورځې...

کابل د جگړو لمبو کې سوځي، کله د اوربند په نامه او کله د اوربل، چې یوه سیمه کې د لوټ تالان لپاره څه پاتې نه شي او جگړه مار یوه ناحیه کې ستړي شي، د نوې سیمې او یو څه دمې او استراحت لپاره اوربند رامینځته کړي، بله سیمه کې جگړې او لوټمار ته لاس غځوي.

کابل د جگړو او وحشت لمبو کې سوځي، پر دولتي او عامه ملکیتو د غصب قیامت را تیټ دی، د زور آباد، مجبور آباد په خولو غړېږي...

د ټوپکیانو قوماندانانو په ځان عجیبه نومونه ایښي، پر دغو نومونو ویاړي، شفیع دیوانه، رسول بېخدا، اختر لوچك، مجید گرك، ملا قصاب، مشتاق نافکش منیر شیشه خور، اسد مار خور نصیر مکروب، اکرم دمبه او...

ویرونکو جامو کې یې ځانونه نغښتي، پر یوه پښه کلوشه په بله موزه، یوه پایڅه لنډه، بله اوږده، د سر په کلوښتو ویښتو کې یې گرنټ ځړولي.

د علي اباد "نادرشاه" روغتون کې زموږ يو کليوال بستر و، وحدتيانو ترې سترګې ايستې وې، زماد لومړنى ښوونځي هم صنفي نظر محمد يې په ډېره بېرحمۍ د سترګو ايستلو وروسته وژلى و...

د دولتي بودجې د منظورۍ درک نه لګېږي، چوټ انداز پيسې چاپېږي او وېشل کېږي، شتمن او سوداګر له هېواده وتلي، چې د يوه قوماندان له خوا له اختطاف وروسته پر بل قوماندان پلورل کېدل، دا سوداګري دومره وغوړېده، چې تښتول شوى په خو قوماندانانو لاس په لاس خرڅېده، پخوا مو د سپينو چکو اورېدلي و، ژوندي چکونه مو اوس وليدل.

کابل کې هر يو له مرګ منډې وهي، له جګړې تښتي، خو نه پوهېږي چېرې تښتي، کابل زخمي دی، حسن يې شهيد او موسکا يې تېي ده، افغانستان کې پرونې او بورقې دواړه تار تار دي، دستارونه له سرونو ولوېدل، د حوا د لور ستر مات او عفت لوټ دی، د افغانستان ملالۍ سرتوره ولاړه ده.

کابل کې يوه ټکسي والا پر موږ د پاکستانيانو ګومان وکړ، راته کړه يې، ښه غله او لوټمار مو راته راولېږل...

مسعود بينظير بوټو ته د مبارکۍ او نېکو هيلو پيغام ولېږه... په دې ټکو کې چې د پاکستان ټاکنو کې د بنيادګرايانو، اوپرچونستانو ماته د افغانستان د دولت برى دى...؟ هله به خبر شي، چې تالو ژبې له ورشي...

د بېنظير بوټو په بري د محمد يونس قانوني په مشرۍ د نيکو هيلو يو پلاوی اسلام آباد ته ولاړ، د پاکستان ولسمشر فاروق احمدخان لغاري سره کتنه کې چې ښاغلی لغاري په پښتو د غږېدو وويل: قانوني نه کړه

ویل په انګریزي... لکه قانوني ابو حنیفه مدرسه کې د عربي پر ځای انګریزي لوستې...

د کابل دار المجانین کې له لوږې لېونیان هله مړه شول، چې دوی پسې یې دروازې تړلي او ساتونکي تښتېدلي وو.

په مرنجان غونډۍ تل دې وي استقلال توري پړمخې لوېدلي...

رباني، مسعود دومره فرقې منظورې کړې، چې ولسوالیو، علاقداریو ته هم غځېدلې دي.

د ملګرو ملتو استازي ارماکورا راپور ښیي چې کابل کې ۳٦۰۰۰ کورونه ړنګ شوي، ۳۰۰۰۰ ته زیان اووښتی... (یو نیم لك کورنۍ داخلي جنګو کې بېځایه شوي دي.)

رباني د سرکاري هوټلو د کوټو احکام هم لیکي، بانک ته د پیسو او فرقو د منظورۍ کتابچې ورسره دي درزا درز امرونه ورکوي.

# غله مخونه، د کاڼي زړونه

غوښتل مې د مشرانو خبرې ولولم، چې د زړونو مالک الله تعالی دی...

خبرې مې ولوستې، ځينې په گرانه، ځينې په اسانه... د ځينو کرښې نسخ د ځينو نستعليق...

يوه کې مې هم د دغو مرگونو او مرگانيو پښو په اړه د خواشينی، پښېماني او معذرت کومه کرښه او ټکی ونشوای لوستی...

البته د ځينو خبرو کې د ډار، منافقت، ټگی او ذلت داغونه هومره ژور ليدل کېږي، چې پلاستيکي جراحی هم نشوای پټولی... ځکه خو يې د خبرو کرښو، د خولو له خبرو سره اړخ نشوای لگولی... ته به وايې ډار، منافقت او ټگی يې پر خبره اتڼ گډ کړی...

له عواطفو او جذباتو تشې او کرختې خبرې پر يو ناکام لټون دومره ستومانه چې ژبې، ټکي، توري او وينا نشي ورسره پاللی...

له خولې يو ټکی راوځي، خبره بله خبره کوي... لکه د دوی خپلې خبرې مدعا نه وي، هر ټکی يې له بل په پور اخيستی...

انسان کے بکھرے ہوئی اعضاے بدن دیکھ
تن اور ہے، من اور ہے دل اور ہے زبان اور

خومره چې د نورو غولولو پسې لگېدلی ځانونه يې د دوکې عميقو ځاگانو ته غورځولی... چا کن خودش د چا است.

پر ځان ناباوره پخپلو شکمن، پر ملگرو بدگومانه، ځکه خو يې له خولو څو ژبې راختلې، څو څېرې، نقابونه او ماسکونه يې پر ځان غوړولي... هېڅا يې اصلي څېره ونشوی ليدای... تر نقاب لاندې نقاب، نن يوه څېره سبا بله....؟

نه له جنگ باوري، نه له سولې ډاډمن... جنگ تو صلح، صلح تو جنگ است، من بقربانت اين چه نيرنگ است...

نه ملت ته رښتينی، نه جهاد ته مخلص، نه پر اصولو گروهمن، نه پر ارزښتونو اعتقاد، نه له روغې جرگې پوهه، نه له نرخ کاني خبر... غول په غول سودا...

زما د وطن خلک يې تـميز کولی نه شي
د ځــينو رهبرانو او د غلو مخونه يو دي



ستړی وجـود ستړی همت په مخه ستړی سفر
زړگی یې چوي چې له تا کړي کوم وګړی سفر
(...)

# خدای پامان

د سهار له لمانځه په راګرځېدو ګورم دریوران په موټرانو بوخت دي، څوک د مبلینو ګیچ ته ځیر دي... څوک د تېلو اوبو په برابرولو لګیا دي، څوک ټایرونه ګوري، ځینې سامانونه غوټې تړي... باډیګارډان یوه بله خوا ځغلي، ځینې ببر ولاړ دي...

ښه دي چې څوک وپوښتم خپل کاغذونه مې راټول کړل... پیر صاحب ته مې ویل: لړمه کوچ! که ګورم لړم د مخه لکی پر سر اړولې...

حقاني صاحب ته مې سر وربښکاره کړ، وظیفه کوي... بېرته وګرځېدم...

لکه د کوچیانو کډې باریږي، هماغسې منظره ده، په دې توپیر چې د اوښانو ځای ګاډو موټرو نیولی...

کوټه مې له سره وکته، کاغذونه مې لاسي بکس کې ځای پر ځای کړل، د جامو غوټه مې برابر کړه...

چې راووتم یوه بله خوا له چای جوشو ګیلاسو سره ځغلي، څوک کوټو کې، څوک د باندې یو بل ځای چای ته راغونډ دي...

زما زړه زور نه اخلي، له دیوال سره ولاړ یم راتلونکی ورکه، حال

نشته...
د نامعلوم سفر چمتووالی سړی په همدغسې حیراني او بېحالي اړوي...
ایله مې د لمر وړانگو تودوخه احساس کړه، چې غوړمب شو... گر گر گولی وچلېدې...
د پیر صاحب څېره غوړېدلې... خو زما پر زړه لکه درونډ بار پروت دی... چې له هرځای په لېږد له ما د زړه یوه ټوټه پاتې وي...

ایــک دل کا توکڑے هزار هویں
کویی اُدهر گرا کوئی ادهر گرا

بېلتون خورا گران دی، له یارانو دوستانو او خپلوانو چې جدایي ځومر ځوروونکې ده، دغسې لېږد هم زمولونکی خیژي، څکه خو مخه نسه کې خپل احساسات په سختي کنټرولولی شم.
پیر صاحب د چای وویل... ما ورته کړه پرېږده یې لاره کې به گورو... په حیراني راته گوري...
له خپلو سوچونو او احساساتو سره بوخت یم چې غوړمب شو، د ډزو دندو کار...
بیا به یې دچاد ځوانی گلان ریژولي وی...؟
کابل کې ژوند په همدغسې ډزو کې ساه اخلي، کابلیان د لمبو په سیوري کې د ژوند هیلې پالي، د مرگ په کومي کې په ماتو او زخمي گوتو د ژوند د نغمې شلېدلې تارونه ترنگوي.
حقاني صاحب وظیفه خلاصه کړې... له سلام سره لږ په ډډه کېناستم...

خورا ستړی مې موند... تر اوسه مې دغسې ستومانه، نه ولیدلی...

ورته کړه مې: حاجي صاحب زه په تورخم درځخه ځم...

لنډه یې راپرې کړه ستا خوښه...

زه چوپ شوم.

دی هم نور څه نه وایي.

زه منتظر یم که ووایي... څه وکړه... څه کوو، څنګه یې وکړو...

خو ده هېڅ نه ویل.

زه هم غلی ناست یم.

له ماسره د ویلو ډېرې خبرې وې... خو زړه مې نشوا کړی، ما خپل جرأت بایللی...

ما حقاني صاحب د جګړې لومړیو کرښو، بمباریو او سختو شېبو کې لیدلی، په جرګو مرکو کې ورسره ناست یم له مشرانو، لیډرانو سره مې په تودو او جدي بحثونو لیدلی، د ژورنالستانو سختو پوښتنو سره مخامخ شوی، خو چېرې مې هم دغسې ستومانه او بې حوصلې نه دی موندلی...

پر خونه درنه چوپتیا خپره ده، د علي جان حاجي هم شونډې ګنډلې، خبره یې نیولې او ترینګلې ده...

زه ژر ژر خپل ساعت ته ګورم...

حقاني صاحب وویل: ملګري درسره شته..

ورته وایم داسې څوک نه...

وایي په خیر ولاړ شئ.

زه هم راولاړ شوم... خدای پامان...

مخه ښه...

نه د خرخ درک ولگېد نه د لارې لگښت... حاجي صاحب کله هم ځوک دغسې تش تور نه دي رخصت کړي...

مخه ښه کې به يې د ملگرو له احوال او وضيعت ځان ډاډه او خبر ساتي، چې راووتم مولوي شيرين او عبدالرحيم اخوندزاده هم پر تورخم د تلو تابيا لرله، سره ملگري شو...

علي جان حاجي- پير صاحب تر لاس نيولی، پير صاحب خټ خټ ته کيږي، چې ما ورته د پېښور خبره نه ده کړې...

دواړه زما خواته راغلل... علي جان وايي حاجي صاحب ويل دا خرخ ورکړه... د عبدالرحيم اخوندزاده گاډی ترمخ د مولوی شرين او زموږ هغه ورپسې... مخ په پېښور...

چې پکې ښکلي ياران شته
پېښور تر هـــــر ديار ښه

## غبرگـــون:

مطبوعات نشته رسنيو ته د لاسرسي مخه نه ليدل کېږي، خلکو د اعتراض ځانگړې لار خپله کړې، له ځان سره له جگړو د نفرت اظهار...

د تنظيمو، تنظيمي جگړو او ټوله کې مجاهدينو پر خلاف د کرکې ځرگندولو دا يواځينۍ لار ده، چې د چستانو، ټوکو او سندرو په جولۍ کې پرې خپل غم غلطوي او د انتقام درد ټکوروي، کله يې خپل احتجاج پر دېوال کښلی وي، کله پر کومه پاڼه چې بيا خوله په خوله گرځي...

پکول گو کرد، ريش شبش، لونگي...

هفت خر تان ببريد، يک گاؤ ما را پس دهيد.

یو لاس کښلی پوستر باندې بې "خر مگس" کښلی، شرحه يې د هر تنظيمي مشر له نامه يا تخلص سره پيلي... د ماشومانو د ساتيري کيسو کې يې خپل دردونه او احساسات ځای کړي...

اکو بکو سرسيندکو
روسان لاړل په ترپکو
چې لايق و، د کوتکو
اکو بکو سرسيندکو
نجيب بند شو په ولچکو
پنجابيان شول په چکچکو
دا بې شرمه بې تبلکو
شيخان ټول شول په غومبکو
چې چور گډ شو د چپلکو
بيا حضرت شو صدراعظم
يو دوه مياشتې زيات و کم
ده ويل ځان به کړم محکم
سپور به شم په گلم جم
خو په عقل کې و کم
ځکه سپك شولو په سپکو
اکو بکو سرسيندکو

رباني ونيوو وار
ده کولو دا اقرار
د اسلام يم خدمتگار

د اسلام دې تيکه دار
د غدارو دې غدار
حل و عقد په نوم شورا
جوړه کړه په ناروا
ملت نه و پرې رضا
خو ده وکړه دا گنا
خوار ملت سره جفا
گلبدين شو خبردار
چې څه وکړل دې مکار
ځان يې جنگ ته کړو تيار
بريد يې گډ کړ د ټوپکو
اکو بکو سرسيندکو

پنجابی شو خبردار
ورته راغی په تلوار
دا مضر او فريبکار
ټول يې کينول کتار
ورته ناست و لکه پلار
ورته يې وکړ نصيحت
چې تقسيم به کړم قدرت
د رباني دی رياست
د گلبدين هم صدارت
د هر چا دی خپل قسمت

خپل کوي عيش او عشرت
بيا جنگ مه کوی بچکو
اکو بکو سرسيندکو

په پښتو کې دا متل دی
چې په تول ښه مکمل دی
دا چې غله دي درې رقمه
دا کيسه ده ډېره سمه
دا يوه ته وايي غل
خزانې ته جوړ کړي چل
دا دويم يې دی غل د توس
خر به پټ کړي دا دووس
دا دريم يې دی پير کوسی
وباسي د سترگو کسي.
زه چې گورم دا مشران
دا زموږ ټول ليډران
دا ټول غله دي د چاينکو
اکو بکو سرسيند کو

ډېر گرم نه دي حکيم جان
يې خبر په دې بيان
بيا يې مکې ته کړل روان
د اووه واړه مشران

ورته کښنوده قرآن
د خدای کور کې دا فرمان
وې کړو عهد او پیمان
چې پر یوه لار یوو روان
نه آزار کړو افغانان
نه ځوریږي یتیمان
خو قسم یې کړلو مات
دې خاینو نالایقو
اکو بکو سرسیندکو...

کابلیانو عجیبه خبرې جوړې کړې، واقعیتو ته یې د ټوکواو طنز ژبه ورکړي، وايي: ملګرو ملتو ډاکتر نجیب ته وویل که کومه غوښتنه لري دوی به یې د کابل پر واکمنو ومني...

ډاکتر ورته کړه که راډیو تلویزیون کې د نیم ساعت خبرو وخت راکړي، ملګرو ملتو دده غوښتنه احمدشاه مسعود او رباني ته وړاندې کړه.

ځواب منفي دی، ډاکتر ورته کړه، شل دقیقې، دا هم نشوی کېدای، پنځلس، پنځه... دوی یوه دقیقه هر غوښتنه رد کړی شوای.

ډاکتر د یوې ثانیې غوښتنه وکړه، ملګرو ملتو وپوښت په یوه ثانیه څه کېدای شي...؟

ډاکتر ورته وویل ډېر څه ګوته به ورته لکه کړم چې ټرت...

***

د وريښمين تنگي پر يوه كمر يې كښلي:

قرض ورکړه سياف ته
ضامن ترې گلبدين واخله
راشه بيا مې (.......) واخله

***

قو قو برگ چنار
رهبرا ششته قطار
ميزنه چرس و قمار
كت دالر وكلدار
كاشكى سياف ميبودم
زير لحاف ميبودم
هفت امير پارينه
پگا خوردند خاگينه
ساخته از خون مردم
قصرهاى شاهانه
قوقو برگ چنار
اميرا ششته قطار
ميكنه پيسه شمار
ميزند لاف بيسيار

(بشپړ نه دى)

دغه شعرونه د شبنامو په بڼه ويشل شوي:

ای رهـــبران! ای رهزنـــان اه مـــن و جـــان شـــما
ای خاينـــان فتنـــه جـــو خـــونم بـــدامان شـــما

مــن ملــت وامانـــده ام، افتـــاده ام در بنـــدتان
خــونین بــود اعضـای مـن از جنـگ و پیمان شـما
هســتی مـــن بربــاد رفــت از غــارت و دزدی تــان
اولاده ام آوره گشـــت از طـــرح پنهـــان شـــما
در بند پول و حرص جاه سودا نمود خاک وطن
بهــر عــرب، بهــر عجــم اینســت وجــدان شــما
ای ظالمـان ای قـاتلان خـون میچکـد از جنـگ تـان
ای دلقکـــان بیگانـــه اینســـت دوران شـــما

***

چــرا ظــالم وطــن را بــا فلاکــت مبــتلا کــردی
ز مـیهن لاف سر دادی چـه میگفتـی چیهـا کـردی
تـو میگفتی کـه روزی ایـن وطـن را گلستان سازم
نهـادی پـا بـه مـیهن صـد شر و فتنـه بپـا کـردی
بــه ســاز اجنبــی بــر پــا نمــودی رقــص کشــتن را
بخـــون بیگناهـــان سرخ، دســـتت را حنـــا کـــردی
نــه تــاراج و یغمــا بــردی همــه هســت و بــود ملــت
به خوف از ملت مظلوم و نـه تـرس از خـدا کـردی
دلــت پــر از نفــاق و کینــه در سر شــور بربــادی
علــم بــر کــف شــعار و اعتصــموا ادعــا کــردی
ز اعــمال رذیلــت فرعــون و شــداد حیــا نمــود
خــاین بــه ملــت و مــردم خیانــت بــا خــدا کــردی

( د دوارو نظمونو ډېره برخه د لیکلو نه ده)

مردم کابل زمین
صحنه بچشمت ببین
دشمن تو در کمین
کن نگه واپسین
سوی تو توپان رسید
مردم نادان رسید
قوم مجاهد چه شد؟
رهبر و مرشد چه شد
مردم زاهد چه شد؟
محراب و مسجد چه شد؟
قاتل و دزدان رسید
دشمن افغان رسید
نیست وفادار تو
رهبر ریا کار تو
هست همه خار تو
جمله شده مار تو
پیرو شیطان رسید
گوی پاکستان رسید
چوچه انگریز و هند
صاحب کچکول و کند
نوکر ارباب سند
روز ملنگ و شب رند

صد را میران رسید
( .........) جان رسید

لعل و زمرد چو خاک
تورمل و بیروج پاک
لاجورد با دل چاک
مال ( .....) حکاک
نوکر ایران رسید
خواجه ئین ( ...) رسید
تاجر تر یاک و چرس
پودر ان زود رس
نیست به سود این کشور
بسته به باد هوس
دشمن انسان رسید
( ....) خان رسید
لیدر وهابیت
نوکر اعرابیت
پیرو شدادیت
خون و رگش مادیت
سرخیل دزدان رسید
( ....) بی ایمان رسید
تاجر توپ و تفنگ
خفته بجان چون گرنگ

نوکر ملا شرنگ
شایق گیلاس و بنگ
غر غر و نالان رسید
ملا ( ...) جان رسید
( ...) ریا کار ببین
مسجد و زنار ببین
روبای مکار ببین
دیده خمار ببین
به سر جوشان رسید
پیرک ( ....) رسید
وحدت مملو زکین
دار خمینی ببین
گشته بیرون از کمین
دشمن روی زمین
ننگ شیعیان رسید
دل رفسنجان رسید
شیرک برقی کجاست
قلزم ژرفی کجاست
موج سرآبی کجاست
دیو نقابی کجاست
ناکس دوران رسید
( ...) پریان رسید
پیرو پرچم شده

عضو گلم جم شده
نوکر دوستم شده
ننگ دو عالم شده
خار مغیلان رسید
شرم جوانان رسید
دزد جواهر رسید
کاذب و ساحر رسید
شعله جا سر رسید
ظالم و جابر رسید
بجان افغان رسید
جنرال ( ...) جان رسید
وهابی کرد قیل و قال
حق ملت شد پایمال
تاکه او ناید بحال
در حدود یکصد سال
رقاص (...) رسید
بدبختي افغان رسید

ځینې برخې د لیکلو نه وې، ځینې مې نشوای لیکلی، ځینې مې چې په بیړه کښلي په بیا لیکلو کې نشوای لوستی - ځکه خو بشپړ نه دي.
پنج بنای جهادي: سلاح، ریش، پکول، قتل و غارت، چوکی مقام
پر یوه دیوال کښلي :
مجاهدین امدند

خاین دین امدند
با موتر پک اپ
پشت قالین امدند
تشنه خودن مردم
روی زمین امدند

بل ځای په سکرو لیکل شوي:
کابل برباد کابل
دشمن ناشاد کابل
رهزنان خود فروخته
میکند بیداد کابل

د میوند واټ پر نړېدلي اپارتمان:
ای شرارت پیشه تا کی این شرارت میکنی
شهر را یکسر دچار ترس و وحشت میکنی
مردم ما را چرا غرق مصیبت میکنی
افرینت ای مجاهد خوب خدمت میکنی
کار این وطن را به یغما و غارت میکنی
ای خدا ناترس با اسلام تجارت میکنی
د دهمزنگ د ترافیکو پر مدیریت:
امیران غیر پرست
بخاطر تاج و تخت
میریزد خون ناحق

میکند ظلم و وحشت
ذوق زده امارت
رهبران بی غیرت
مرگ آور دون صفت
خاین به ملک و ملت
مرده باد! مرده باد!

د میرویس میدان پر ویجاړه سینما:

چـراغ گـل دلـت سرد اسـت کابـل
رقیبـت سـخت نـا مـرد اسـت کابـل
میمــیرم مــن بجــان نــا توانــت
که هر جایت زخم و درد است کابـل

د شا شهید پر یو ښوونځي:

دا مجاهد مجاهد ټول کړئ
تنور پرې سور کړئ چې وطن په کرار شینه

پر یوه بله نړېدلي ودانۍ:

دوستم بیازار آمد
گلو به کشتار امد
از بخت بد مردم
سیاف مکار امد
این خوجه ئین رباني

این شیطانک ثانی
هر تار ریشش دام است
این جمبور اخوانی
به نام دین خدا
کشتار و جنگ و بلوا
میکند به مردمان
چور و چپاول روا
صد لعنت هزار نفرین
بر مسعود و گلبدین
دوستم ستم گرا
مردود دنیا و دین
مرده باد هر ستمگر
هر خاین باد در بدر

(بشپړ نه دی لیکل شوی)

(...) شد سخت رسوا
بی ایزار و بی کالا
روشن تاریخ شور بازار است
ماما جان بخت تو بیدار است
نوبت رسید به (...)
در هشت روز دو هزار قربانی
خوجه ثین باز سر خر سوار است
ماما جان بخت تو بیدار است

زمرد شد بمثل کاه
لاجورد شد بیع زده بازارها
بیروج و لعل میخ پیزار است
ماما جان بخت تو بیدار است

(بشپړ نه دی لیکل شوی)

( ... ) از راکت کولکسیون میسازه
(...) در شمال کون فدراسیون میسازه
خوجه ئین برای خود اساسی قانون میسازه
(...) از هزارا کلچه صابون میسازه
دل بوبوجان خوش که دشمنه سرنگون میسازه
( ...) خو از اول غلام غلام بود
(...) از قدیم مبتلای نشه مدام بود
( ... ) از زرنگی در فکر ذخیره گدام بود
( ... ) از روی حرص بتلاش حرام بود
دل بوبوجانش خوش که بچه ها بدماش بی لگلام بود
( ...) را رفسنجاني لمسوت کرده بود
( ... ) راوها بیان دخلوت کرده بود
( ... ) خپکی زیر فالیز انجروت کرده بود
( ... ) از ( ... ) پرسان قی قروت کرده بود
دل بوبویش خوش که شوق ریش و بروت کرده بود

# جرګې د جګړې اور ګل کړ

د ۱۳۷۲ لمریز د لیندۍ میاشت ده، د پېښور هوا لکه د پسرلي لګیږي حقاني صاحب په یوه بله روغه جوړه بوخت دی، د هېواد بېلا بېلو سیمو خوله ور مرکچیان او جرګه مار یې راټول دي، پلاوونه، چرګان، غوښې بادیرې... زموږ هم بېدې مېره ده.

د جرګو مرکو یو خوند په همدې غوړو غوړوپو کې دی، خو کله کله سړی د ګېډې په آزار هم واړوي، کرې ورځ په نهره هغه هم سفر او تودو بحثونو کې درباندې تېره کړي، لا چې واك غواړي هغه هم توی وړی، چې له امله یې په لوښي لاس نیولو ته اړشي، خوندور خوراکونه درته ایښي وي، ګوتې به نشي وروړی...

چې د دواړو غاړو قناعت هم څه اسانه خبره نه ده چې که توی وړی واك دې اخیستی و، بیا د جرګې له پرېکړې څوك غاړه نشي غړولی.

یو ځل یوې غاړې ته ورځه، بیا بلې ته، خپله ورته وایه، د هغه اوره، دلته نو د نرخ او کاني خبره شي، چې بلا حوصله غواړي د دغسې جرګو اوبحثونو منطق نه د سیاست او دیپلوماسی په ښویو، لشمو اصطلاحاتو کې موندل کېدای شي، نه د یوناني فلسفیانو په صغرای کبرې کې... دغسې منطق او اغیز یواځې پښتانه مرکچیان او جرګه مار ښوولای شي، چې پخپل جادوګر منطق په لږ وخت کې د بدیو، دښمنیو د مودو کنګال شوې چاپېریال ویلې کولای او د جګړو په لمبو سړې اوبه تویولای شي.

حقاني صاحب د همدغسې جرگې په مټ وکړای شول، دښمنې غاړې روغې ته چمتو او د جرگې پر تغر راټول کړي.

د عقرب میاشتې له پیله له پېښوره، جلال اباد، سروبي ته څو، د ربړې په بېلا بېلو اړخو خبرې کېږي، احمدشاه مسعود چې څه له خدایه پر اسمان غوښتل پر ځمکه یې موندلي وو، ده له پیله غوښتل جگړه له کابله اطراف ته ولیږدي.

د گډ شورایي سیستم د ایجاد له امله ننگرهار ښه اداره رامنځ ته کړې، ټول اړخونه یې خپل ځنگ پورې نیولي، مانا د حزب او جمعیت سیمه ییز ځواکونه یې هم یوه میز ته راغونډ کړي، امنیت ښه دی، د کابل کډوالو ته هم د پنډغالو او خیمو اسانتیا شته، د جلال اباد ټرون ددغه اداري بل برى گڼل کېده، خو احمدشاه مسعود او نظار شورا د ننگرهار له ادارې او شورا ښه زړه نلري، د حزب پر ملاتړ یې تورنوي، غواړي د حزب د تجرید او مخالفت دریځ ته یې اړ کړي.

حاجي قدیر خپل ناپېیلی موقف ټینگ ساتي، له بده بخته د حاجي شمالي خان په وژلو ننگرهار کې رامنځ ته شوی تاوتریخوالي د جگړې ترینگلتیا او اندېښنې رامنځ ته کړې وې، نژدې د پښتنو قومو ترمنځ د یوې خونړۍ جگړې اور بل وای...

کابل ننگرهار شورا ته د پوځي مرستو پیغامونه لېږل، د هوایي ځواک ټتر یې واهه چې که وکړای شي، د حزب قوماندان زردادخان چې سروبي کې په یوه مانا د احمدزیو د پوځي قوت سمبول گرځېدلی وځپي، او د پښتنو تر منځ د جگړې اور بل کړای شي، له یوه غیشي دوه ښکاره ترلاسه کړي.

د کابل تورخم لار تړلې، مسافر په لارو کې بې اسرې بند پاتې دي،

کابل کې د خوراکي موادو نرخونه اسمان ته ختلي، دوا‌ړو غا‌ړو د یو بل پر ضد مورچې نیولې درنې وسلې یې ځای پر ځای کړې.

مولوی حقاني د سولې لپاره یوه جرگه جوړه کړه.

ورور یې حاجي محمد ابراهیم د میزان میاشت کې پر دوا‌ړو غا‌ړو وگرځېد او د جرگې لپاره یې رامات کړل.

حقاني صاحب مطبوعاتو ته وویل: د ننگرهار شورا او احمدزیو ترمنځ د جگړې اورلگېدلی و، د جگړې مخکنی اسباب او عوامل چې هرڅه وو او دا چې څه ډول دغه جگړه پېښه شوه، چا د جگړې دغه اور ته د لمن وهلو هڅه وکړه، د چا لاس پکې و او له دې لارې یې د خپلو سیاسي اغراضو د ترلاسه کولو هڅه کوله زه دلته په هغې بحث مناسب نه گڼم، چې لږ و ډېر ټولو ته څرگنده ده...

البته ظاهري منشاء د حاجي شمالي خان او دده ورور ناصر خان وژل او د دوی د غونډونو مرکزونو او شتمنیو لوټل و، دې کار د احمدزیو پر قام بد تاثیر وکړ، که څه هم په دې هکله ډېرې توصیې وشوې خو کوم ځای یې ونه نیو، احمدزي پورته شول او دا یې عنوانوله چې انتقام نه اخلي، د شمالي خان د شخصي شتمنیو، غونډو او وظیفې غوښتنه یې کوله چې دا هر څه بېرته دوی ته وسپارل شي.

ننگرهار شورا ویل د شمالي خان له امله زموږ نظم وړاندې هم مختل و، امنیت خراب و او نور ډېر داسې مشکلات موجود و، اوس که یو ځل بیا دده خاصو کسانو ته په داسې صورت کې چې روغه نه وي شوې، او مړي یې پر ځای پاتې وي، دده کسان شورا ته راشي دا به د جنگ او فتنې سبب وگرځي.

دوی دا هم ویل چې شورا د تنظیمو په سطحه جوړه شوې اوس باید

د هغه په عوض د محاذ له تنظیم یو بل نفر ونیول شي، په دې شورا کې د قوم په لحاظ کوم تشکیلات وجود نلري، چې شورا کې د قوم په حساب برخه ورکړل شي، دغسې غونډونه او مرکزونه هم شخصي ملکیت نه دی، دا ټول د ننګرهار شورا واك کې دي چې د ننګرهار فرقې مربوط دي او د کوم قوم ونډه نشي ګرځېدای.

دوی دا هم ویل چې دغه مربوطاتو کې که څوك تاکل کیږي هغه باید د ننګرهار مربوط وي، موږ په غور او تعمق د دواړو خواوو اظهارات واورېدل او د خپلو معلوماتو بشپړولو هڅه مو وکړه دغسې مو ننګرهار کې د شمالي خان د وسلو شتمنیو معلومات راټول کړل، په حصارك، سروبي، تیزین او ملا عمر کې منځ ته راغلی وضعیت او موجود او پخوانی حالت معلومات مو ترلاسه کړل، موږ لومړی دا کوښښ وکړ چې لار خلاصه شي، ځکه په جلال اباد کې سلګونه مساپر د لارې بندېدو له امله چې زنانه، بوډاګان او اطفال پکې شامل دي، له څو ورځو بند پاتې وو، چې نه هوټلو کې ځای و، او نه هغوی کوم بل ځای پیدا کولای شوای، ددې له امله کابل کې هم د خوراکي موادو نرخونه ډېر لوړ تللي وو، او د غذایي موادو قحطي یې رامنځ ته کړې وه، او ټول هېواد یې اغېزمن کړی و، موږ لومړی لار خلاصه کړه، نژدې یوه میاشت مو په دې هلو ځلو تېره کړه، څو واره تر جلال آباد سروبي پورې ولاړ و، له ټولو اړخونو سره مو تفصیلي خبرې وکړې، د هغوی قناعت مو حاصل کړ، زموږ د هلو ځلو په نتیجه کې ننګرهار شورا توافق وکړ، چې که جوړه کیږي باید بیخپوره جوړه وشي، ځکه خو یې شورا کې د شمالي خان د ورور حاجي مونجي په شمولیت هم توافق وکړ، غونډونه او قطعات به داسې کسانو ته چې د ننګرهار او د محاذ تنظیم مربوط وي

وسپارل شي، ټول لوازم او شتمني به يې ورته تسليم [illegible] استشناد ډاکي غونډ، دا غونډ فعلاً پير صاحب ته حواله شو، [illegible] به دا غونډ داسې چا ته سپاري چې دواړه غاړې پرې توافق [illegible] خکه دغه غونډه جنرال رحيم وردګ تاسيس کړي.

فيصله کې دا هم راغلي چې د لارې په اوږدو کې بايد دواړه غاړې پاټکونه وانه چوي، غير قانوني محصول او پيسې له چا وانخلې که هر چا سرغړونه وکړه، دواړه خواوې به ورته يو لاس وي، له سرغړوونکي به هېڅ ډول قومي، تنظيمي ملاتړ نه کوي، له دواړو خواوو پنځوس، پنځوس لکه کلدارې برمته او ضمانت اخيستل شوې،که هر طرف له فيصلې سرغړونه وکړه دا به په طريقه د تعزير باالمال د دوی جريمه وي، چې د سولې هيئت ته به ورغلی وي.

د مريو په باره کې تر يو کال تيره کېښودل شوه، په دې موده کې به د مريو پور نه غوښتل کيږي.

ترڅو حالات مساعد شي، چې شوې فيصله عملي کړای شي، دا هم بايد ووايم چې هر طرف له دې فيصلې سرغړونه وکړي، برمته به يې ځي، دا دفيصلې يوه کاپي ده درسره وايې خلئ...

جرګه د حقاني صاحب په مشرۍ له لاندې مرکچيانو جوړه وه.

د جرګې مشر مولوی جلال الدين حقاني

| | |
|---|---|
| حاجي محمد ابراهيم عمري | ځدراڼ |
| حاجي مادوخان | ځدراڼ |
| وکيل وزير محمد | ځدراڼ |
| حاجي عبدالرحمن خان | ځدراڼ |
| حاجي خانګل | ځدراڼ |

| | |
|---|---|
| خان صاحب محمد وزير | منگل |
| حاجي حبيب الله | منگل |
| حاجي نظام الدين | گربز |
| ملك حسين | گربز |
| حاجي شاه خان | گربز |
| حاجي ولي | گربز |
| حاجي ماه خان | تنې |
| حاجي ميربازخان | خوستوال |
| قوماندان ولسوال محمد حكيم | كابل |
| تورن خان محمد | كابل |
| قوماندان عجب گل | كابل |
| قوماندان موسى خان | وردگ |
| قوماندان مياسيد اغا | وردگ |
| خان صاحب انورخان | زرمت |
| وكيل سرورخان سليمانخېل | كټواز |
| حاجي آدم خان جلال خېل | كټواز |
| شاه محمود ساپی | كونړ |
| ملا بخت مير | وردگ |

د سولې پرېكړه ١١/٨/١٣٧٢ د لنډي خيبر يوه لويه غونډه كې اعلان شوه.

غونډې ته د ننگرهار شورا رئيس حاجي عبدالقدير خپله لنډه وينا كې ووېل: جنگ، جگړې كه د هر چا لخوا وي، د افغانانو په تاوان دي،

موږ د جنگ جگړو بدیو دښمنو مخه په جرگو، مرکو بندولای شو، چې دغسې یوې جرگې زموږ له منځ دښمني لېرې کړه، حقاني صاحب زموږ ترمنځ د جرگې له لارې سوله راوسته او یوه بدي او دښمني یې په وروری بدله کړه، موږ له ده مننه کوو، او د جرگې د پرېکړې د منلو ډاډ ورکوو.

په ده پسې د احمدزیو مشر حاجي نعیم کوچي خپلو خبرو کې وویل: زموږ او ننگرهار شورا ترمنځ یو لوی جنجال رامنځ ته شوی و، حکمتیار صاحب او حضرت صاحب ددغه جنجال د لېرې کولو هڅې وکړې، خو بدبختانه دا جنجال حل نشو او تر سروبي ورسېد.

The Afghanistan Islami Daulat

د افغانستان اسلامي دولت

د خوست ولايت

د ... رياست

بسم الله الرحمن الرحيم

نحمده و نصلي على رسوله الكريم و بعد! الله پاك مسلمانانو ته همېشه په صبر، صلحه، عفوه او په احسان باندې اودېدې ثواب په نېكۍ ارشاد كړى دى نو كله چې د دوو ډلو مسلمانانو په منځ كې جنگ شروع شو بيا طرفه مسلمانانو ته خداى پاك د دوى د اصلاح امر او ارشاد كړى لكه چې الله پاك فرمايلي دي: و ان طائفتان من المؤمنين اقتتلوا فاصلحوا بينهما فان بغت احدهما على الاخرى فقاتلوا التي تبغي حتى تفيء الى امر الله فان فاءت فاصلحوا بينهما بالعدل و اقسطوا ان الله يحب المقسطين.

حم سورة الحجرات

نو كله چه څه موده مخكې د ننگرهار او سروبي او احمدزيو مسلمانانو په منځ كې لانجه پېښه شوه او عام قتل او قتول شروع شو د دې لانجې د حل د پاره مونږ د صلحې هيئت جانبينو ته د صلحې خواست وكړ مونږ دوى مونږ ته عام و تام وات او اختيار راكړ.

د صلحې هيئت د ډېر تحقيق څخه وروسته لاندې اسنادو صادر كړي او د دواړو جانب څخه يې او صلوونه كلداري نقد ضمانت راخيست.

۱- هغه خلك چه په دواړو جانبو كې مړه شوي دي د هغه په باره كې د ځينو ملحوظاتو په خاطر د صلحې هيئت يوكال كاني كيښود او د دغه ذكر شوي وخت په تيريدو يا مخكې د دې تاكلي وخت څخه د صلحې هيئت په ذكر شوي برمته د غه معامله انشاء الله فيصله كوي يعنې د مړو حكم فيصله د دې هيئت په غاړه ده، جانبين به د مړو په معامله كې بيا په بل كار نلري، د مړو حكم د دواړو حقوق كاملاً د صلحې د هيئت په لاس كې دي، د دې دواړو جانبو د خلاف په صورت كې په ذكر شوي برمته خانو به بند كړل. ... خداى په قرآن ځانونه بند كړل.

۲- شخصي مالونه به جانبين يو بل ته واپس ... كوي او دواړه جانبه په خداى (ج) حاضر او ناظر بولي، حقه حقونه د مستحقينو ته ور كوي او كه بيا هم د كوم جانب قناعت حاصل نشو نو د صلحې هيئت فيصله به د دوى په حقه كې آخري فيصله وي.

۳- د شمالي خان په عوض به شوراكي د ده د گروپ يو صالح سړى چه د ننگرهار مربوط وي مقرر شو لاكن چه د ده د كورنى په استثنا وي.

٤- د واكي غونډ چه سابق ډېر صاحب مربوط ز هغه ډېر صاحب زوى محمد آغاته وركړ شو لاكن شرط به داوي چې پير صاحب به دا غنډ داسې شخص ته حواله كړي چې د جانبينو د قناعت وړ وي.

ب: د شمالي خان د ننگرهار مربوطه قرارگاوي او مركزونه د سابقه تعامل له مخې د تولو لوژستيكي او نظامي موادو سره ورته حواله شوه البته په دې قطعو كې د نورو ولاياتو او سابقه رژيم او نورو تنظيمونو خلك د شموليت حق نه لري.

ج- هغه مركزونه او قرار گاوې چه احمدزيو د مقابل لوري څخه د دې موجوده شخړې په سر نيولي دي هغه خپلو مربوطه قوماندانانو ته چه په سروبي اوزبين، تيزين، حصارك او ملاعمر بابا كې موجوديت لري سره د لوژستيكي او نظامي موادو په مكمله توگه حواله شوه.

٥- د ننگرهار اداره بايد د سابق په شان خپلو شوراگانو او وظايفو ته ادامه ور كړي او د سابقه تعامل له مخې د قوماندانانو سره چار چلند وكړي چه د چا قانوني شكايت پورته نشي او كوم قطعات او حزبونه امنيتي يا نظامي چه د ننگرهار د اداري له لارې اكمال كيږي هغه د دې اداري د حكم پيرو او خپلو وظايفو ته د اداري د حكم سره سم دوام ور كړي.

٦- د كابل څخه تر طورخم پورې بايد هيڅ نوع پاټك غير اصولي او غير قانوني د محصول او جريمې په بهانه وجود و نه لري او كوم كسان چه د دغه مادې خلاف ورزي كوي د دغو كسانو مقابله او منع نيوى به جانبين په مشترك ډول كوي هيڅ نوع تنظيمي يا قومي ملاتړ به جانبين نكوي.

۷- د فيصلې د اعلان څخه وروسته بايد په دوو ورځو كې جانبين شوراگانې لښكرونه او سنگرونه د يو بل په مقابل كې په كلي ډول ختم كړي او خپل عادي ژوند ته دوام وركړي.

۸- هغه قوماندانان چه د شمالي خان د مرگ څخه وروسته د شورا او وظيفو څخه تللي دي بايد خپلو، خپلو وظايفو ته چه شورا ورته سپارلي دي حاضر شي.

۹- د فيصلې د اعلان څخه وروسته سمدستي بايد د صلحې هيئت او جانبين منتخب شوي هيئتونه په مشترك ډول د فيصلې د موادو په تطبيق كې اقدام و كړي.

ومن الله التوفيق، والله اعلم و الله على ما نقول وكيل

زموږ مشر مولوي جلال الدين حقاني جرگه وکړه له دواړو خوا و يې واك واخيست، موږ عام او تام اختيار ورکړ او درنه مچلغه مو ورته کېښوه، په پښتنو او احمدزيو کې چې يو ځل چاته ځوك واك ورکړي بيا هغه فيصله ځوک نشي ماتولای. کومه فيصله چې حقاني صاحب کړې، موږ يې په بشپړه توگه منو او زموږ قوم ترې ملاتړ کوي.

په پای کې مولوی حقاني پخپلو لنډو خبرو کې وويل، موږ ډېر خوشاله يو، چې د دښمنۍ او جگړې مخه مو ونيوله، موږسره دواړو غاړو په پوره صميمت همکاري وکړه، دا د جرگې برکت و، چې د ورورۍ فضا يې رامنځ ته کړه چې لله الحمد يو دايمي اوربند وشو او د لارې په دايمي خلاصون موافقه وشوه، دواړه غاړې له پرېکړې راضي دي، داسې ځوك مونه دي ليدلي چې فيصله يې پخپل تاوان بللی وي، زه له دواړو غاړو او خپلو ملگرو مننه کوم اجر او خير ورته غواړم.

دغه بريالی جرگې ثابته کړه چې د جرگو اصل ته په پاملرنه موږ خپلې ربړې او کشالې په ښه توگه اوارولی شو، چې جرگه د افغاني ولسواکې په تن کې د روح حيثيت لري د افغاني ولسواکي دغسې موفقيت که ډېر خوشال او ډادمن کړل، پر ځينو يې د وېرې او اندېښنو دوړې وغورځولې... دغه جوړې په ډاگه کړه چې جرگې زموږ په ملي هويت او تاريخ کې د تل لپاره د ربړو په اوارې کې کارنده رول لرلی دی.

که څه هم موږ د اخبار مجلو چاپ ځنډولی خو په دې اړه مې فوق العاده گڼه چاپ کړه... هاشمي صاحب چې له قاضي نجي الله سره دائرةالمعارف کې کار کاوه، پر دغه گڼه دده له تبصرې راته وويل... ننگيال ته خدای ورکړه... اوس به مو په جرگه جرگه لېوني کړي... دی د جرگې مرکې له دغه ورخه پر لويه جرگه د اوبو ور اړولو مخ گوري...

## سوځنده سیوری:

# دوه جلا پیغامونه

حقاني صاحب له متحده عربي اماراتو خوست کې د پوهنتون په جوړېدا کې د مرستې ژمنه ترلاسه کړې، شاوخوا پر گرځېدو او لټون یې له مته چینې سره سړك ته نژدې سیمه خوښه کړه، نخچه بشپړه او پخې خښتې را رسېدلې، انجینران لگیا دي، د دېوال گرځولو چارې بشپړې شوې دي.

زه نه پوهېږم... دلته ماته کومه اړتیا شته...؟

چې نور ځان راته سولېدلې او بېکاره پرزه بریښي، چې د کوم ماشین د گرځولو نه بلکې د پښ لخوا د لور او ختک لپاره کارېدای شي...

ورځ تر ونو لاندې په خپلو سوچونو او ډگروال صاحب سره په ټوکو، کیسو تېره شي... ماښام د پیرانو حجرې ته ځان وربرابر کړو، چې یو څه غوړه را رسېږي... شپه په آرام تېره شي...

خو د ډگروال له لاسه دا ځان راباندې ودرېد... چې به ناخبرۍ یې د یوه پیر په ړتلو ترټلو خوله خلاصه کړه، وایي دلته یو څوک دی شیرین جمال نومي که گل جمال ځمکې یې لاندې کړې، چې په تخته بېک کې یې ونه ځړوم، نه یې پرېږدم...

له دې ناخبره چې دغه ښاغلی پیرانو خپل مشر منلی... که څه هم پیرانو خبره په خندا تېره کړه، خو ما یې له ببر کتلو او پارېدلو پر زړه

وخوړه...

ډګروال ته وايم د پيرانو حجره خو دې راباندې ودروله... د شپې ځای په تا شو...

ماښام له څه بې درکې وروسته خوشاله را روان دی... وايي راځه! د مستري سردار د ورکشاپ مخه کې دوه چپرکته ايښي، پر يوه يې خپل ځادر وغورځاوه، د بل يې ماته اشاره وکړه د خوست ماشې په نامه دی چې منګس يې بولي لکه برچې يې اېستلې ... سترګې مو پټې نه شوې...

سهار مو د خوب په اسره تر ونو لاندې ځادر وغوړول، خپلو خيالونو کې ډوب وم، چې ډګروال صاحب راغږ کړ: څه چې حاجي صاحب ته ورشو... ورته وايم پرېږده چې لږ د کرار سا واخلو حاجي صاحب ته څه وايې...؟

د خپلې خبرې ترميم ته راوګرځېد... د نورڅه لپاره نه، ددې لپاره که راته ووايې تر اوسه دلته ګرځې... ځې ورک شې... خپله مخه وهې، ماښام چې حقاني صاحب وروغوښتم دګروال صاحب ته مې کړه، لکه چې کار وشو...

کوټه کې خوك نه شته، کاغذونه يې ګډ وډ مخې ته پراته دي، لکه يو راز راسره شريکوي، وايي: زما له خوا احمدشاه مسعود او استاد رباني ته پيغام يوسه...؟

جلا پيغامونه... د احمدشاه مسعود په نامه پيغام، حقيقت کې وړانديز يا غوښتنه ده، دا چې بوسنيا کې مسلمانان د سربيانو د ظلم او تېري، بټۍ کې سوځي، ښه به وي زه او ته د افغانستان له جګړو په ليرې کېدو د بوسنيايي مسلمانو مرستې ته ځانونه ورسوو...

ما پوښتنه وکړه، بوسنيا ته تګ شوني دی؟ امريکا او ملګري ملتونه

ښايي هلته خپل پلان ولري، حقاني صاحب وايي دا وروستی خبرې دي، چې د مسعود له خوښې وروسته پرې خبرې کېدی شي...

څرنگه چې حقاني صاحب له دې وړاندې هندي کشمیر کې د امریکايي ژورنالیستانو په خوښې کولو کې خپل رول لوبولی و، هغه ته په کتو ما د خپلې پوښتنې دبشپړ ځواب په نه تر لاسه کولو، څه ونه ویل:

د استاد رباني په اړه پیغام بیا هم پر یوه وړاندیز یا غوښتنه راگرځېده، دا چې استاد د خوست پوهنتون په جوړېدا کې مرسته وکړي، او له کورنیو جگړو په مخ اړولو د خوست پوهنتون ریاست پر غاړه واخلي، د لویې پکتیا د مشرۍ پټکی د ده دی.

که څه هم ماته دغه وړاندیزونه عملي نه ښکارېدل، خو څرنگه چې خوست کې بیخي تنگ یم، له نه، نو او خو پرته مې هو کړه... ما یو ځل بیا خپل منافقت پټ کړی شو... خو حقاني صاحب څومره سپین زړی دی... چې دغسې هیلې پالي...

ما د ده لخوا د استاد رباني او مسعود په نامه جلا لیکونه ولیکل چې ده لاسلیك کړل، په لیکنو کې راغلي:

شهرت ننگیال زما له خوا تاسې سره پر یوه موضوع د خبرو لپاره درځي، هیله ده، ستاسې توافق تر لاسه کړی شي.

استاد رباني مې په اسانۍ وموندای شو، راسره یوه اړخ ته شو، په لنډه یې را پرې کړه: حقاني صاحب ته ووایه: "بوسه به پیغام نمی شه" خپله راشه چې خبرې وکړو...

له احمدشاه مسعود سره لیدو نژدې دوې اوونۍ وخت ونیو، کارته پروان کې د غلام بچه کور کې ډاکټر عبدالرحمن ورسره مخامخ کړم،

دغه ساحه کې د غلام بچه کور ماته له پخوا به زره پورې و، چې دا یو وخت زما د تلو راتلو لار وه... د یوه غټ گټ او کمر پر سر ددغه سیمې له ټولو مانیو په جلا بڼه او رغښت چې د هر لیدونکي پام یې ځانته اړاوه... دا به چاته نه وي څرگنده چې غلام بچه یو وخت لنډه موده د ضبط حوالاتو (غالباً لومړنی) رییس پاتې شوی...

مور ژوبنې ته تللي وو، هلته ابه له یوه په ونه دنگ بوډا سره چې د مرز لکۍ فیشني ږیره یې لرله او د پتلون پایڅې لکه د محمد هاشم خان صدر اعظم پر تورو موزو را پرتې وې لنډ روغبړ وکړ... مور ته یې کړه: دا غلام بچه رحیم پنجشیری و، هغه نوم چې ټول تاریخ او جغرافیه یې پکې راغونډه ده، له شرحې پرته څرگند و...

د مانۍ له لویې دروازې سره یوې وړې دړې ته له دواړو غاړو پخه پوړۍ ختلې... په کومه کچه چې زینه غځېدلې، دغه برخه د کور اړخ ته ورننوتلې، مانا د پلیو لاره یې نه ده نیولې، له ټول اثر او رسوخ سره یې قانون دروند گڼلی... د مانۍ دننه سړی د وړوکي ارگ په مزه او منظره اوړي... چې دا وخت نوي واکمن پکې د واک لوبه توده ساتي... ظاهراً له ډاکتر عبدالرحمن سره ده خو کله کله آمر صاحب هم پېښه کوي.

زما د دوه په دوه لیدو غوښتنې ته یې په بې توپیرۍ وکتل له دریو گینټو انتظار وروسته یې په ولاړه یو لنډ لیکچر راکړ: دا چې افغانستان د ټولو اسلامي مبارزو لپاره پامور مرکزي حیثیت لرلی شي.

مور هغه وخت د نړۍ له مسلمانانو سره مرسته کولای شو، چې دغه مرکز مو ټینگ کړی وي...

ماترې د یو لیك وغوښتل، خو ده وویل: باوري یم چې زما له خوا هم ښه استازیتوب کولای شې...

زه له کابله کلي ته ولاړم، او بیا پېښور ته، میاشت وروسته مې له حقاني صاحب سره وکتل، معلومه شوه د خوست پوهنتون د پروژې یو انجینر چې د لوګر اوسېدونکی و، چا وژلی... د پوهنتون د جوړېدا چارې درېدلې...

د بوسنیا جګړه د اورتودوکس مسیحي سربانو او بوسني مسلمانانو او کاتو لیك کرواتانو تر منځ ۱۹۹۲ کې پیل او د ۱۹۹۵ کال ډسمبر کې د امریکا په مداخله د ډیټون تړون په لاسلیکېدو پای ته ورسېده، چې د ریچارډ هالبروك کارنامه بلل کېږي.

دغه جګړه کې سربیان ځواکمن و، ځکه د پخوانی یوګوسلاویا میراث تر ډېره دوی سره و، مانا پوځ او ځواك دوی ته رسېدلی و، د سربانو مشر رادو وان کارادیچ او پوځي مشر جنرال راتکو میلایچ په منظم ډول مسلمانان وژل... د دغه جګړې خبرونه په اسلامي هېوادو کې انګازې خپرې کړې، د مسلمانانو ټولوژنې او د سربانو لخوا پر مسلمانو ښځې د جنسي تېري خبرونه اسلامي نړۍ کې لکه د ځنګل اور خپاره شول افغانستان کې غځېدلی کړکیچ کورنۍ جګړه رامنځ ته کړې، د افغانستان جهاد کې برخه وال ډېری عربان بوسنیا ته په لېږدېدو د بوسني مسلمانانو په پلوۍ جنګېدل، امریکا د بوسنیایي مسلمانانو په پلوۍ مداخله وکړه، مسلمانان تکیه او بوسنیا جلا هېواد وګرځېد... د جګړې له پای ته رسېدو یو شمېر جنګیالي عربان بېرته خپلو هېوادو ته ستانه شول، پاتې هغو ته د بوسنیا ولسمشر عالیا عزت بګویچ د قانوني مشتېدنې شرایط برابر او د دغه هېواد تابعیت ورکړ، ټولنه کې جذب شول ځینو هلته ودونه وکړل، د کار روزګار زمینه یې ورته برابره کړه، ځکه خو اورپکي پاتې نه شول...

# پر جګړه برلاسي جرګه
# د یوه کال تېره

خورا په زړه پورې ... چې نه مې تر اوسه کتابونو کې لوستي، نه مې فلمو کې لیدلي، نه مې کله د خیال په وزرو پر دغسې پېښو او صحنو د الوت مخه موندلې ده ...

زه د خپل ژوند له نوې تجربې سره مخامېدم، نوي څه مې موندل، پر نویو حقیقتونو اوښتم ...

د خوست چې ګرمي خومره زموولونکې ده، ژمی یې هغسې تود نه وي ... مانا د جلال اباد او پېښور که ګرمي سخته ده، ژمی یې تود دی، خو د خوست دوبی ګرم او ژمی سوړ ... څکه خو یې نه د ژمي خوند شته، نه د اوړي ، د ګرمۍ منګس ( ماشې) لا پرې د پاسه بل غضب ...

بیاهم خوست کې د پراپرټي نرخ له پېښور او اسلام اباد لوړ دی ... افغانستان کې دېرې پرمختیاوې د موډ او فېشن په کچه غوړېږي، کاروبار او سوداګرۍ کې هم د سیالۍ ان تربګنۍ اړخ جوت خیژي ...

زرمت کې چې د تراکتور موډ خپور شو، که د چا څمکه وه که نه تراکتور یې باید د کلا مخ کې درېدلی وای.

وردګو کې بیا د موټر سیالي سر راپورته کړ، څمکه پټی به یې په ګرو ورکړ، غورازه موټر به یې دروازه کې ولاړ و، غم نداری بز بخر ...

خوست کې د پراپرټي سیالي غزېدلې، که د تره زوی څمکه، کومه

نومره یا کلا رغولې، هرو مرو باید ځان ورسره برابر کړي، که نه له سیالی پاتې د پېغور دی ...

ځکه خو دا وخت پر ډاګو، غرو، ځرځایو، د قومونو تر منځ جنجالونه او کشالې ښې په درز چلیږي، په هر ډاګ، غره دښته د دوو قومو او قوم د ننه دعواګانې غزیدلي ... له بده بخته دغو دعواګانو کې د سند، شاهد، دلیل په پرتله پر زرو تکیه ټاکونکې خیژي ... وایي د ډېرو به ډېر مري د لږو لږ ... ټوپک ته لاس کړه، ماشیندار، دهشکه راواخله، توپ چو کړه، ماشه کش کړه، د ځوانیو غوټی، ګلان رېژوه ...

د شپې هوا یو څه ښه وي، خو ماشو نیشونه څه سمې برچې ایستلي، خوب چېرې دی ...؟

په حال کې بېحاله، راتلونکې تیاره، نه د برخلیک پته، نه د سرنوشت درک ... له یوې تیارې وځه پر بله ننوځه (( له ماښامه تر ماښامه ))

پر ما لکه خپل سر دروند دی ... هسې نه لکه وایي سرت بوی قورمه میته، بلکې له خوب او ذهني ستومانی را پېښه ده ... چې زه له خدایه دومره نه ډارېږم لکه له مرګه ... له مرګه ځکه چې د خدای په حضور کې به دربېږې او هورې درېدو کې زما سر ټیټ او لاسونه تش دي ...

وایي پر کوم غره که ډاګ د دوو قومونو شخړه ده، توپې دهشکې ختلي، سنګرونه تاو دي، د امریکا، شوروي د وسلو او صدام د توپو غورمبی خیژي ... اوازې ګرمې اوفواهات خپاره دي، شایعات چلیږي ... د مړو زخمیانو د شمېر، د ورانی بربادی د کچې ...

ډېرې خولې ډېرې خبرې ...

قضا ماسپښین د حرکت غږ شو ... موټران په راګرځېدو پر یوه لیکه برابر ودرېدل، له باډیګاردانو ځینو پر موټر ورمنډه کړه، ځینې برګ ببر

ولاړ دي ... مشهور جرګه مار او مرکچیان، د تېرو له غټو دستارو او پروسمو تورو سرو ږېرو سره راووتل ...حاجي عبدالرحمن، حاجی مدو خان، عبدالقیوم خان...

دېرش پنځه دېرش موټرو حرکت وکړ ... داسې دوړې ختې تا ویل بم غورځېدلی ...چېرې پر سړک، چېرې شګلن خوړ کې ... لوړ مازیګر پر کلي وربرابر شو ... لوی ډاګ یې په سرو غالیو، پستو اسفنجي توشکو او عربي تکیو فرش کړی ...

ستړي مشي پیل شول ... توبه توبه د پښتنو روغبړ او بیا پوښتنې: ... پخپل صورت، خېلخونه ښه دو، واړه زړه، ... بچیان دي ... چې رېغ مې ولېدې، برابر یې ...

کندهاریان خو یوه شېبه پس بیا درغړ کړي:... آ ستړی مسې، شه یې...

لړ وروسته له سره ... آستړی مسې، شه یې ...

روغبړ دومره اوږد شو، نژدې یې د مازیګر لمونځ قضا کړی و ...

له لمانځه وروسته له حقاني صاحب، د کلي خلک راغونډ شول ... خبرې مې نه اورېدې چې زه لېرې پنځم صف کې ناست وم ... داسې برېښېده پر اوربند او جوړه خبرې دي ... کله به غږونه لوړ او ځېرې ترېنګلي شوې ...وروسته به بېرته تېټ شول ... دوه درې واره حقاني صاحب له ځو تنو سره ګوښه کېناست - له لږ ځنډ به بېرته لوی مجلس ته ستانه شول ...

قوماندان ګل حسن ته وایم ... دا څه دي ...؟

- حاجي صاحب واک غواړي ... نه یې ورکوي

- په زور دې اخلي ... قومانده دې ورکړي د سیدرحمن لالا خبره چپه یې دې کړي ...

دلته زور نه چليږي ... مرکې، جوړې په زور نه کيږي ... دا د زور کار نه دی

څه خبره ده واک دې ورکړي

دا خپله طريقه لري

څه طريقه

د نرخ، کاني طريقه، دلته له کلي وتلی شې خو له نرخ نه ...

د مابښام تر لمانځه کله په لوړ، کله ټيټ غږ خبرو دوام درلود ... داسې ښکارېده څه پايله نه وي راوتلې ...

حقاني صاحب نېولې ستومانه څېره ولاړ شو، لمونځ وشو، نفلونه، دعاګانې خلاصې شوې ... ګيسونه بل شول، رڼاګانې وغوړېدې، هسک له ستوريو ډک دی ... لاندې د ګيسو زېړه رڼا، آسمان کې د ستوريو سپينه ځلا ...

کوزه چلمچي راغلل، لاسونه پرېمېنځل شول، دسترخوانونه وغوړېدل ... د خوړو بېلابېل لوښي يې کتار کړل ... چرګان، پلوونه، کبابونه او د خوست مشهور ډنډکی ... ورډم يې زړونه تخنول ...

زما زړه و پر چرګ ور غوټه کړم، چې قوماندان ګل حسن مې لاس ونيو ... پام !

څه دي ...؟

حاجي صاحب په خوړو لاس ونيو

لاس يې خرنګه ونيو ...؟

توی ورې واک ته ...

له خوړو نه خوړو سره يې څه ...؟

دا د واک اخيستو طريقه بلکې آخري حربه ده ...

خواره اینبي مور ورته گورو ... دغه اذیت د څرخي پله زندان له شکنجو پر سري سخت لګېده، ښه وه د وږم په څکلو بندیز نه و ... ژر ژر مو په پوزه اوږدې ساګانې راکښلې ...

اته، نه، لس بجې شوې، خواره اینبي مور په حسرت ورته کسو ...

زما پښې وچې شوې، زنګنو مې درد کاوه ... کرار وغږېدم ... قوماندان ګل حسن ته وایم : دا د چرګ لنګی به پټ راکش او تر ځادر لاندې په کرار خولې ته کړم ...

پام چې داسې ونکړې ... ټول کار به خراب کړې ...

یوولس بجې شوې ... حقاني صاحب ویل لمونځ کوو ... په جمع لمونځ وشو ... بېرته هر یو پخپل ځای پټه خوله کېناست ...

ډوډۍ ته ګورو، خولې څه چې سترګې مو هم اوبه اوبه دي ...

د حقاني صاحب ډېرې قوماندانان، سرګروپان ښکته پورته کيږي ... په سرو اورو یې په ورختو کې د حقاني صاحب له قوماندې مخ نشوای اړولی ... خو دلته د جوړې لپاره له واک ورکولو رټ منکر دي ...

حقاني صاحب عاجز ناست دی، له جنګیالیو، وسلو سره زهیر زمولېدلی ښکاري ...

هغوئ چې ده ته به یې د پیسو، وسلو او موټرو سوال کاوه، نن ده ورته د سوال لمن غوړولې وه...

لکه دلته، جنګیالي وسلې ځواک نه وي ... دا بیا کوم ځواک دی چې د حقاني په خبر لوی قوماندان چې له شورویانو سره په جګړه او ډغرو مشهور دی عاجز حیران ناست دی ...؟ ماته قوماندان اسماعیل حاجي را یاد شو چې پر یوه پوسته یې له تعرض سره دروند غږ پورته شو ... جلال الدین دې وایي پرې ورځه او ته...

د جلال الدین پرې ورځه هغه وروستی پرېکړه وه چې سرو اورو او گولیو کې چا ترې مخ نشواى اړولی او نن ده خپله د سوال لپه نېولې ...؟

دا کوم قرارداد او ټولنیز تړون دی چې تر مخ یې دغسې زور او ځواک په گونډو دی ...

پروفیسور پریشان ختک ښه وایي: پښتونولي هغه قانون دی چې د پښتنو مخورو مرکچیانو د زړه په تخته لیک دی ... له قاضي، پولیس پرته د ټولو سرونه ورته ټیټ دي ...

حقاني صاحب علي جان ته وویل : موټر کې ورته د استراحت ځای برابر کړي ...

علي جان بروس موټر ته ورغی ... حقاني صاحب له ځایه پاځېد، موږ هم ودرېدو ...

گنگوسی شو ... گنگوسی ورو ورو خپور شو ... واک یې ورکړ، توی وړی واک، هاهاها ...

خبرې وغوړېدې، پر شونډو موسکا خپره شوه، ستوماني وخته ... بېرته پخپلو ځایو کېناستو ... له سره توده ډوډۍ راغله ... پر سبا له مقابل لوري واک واخیستل شو ...

د خو ټکو لنډه پرېکړه اعلان شوه ... د یو کال تیره ...

یو کال وروسته به د غوښې په سرېدو، بېخپوره اواري ته زمینه برابره شوې وي .

د جگړو اتلان څرنگه د سولې په دفاع کې درانه او برېمن راوځي ...؟ څکه چې د ولسي منطق کاڼي او جرگې ټولمنلې دیپلوماسی د قوم او نرخ په تله کې همېشه پر زور او جگړو درنه ختلې، چې پښتونولی او اسلام کې اصل جرگه او سوله ده، نه جنگ ...

# یو لیك څو وړاندیزونه

جنرال رحمت الله خان ساپی له لندن یوه لیك کې حقاني صاحب ته له پخواني پاچا سره د کتلو وړاندیز کړی، او د ربړې د اوارې په اړه يې خپل نظريات او غوښتنې وړاندې کړي دي.

د جنرال لیك په زړه پورې او غوښتنې جدي دي، چې په تاکلي زمانې مقطع کې د وخت او حالاتو په ارزونه او د سیاست پر نبض د ګوتې ایښودو څرګندې نښې او اشارې لري.

حقاني صاحب د جنرال لیك ماته راکړ، چې ویې لولم، له ده سره يې وغږیږم، او ځواب يې وکاږم.

ما لیك دوه درې واره ولوست حساس او پاموړ ټکي مې پکې وموندل، خوحقاني صاحب بې له دې چې له ما وپوښتي، د ځواب په اړه پخپل قلم یو یادښت راکړ، چې له مخې يې جنرال صاحب ته لیك بشپړ کړم.

ما د لیك مفصل ځواب وکیښ، حقاني صاحب ته مې ولوست خوښ يې شو، مننه يې وکړه، دعایې راکړه.

# د جنرال لیك

**لطفاً دغه لیك دوه ځله ولوله، او په ښه فضا کې جواب راولېږه**

ډېر محترم الحاج حقاني صاحب:
السلام علیکم ورحمت الله وبرکاته
د قادر او لوی خدای ج نه ستاسو او د نورو ورونو روغتیا او سلامتیا غواړم. زما یو ځل د زړه اپریشن وشو، او تر اوسه ښه وم، په دې ورځو کې بیا درد پیدا شو دا ځل مې بیا رگونه پاك کړل، د چپه غوږ سره په تکلیف یم چې سبا ډاکتر سره وعده لرم، په هر حال د افغانستان په هکله مطالب ډېر دي خو زه به تاسو ته په لنډه توگه تشریح درکړم.
۱- دافغانستان د مسایلو ښه حل د بینان سیوان پروگرام وو چې موږ او تاسو پرې کار وکه خو له بده بخته د شمال د خوا کار وران شو اوجناب حضرت صاحب هم څه نا څه اشتباه وکړه، او قوماندانانو هم لویه غلطي وکړه.
۲- په خارج کې د ټولو خارجیانو سترگې جناب احمدشاه مسعود په لور وې او موږ او تاسو هم ورسره مرسته وکړه، څو د مملکت دپاره د یو مسلمان او مجاهد په صفت مفید واقع شي، خو د بده مرغه څه ونشو، اوس خارجیان د هغه په هکله په پخواني شوق کې ندي پاتې...
۳- ستا په خصوص کې ټول حیران دي، د یوې خوا دوی فکر کوي چې د افغانستان د قضایاوو په حل کې ستانه ډېر اهمیت لري، د بلې

خوا تاته د يو ملي شخصيت په سترگه گوري او د بلې خوا شك بر شي، دوی چې سياست د ژوند اساس بولي وايي چې حقاني صاحب د سياست سره علاقه نلري.

په هر حال موږ او تاسو د خلقي او پرچمي سره تماس درلودل گنا بلله خو حالات داسې راغلل چې نن سبا اکثر ملگري د خلقي او پرچمي په ملگرتيا افتخار کوي، په خارج کې د مجاهد نوم اخيستل يو گران کار بلل کيږي.

وروره! پخوا زموږ او ستاسو يواځې يو ارمان وو، چې هغه اسلامي نظام وو خو اوس يو بل ارمان هم زيات شو چې هغه د افغانستان ارضي سلامت او مرکزي حکومت دي.

همدا اوس په افغانستان کې ملوك طوائفي روانه ده، د ولايت نوم بدل، د والي نوم بدل، ټول امارت او اميران دي حتی د دولت په کاغذونو کې واضح نوشته شويدي، د افغانستان کشالې مخصوصاً د پښتنو دپاره د مرگ او ژوند سوال دی، نور اقوام مشران لري خو پښتانه په خپل منځ کې اخته دي، جناب حکمتيار زما ورور دی، او الله پاك شاهد دی چې ماته د حکمتيار سپی هم د کارمل او دوستم نه ارزش لرې خو ټوله نړی د حکمتيار پرضد لگيا ده.

وروره زما يواځې د شمالي ولاياتو سفر ستا په خوښه تا ته د ملگرتيا ثبوت دی ما موقع ورنکړه چې ته د قوماندانانو تر مخ خجالت شې، ما تاسره ډېر کلونه په جهاد کې تېر کړل معنی دا چې زه يو عياش او يا ډارن سړی نه يم، زه پوه وم چې د يوې خوا ما ته عزت او ابرو پاته نه وه، او د بل خوا ته په خپله نه غوارې چې ستا نه د افغانستان دپاره يو قوت جوړ شي.

په افغانستان کې مخصوصاً په کابل کې زما ژوند ته ډېر خطر پیدا شو او د خدمت دپاره لارې محدودې وې، زه پوه شوم او ثابته شوه چې خارج کې ډېر کار کیږي نو ځکه خارج ته راغلم، دلته مې تر اوسه خپل علاج هم وکه خو په خدای ج باور وکړه چې خپل د صحت او ژوند چندان پروا نلرم، خو ما د افغانستان دپاره الله پاك شاهد دی چې ډېر کار وکه او لګیا یم.

وروره تاته معلومه ده چې ما پنځلس کسان د پلار په شمول شهیدان ورکړیدي، زه الحمد لله پوخ او پخوانی مسلمان یم، خو عرض دادی چې د مملکت کار په تنګ نظري نه کیږي.

۱- زما هدف او مقصد دادی چې افغانستان تجزیه نشي او ملوك الطوایفي ختمه شي او ژر تر ژره مرکزي حکومت قائم شي.

۲- دنیا ته اوس اسلامي نظام په بل رنګ او څېره معرفي شوی دی، نوددې دپاره دوی ډېر تشویش کوي، او زموږ وطن راخرابوي، دې دپاره چې حکومت قائم شي، بیا د معتبرو او نامتو علماء شورای جوړه شي، (جمعیت العلما) او ټول اسلامي احکام د هغې ځای نه صادر شي ځکه چې همدا اوس په هر تنظیم کې سل قسم اسلامي نظریات دي او دا کار د وطن او اسلام دپاره ضرر دی ځکه چې اوس هرڅوك ځانته عالم وایي او نظریات ورکوي.

۳- هزاره، ازبك تاجك زموږ ټول وروڼه دي، خو بدبختانه هغه نظر چې موږ دوی ته لرو هغوی پر بل شان دي نو د پښتنو حقوق ساتل هم ضروري دي، او په دې هکله د پښتنو پوهېدل ضروري کار دی.

د خدای پاك په لطف سره زه کولای شم چې:

۱- افغانان مخصوصاً د پښتنو قومونه او قبایل پوه او متحد کړم او

لا اقل كوشش وكړم.

۲- د هزاره او تاجكو او ازبكو ورونو سره نژدې تماس او روابط وساتم، چې ضروري دي.

۳- د تنظيمونو مشران قانع كړم چې پر دوی باندې افغانستان نور هم خرابيږي او خراب شو، كه ته غواړې چې د يو ملي شخصيت په حيث كار وكړې نو بايد.

۱- ځو قوماندانان قوي مشران او علماء چې جمعاً پنځه يا شپږ كسان وي، روم ته تشريف راوړی، او اعليحضرت وگوری، ترڅو ټول افغان اولس پوه شي چې تاسو د ملي زعامت په حيث ډېر ويښ او پراخ نظر لری، او كه ستاسو د سياست ايجاب نوي نو بيا هم:

۲- د مريضي په بهانه خارج ته تشريف راوړئ او په اروپا او امريكا كې افغانان او خارجي مقامات وگورئ، مخصوصاً ملل متحد او د امريكې خارجه وزارت وگورئ حتی د امريكې رئيس جمهور وگوری تر ځو چې افغانان او خارجيان ستا په نظر پوه شي، په دې كار هيواد ته ډېره گټهٔ ده او هېڅ تاوان نشته او شاهان د دنيا ټول دار كار كوي، او بې ددې نه چې هغوی دښمني وكړي له دوستم نه پاچا جوړ وي، او اسلام ته تاوان رسوي.

۳- ما ته د يو ملگري او ورور په صفت واضح وليكه چې د ملي زعامت او فراخ بيني، طاقت او حوصله لري او كه نه، زه د خدای پاك فضل دی په خپل ځان كې ځه ناځه توان گورم خو زما او ستا د مفكورې ملگرتيا ته ضرورت دی.

په شخصي لحاظ الله پاك شاهد دی چې ستاسو احترام او عزت پر ما ډير دی او حتمي دی خو د مفكورې او سياسي ملگرتيا نژدې والی د

افغانستان او اسلام په گټه دی.

په افغانستان کې ټول مشکلات، د سیاست خلا ده چې زما او ستا یو ځای والی او سیاسي اتحاد خارجي او داخلي خلا وې ډکه وي.

وروره: باور وکړه چې زما شخصي مفاد په اعلیحضرت کې نشته زه گورم چې افغانستان د لاسه تللی دی او ځي د همدې دپاره زه هغوی ته زحمت ورکوم، زما شخصي عزت او احترام په ټولو مجاهدو مشرانو کې ډېر زیات دی، خو افغانستان پر موږ او تاسو د هرچانه ډېر حق لري.

ته وگوره چې ټول مناطق ارام دي خو د پښتنو په منطقو کې قندهار خراب پکتیا خراب او ننگرهار خراب شو نور به خپل کارونه کوي او پښتانه به د خدای په قهر اخته وي.

په هر حال لطفاً زما دغه لیك په قراره وگوره او ماته مفصل ولیکه:

که چېرې فکر کوې چې زه به هلته ډېر مفید او سم ولیکه چې درشم او که پوهېږې چې هلته د وخت ضیاع ده او تاریخي ناحقه مسئولیت دی، نو هم ولیکه چې دلته بعضې کارونه وکړم او دوام ورکړم.

لطفاً په پای کې زما سلامونه ټولو ملگرو او ارجمند ننگیال صاحب ته ووایه.

په درنښت

۱۳۹۳-۱۱-۱۱

## د حقاني صاحب ځواب:

**محترم او قدرمن ورور جنرال رحمت الله خان ساپی!**

**السلام عليکم و رحمة الله و برکاته**

ستاسې ليك راورسېد، د ډېرو ارزښتناکو او ضروري ټکو يادونه مو کړې، زموږ د کړېدلي ولس د نجات لپاره اوس يوه ملي حرکت ته له بل هر وخت زياته اړتيا ليدل کيږي، طبعي ده چې ملي حرکت د ولس له ننګې او ملاتړ پرته نشي رامنځ ته کېدای.

پخوا چې څه شوي او چا کومې تېروتنې کړې، پر هغو به تيره کېږدو، البته يادول يې دومره ضروري دي چې د تکرار مخه يې ونيول شي، او عبرت ترې واخيستل شي، خو په دې بايد اعتراف وکړو چې موږ ټولو لږ و ډېر تېروتنې کړې بيا هم وايم چې له خپلو اشتباهاتو زده کړو او د تکرار مخه يې ونيسو.

قدرمنه!

ستاسې په اخلاص او صداقت زما باور دی، خوشاله يم چې تاسې د وطن د نجات لپاره له ځينو شخصيتونو او حلقو سره په تماس کې ياست او په دې لار کې په هلو ځلو بوخت اوسئ، د افغانستان بې ثباتي سيمې او نړۍ ته ګواښ ګرځېدلې، ځکه خو معقول اوارى نړيوال ملاتړ هم تر لاسه کولای شي.

خو دا هم ښايي ياده کړم چې تر دغه نامه لاندې بايد د خپلو سياسي مقاصدو او اجنډاوو لار تېره نکړو، چې د واقعي ملي حرکت په زيان تماميږي، او د باورونو بحران رامنځ ته کوي.

دغسې يو حرکت بايد د ملت د واقعي خوا خوږو او داسې اشخاصو لخوا رامنځ ته شي چې ملت خپله پايګاه او پشتوانه ګڼي، ملت يې خپل وبولي پردي ورته ونه بريښي.

تر کومه چې ستاسې تر دغه پوښتنې اړه لري چې د پراخ بيني حوصله لرم که څنګه؟ دا خبره بايد له تا سره حل واى، چې زه عملاً د ملت ترڅنګ ولاړ يم نه يواځې دا چې د ملت ارادې ته احترام لرم بلکې د معضلې په حل کې په اساسي حيثيت ورته قابل يم، ځکه خو ما په تنظيمي او ائتلافي حکومت کې برخه وانخيسته، وزارت ته مې شا کړه د سولې په هلو ځلو بوخت يم، د کشالې د حل په جهت کې ددغسې يوه ملي حرکت د رامنځ ته کېدا په لټه کې اوسم.

راغلو د حوصلې خبرې ته، هغه دا چې زما لپاره ملي حرکت بايد له بهرني مداخلې خوندي وي، چې بهرنيو لاسوهنو زموږ ستونزې لاپسې غزولې، له دې پرته بله مخه نشته چې له هر ډول بهرني فشار پرته ملت تصميم ونيسي، او د حل په لار کې د خپلو ديني او ملي ارزښتونو له مخې ګام پورته کړي.

رابه شو ددغه حرکت عملي اړخ ته، هغه که د واقعي لويې جرګې له لارې ممکن، وې، هغسې لويه جرګه چې د ملت واقعي نمايندګان پکې راغونډ وي او که تر کوم بل عنوان لاندې جرګې يا شورا له لارې زه ورسره موافق يم، ستاسې بله غوښتنه روم ته زما د سفر او له پخواني پاچا سره ملاقات او دغه ډول نورې ليدنې، کتنې دي، چې د کشالې د حل په لار کې پخپل ځاى مؤثر کار دى، خو وړاندې له دې چې د لويې جرګې يا شورا له لارې د ملت اراده څرګنده شي د زعامت لپاره د اشخاصو انتخاب له وخت مخکې خبره ده.

پخواني پاچا د یوه سپین ږیري په توگه باید له ورانديې فعال اوسېدلی وای، ددې پر ځای چې نور ور وغواړي، دی خپله خلکو ته ورغلی او خلك یې راټول او یوه حرکت ته مخه پرانیستي وای.

زه دده په نقش سترگې نشم پټولی خو دې ته هم د خلکو پام راگرځوم چې د زعامتونو تصوراتي انتخاب ستونزه نشي اوارولی.

د سفر په هکله به ووایم چې دا کومه گرانه خبره نه ده... ما په خطرناکو شپېو کې د سولې په لار کې د سفر سختې گاللې همدا اوس د ننگرهار شورا او احمدزیو ترمنځ جرگې او روغې جوړې راگرځېدلی یم، خارجي سفرونه خو آسانه دي خو دغسې سفرونه دقیق پلان او پروگرام غواړي چې د وخت او فرصت په ترلاسه کولو ښایي له پامه ونه ایستل شي.

پخواني پاچا به دغسې حرکتونو کې خپل ځای او وزن لري، خو په چا تپل کېدای نشي. دغسې چوکاټي او کلیشه یې دریځونه او متفرق او کمزوري سیاستونه، پراخ، ملي حرکت ته زیان اړوي.

ته زما ورور یې زما نمایندگي کولای شې چې ته بهرنی نړی ښه پېژنې او سیاستونه یې له نژدې څارې، ستا نظر په دې برخو کې دقیق دی، ځکه خو به خپلو کې اړیکې ساتو که خدای کول دا وطن له روانې غمیزې وژغورل شي.

په پای کې یوځل بیا د وطن د نجات لار کې تاسې ته د توفیق دعا کوم، موفقیت او سلامتیا مو غواړم

جلال الدین حقاني

۱۳۹۳/۱۱/۲۹

## يادون:

د جنرال ساپي دا خبره پاموړ ده چې افغانستان کې له ملي او اسلامي اردو تېر شوو... دده په اند ملي اردو اوسنيو شرايطو کې نشي جوړېداى، چې تنظيمي لښکر، مجاهدين او مليشې د ملي اردو په روحيه نشي راټولېداى، دا به بيا هم تنظيمي، جهادي او ملېشه يي موخې، اړيکې او تمايلات ولري...

دى لکه د سويس سياسي نظام او اداره غواړي چې د امنيت لپاره يې پوليسو ته اړتيا ده...

دده په خبره ملي اردو، ملي حکومتونه جوړولى شي، چې ملي حکومت جوړ نشي ملي اردو نشي جوړېداى...

دا خبره د جنرال صاحب د فکر محصول ده، ځکه مې دده په نامه نوټ کړه.

# د پېښور صرافان؛ د کابل خبرونه

حيات اباد حويلۍ سره، سپېره ده- ددغه لويې حوېلۍ لسگونو لويو وړوکو ټوکې موړ شپېږ اووه تنه مېشت يوو- نه هغه د ځدراڼو خبره جمې بنداړونه، نه د جرگو مرکو شور زوږ...

اېرکنډېشنونه چې شپه ورځ لکه ښامار پښېدل گل دي. مېلمنو به برستنې اغوستې وې، اېرکنډېشنونه به چالان وو... ژمی به بخارۍ بلېدې، برستنې او چادرونه به يې غورځولي وو.

يو وخت دلته د ورځې پينځه منه غوښه، يو نيم من دال پخېده، له شپږ سوه زياتې ډوډۍ له نانواييو راچلېدې... لکه لنگر شپه ورځ چالان... د ټولو پر مخ دره پرانيستې وه... نه د تنظيم پوښتنه... نه د کارت... نه پيره، نه تلاشي... ان چې شاوخوا بوخت کډوال مزدورانو هم غرمه دلته اړولې شواى. د جرگې مرکو، جنگ، سولې... هر خه پته لگېداى شواى... اوس نه هغه د غټو ټسرو دستارونو درک شته... نه د

قوماندانانو، سرگروپانو د فتحو غورې دربې اوربدل کېدای شي... نه د جرگه مارو، مرکچیانو د نرخ، کاڼي کیسې...

لکه غمجنه چوپتیا، سره سنا د حویلۍ تقدیر گرځېدلی... زړه نشوای منلی چې دا د هغه حوېلۍ وي چې د ژوند سندره یې چېرې له شونډو نشوای لېرې کېدای، ۲۴ ساعته یې سترگو کې د ژوند رنگونه خوندي وو...

د ماښام له سنتو په سلام گرځولو طوطي ملا په پیکه سترگو له دروازې راگوري... سترگو کې یې د طنز او شوخۍ همېشنی ځلا تته ده... طوطي ملا له عادي خبرو سره د ټوکو او طنز داسې مرچ مساله گډوله چې تر ټولو ترینگلې خبرې یې هم غوړولی شوای.

طوطي ملا په سره لهجه په لنډو وایي ولمه (میلمه) دی... دا لومړی ځل دی چې د مېمله په راتلو دلته د چا څېره نیولې ښکاري...

نه د میلمه په اړه کومه شوخه تبصره، نه یې د څېرې د خدوخال کومه کچه پیمانه.... د..... نړیوالې راډیو خبریال تلولی ولاړ دی... د جوړ پخیر متحدالمال او تکراري ټکي لا پاتې وو چې په کړکیچو او نښتې ژبه د خبر لټون ته ور وگرځېد... په هغسې لالهاندۍ لکه په گرانه یې خپلې مدعا ته توري ټکي موندلی شوای. ما ورته د دمې وویل، خو ده په وار وار لاسي گړۍ ته په کتو همدا یوه خبره کوله:.... پروگرام ته نیم ساعت وخت پاتې دی.... نیم ساعت.....

کابل کې څه خبر دی...؟ د جگړې د ....

کوم نوی خبر لکه نه وي.... د مخابرې مسوول ته وروختو.... هغه څه له غره او څه له سمې ورته باد او یاد کړل...

لکه ډاډه نه اوسې... غواړې له ما واورې، ساعت ته گوري، په تلو تلو کې ژر ژر پوښتنې کوې... زه ورپسې یم د ډوډۍ ورته وایم، خو دی

هماغه پروګرام، پروګرام يادوي.

د مخه ښې لپاره ورسره وځم، دی همدلته خدای پاماني ته تېنګ دی... خو زه خپل مېلمه ته له کوټې مخه ښه نشم ويلی...

زموږ کش و ګير دی. دی مې راګرځوي، زه وړاندې زور وهم، په همدې کې تر دروازې ورسېدو، د پېښور يو صراف له خپل لنډکروزر سره ولاړ دی، خبريال ورسره ګاډي ته وخوت....

کابل کې جګړه ده... د ځوانيو لو ګډ دی، د مرګ ژوبلو، ويجاړيو قيامتونه راتېيږ دي. پېښور کې د کلدارو بازار تود دی. څومره چې کابل کې جګړه خونړۍ شي، هومره پېښور کې د کلدارو سوداګري توده خېژي... چوک يادګار کې له بيروبار څوک پل نشي اخيستی...

چې سرې ګورې لاس کې يې د افغانيو، کلدارو بنډل نيولی وي... هر کډوال صراف په مخ درځي، پر چوک يادګار سربېره د دبورډ نهر غاړه د ګرځنده صرافانو مارکېټ ګرځېدلی... د هر کمپ مهاجر بازار دغسې صرافانو په سر اخيستی....

زموږ يو ملګري چې کله به مو جمعيت کې په لوړه چوکۍ ناست موند، کله به يې رستوران پرانيستی و، د نهر پر غاړه يو مېز ته له کلدارو افغانيو سره ناست وي، ټک ټک پر ماشين حساب لګوي...

ورځ تر بلې، بلکې ګړۍ په ګړۍ د کلدارو افغانيو نرخ غورځي او لوړېږي. جګړه کابل کې، نرخ د کلدارو پېښور کې ښکته پورته ځغلي... نپوهېږم د کومې غاړې له پرمختګ د کلدارو او د کومې له په شاتګ سره د افغانيو بيه لوړه يا لوېږي....؟

ډېری دغسې تجارت کې ډوپه شول، سودا يې وختل... وايي دغسې يوه ډوپه شوې، جومات کې پر اوداسه د بل پښه مينځلو لپاره رانيولې

وه...

کابل کې د جګړو يو خبر د وينو څو کرښې، د مرګ څو ټکي پېښور کې د کلدارو افغانيو بيه غورځولی يا لوړولی شي...

يواځې خبريالان، ژورنالستان خبر پسې نه ګرځېدل، صرافان او د پيسو سوداګر هم په خبر پسې لالهاند دي...

صرافان خبريالانو ته اړ دي چې خبر يې د اسعارو بازار تود ساتلی شوای... خبر، خبر دی، اصلي وي که جعلي، رېښتيا وي که درواغ د کلدارو بيه يې لوړولی غورځولی شوای...

هغه مابښام زما ميلمه ژورنالست او د باندې ولاړ صراف لکه د همدغه بازار پټ او ښکاره سوداګر...

جګړه خبريال ته د خبر لپاره، جګړه صراف ته د کلدارو افغانيو د غورځېدا لوړېدا لپاره، جګړه .... ته د .... لپاره...؟

# مرده به دست زنده

له زړه سترې ځان سترى ښه دى، خو اوس مې د اسد دانش توره پر سر څرېږي ... د ده تر تيغ لاندې سا اخلم. تر ښکيلاک او زبېښاک لاندې يې ځان اړ گورم ... ځکه خو د زړه او ځان دواړو ستوماني را پيښه ده ...

څو کتابو يوه کمپيوټر ته يې کينولى يم نور مې وزر تړلى او بنکې را ايستلي دي ... زما کتابتون د ده ميلمستون او پخلنځى دى ...

لس نيمې بجې متې نغاړم ، ديگ کاسه راواخلم... ايله غرمنى چمتو کړم ...

دى په اسانۍ د ځېلو، رامولو نخچې، نسخې او حربې موندلي، ازمويلي او پلې کولى شي ...

در ترا ميگم، ديوار تو بشنو ... د يوه په وهلو بل ډاروي ... تفرقه بينداز حکومت کن ...

په دې برخه کې د ده تاکتيکونه او ستراتيژي په زړه پورې او خطرناکه دي... که وغواړي څوک ملگرى کړي، له ملگرتيا يې بله لار نلري ... که دښمني ته يې زړه شي، پر دښمنۍ يې ځان اړ گڼي ... لکه زبرځواک او نړيوال استکبار ...

يواځې زه نه يم د ډېرو سترو ستو، گرگو لکی يې تر پښه لاندې ده ... لکه د پيښور په ټتيو يې کښلي ... دلته د ډېرو غتو غتو ... وځي ...

اسد، پر يوه وخت سړی د دوستي او دښمني د تجربو په تکرار اړوي ... د امنيت شورا دغه دايمي غړی چې کله وغواړي د ويتو حق کارولی شي ... له ده سره په دوستی دښمنی دواړو کې احتياط اړين او حياتي دی ... دوستي او دښمني دواړه دده په خوښه... د زورور تر مخ مه تيرېږه د اس تر شا ... لکه هغه مافيايي باندست چې دوستي يې گرانه او دښمني خطرناکه وي ...

دی پر زخمو له مالگې دوړولو خوند اخلي ... کله مې چې پر کوم شاقه کار لکه د کاغذ ريمونه پر اوږه پر ځغاسته گوري ... په لوړ غږ دغه فلمي سندره را غبرگه کړي ... ښه ده چې پوکی وهي ستا نازکې شونډې نن ...

زه چې په مات زړه ور وگورم، وايي سخې سړوم ... ډېر په نخرو به خيبر بازار کې له موټره کوز او پر يونيورسيټي بک ايجنسی ورننوتې ...

داسې ښکاري د اسد مينه لورينه د نفرت لپاره ده، دی که يو څوک پر اوږو او سر خيژوي د دې لپاره چې بله ورځ يې له غورځولو خوند واخلي ...

ته به نه وې خير اسد به يو څوک تور ليست ته غورځولی وي ... د ده محاکمه او پرېکړه صحرايي ده چې له ده پرته يې نه څوک ماتولی او نه بدلولی شي ...

که ده د چا د ښو پرېکړه وکړه هغه له پرښتې پاک دی او که يې د چا د بدو حکم صادر کړ، تا به لکه په جمرو کې د شيطان خلی د وخته ډبرې پسې اخيستي وي ... د بل پر اوږه ټوپک اېښودو کې يې ښه کله

خطا شوې نه ده ...

محمد داوود وفا د پاړيينې لپاره د خوشال بابا يو شعر را ته پر ديوال لگولی:

په منصب پورې خــــوشال ختيک نوکر و
چې منصب ورخنې ولاړو اوس پادشاه دی

فاضل صاحب چې د ډيلي له سفارته په رخصتی راغلی و دغه شعر د ماتې اعتراف وباله ...

دی د اغيز فوق العاده څواک او هنر لري، د جمعې پر ورځ د ده تشه ښه محسوسيږي پنجشنبه د ده ټولې نخرې ناکردې په جينگو داړو تيروم... که خدای پر سر حاضر کړي جمعه دوکان پرانيزي، خو له وعدې سره بې درکه وي ...

بيا هم جمعه ده، يواځې يم ... تر غرمې د اسد په انتظار تيره شوه... د ډکی کوڅه کې هر يوه ته څير څير گورم، يو ښکلی ځوان د دوکان تر مخ تير شو، څيره يې اشنا ده ... بيرته راوگرځيد ... ژور راته گوري، وايي ننگيال يې ... ما د سترې مشي لاس ورکړ ...

کابل کې د مجاهدينو له واکمنی وروسته اطلاعاتو کلتور وزارت کې د فرهنگ مجلې چلوونکې، خو کيسه کې يې نه و، خندنی، سرشار، بشاش ځوان ... قانع صاحب ويل د احمدشاه مسعود د تره زوی دی ... والله اعلم...

له لنډې پوښتنې سره وايې د مسعود او ر باني حکومت هغسې دغسې... چې ننگيال څان پر کتابفروشي اړ کنې ... د داسې حکومت ...

# زېره کودتا

له عصمت قانع سره په غضب اوښتی یم، گټه یې خپله وي، زیان زما غاړې ته غورځوي... کیسه خواني کې لکه یرغه آس کښته پورته ځغلي... نه کار نه کتار... دا کوم، هغسې به وکړم...

اسد یې کونه کې نور پر ورکیږدي، بیا دې قانع څوک تکیه کړي...؟

قاضي صاحب کامه وال "کاف لام" ته وایي دلته پېښور کې مساپر پروت یم... ولا که مې یوه ورځ چا پر لاسو اوبه را اچولې وي، که تاسې کوټې ته راغلي وای ما به هوټلانو ته پرېښي وای...؟

قاضي صاحب په بې توپیري ورته وایي: څه درباندې خبر ووکه نه پر... خو به مو اوبه در اچولې وې.... حمیدجان راته وایي یوه ورځ به ددې سړي له لاسه په بلا اوښتی وي... خو له قانع خلاصی نشته... وایی له هغې بلا چې خلاصون نه لري دوه ځله ورته خانده... ما هم قانع ته خوله جینگه نیولې وي... دده امر زما اطاعت... چې یاد یې کړې ډگ درته ولاړ وي، حمید جان وایي خرسه یاد کو، چوبه بیگي...

له یوې مودې یې خبره نیولې او وضعیت ترینگلی دی... نه د دوري لوگري سندرې شته نه د خولې طبله...؟

لکه د تش لاس په دښمني اوښتی... غوسه یې سرته ختلې... په ټولو پسې لګیاوي، هر یو پړ بولي، ګناهګار ورته ښکاري، غواړي د خپل محرومیت او ناکامی انتقام واخلي....

خو نن یې خېره غوړېدلې، نوې کورتی یې رانیولې، ورته وایم کمت بچه افضل...؟ وایي: څه کمت، لنډا بازار کې مې رانیولې... دده چې جیب غوړ شي بیا یې کیسه کې نه وي پر سر یې بادوي. له حفیظ الله یې په ډډه راته کړه: غواړي د جمعیت دفتر لاندې کړي، د جمعیت مشرتابه اعلان کړي...

وایم که ټوکه کوې... یوه اوونۍ ورک دی، چې راغی ټیوټا جیپ ورسره دی... وایي سپینې شګې ته تللی وم...

سهار له موړ مخکې د دوکان درې ته ولاړ دی... وایي بېګا حمله ده... خو چې لغمانی درنه خبر نه شي... موړ دوکان پرانیست... یو ساعت پس قانع راغی... وایي هرڅه برابر دي، مطبوعاتو او مقاماتو سره مې خبره شوې...

یوولس بجې چې راغی بړ بړ لګیا شو، ټول راز یې لغماني ته پخپله برسېره کړ...

راته وایي مصروف یم، ستړی یم، ماغزه مې کار نه کوي... اعلامیه راولیکه...

څغله...

خو قانع جدي دی، په وتو کې یې بیا راته کړه.. یو ساعت وروسته راګرځم چې اعلامیه دې لیکلې وي...

داسې نه کیږي...

څنګه نه کیږي، د ملګرو ملتو پلان پر تخریب کابل کې کودتا کېدای

شي... دلته نشي کېدای...؟

یو ساعت وروسته چې راورسېد... وایي اعلامیه دې څه کړه...؟

د څه شي اعلامیه...؟

د (......) اعلامیه... نه مې و درته ویلي...

دا سړی لکه رښتیا کوي...

هله ژر کوه لیکه...

قلم یې راویوست، پر حفیظ الله یې د کاغذ غبرګ کړ.

...یوه خبره دده بل تکی زما...

قانع اعلامیه واخیسته، پخپل قلم یې سرلیک ورته وکیښ...

وایي بخشش دې وي، څه پته لګي برخورد وشي... که ولګېدم، مړی مې کلي ته یوسه... که وس دې رسېده د ورېرو پوښتنه دې کوه، کوټه کې یې د تلیفون شمېره راکړه: ۴۴۲۵۶۸ یو لنډکی وصیت یې وکړ، لکه شعر وایي، په دې تکو: تور عصمت قانع له طاغوت خپل بغاوت اعلانوي... نور یې ستوني ډک شو... په جذباتي خبره له ځایه ولاړ شو... یو بل ته مو غېږ ورکړه...

د پلان له مخې قانع ښایي د ماښام په خړه ځمکنیو کې د جمعیت پر دفترونو او ملکتیونو برید کې د جمعیت نوی مشرتابه اعلان کړی وای...

سهار چې پاځېدو اخبارو په غټو تورو د قانع د کودتا خبر چاپ کړی... د ځوان قیادت په اعلان به جمعیت له ستمي، ژبنی کړنلارې، سکتارستي خاصیت او کورنی جګړې راوګرځي...

اسد د اخبارونو ګېډی لاس کې نیولې... وایي د کافر بچي خو رښتیا کړه...

## د جمعیت اعلامیه کې د نوي

## مشرتابه اعلان

د افغانستان اسلامي جمعیت د یوه مؤثر جهادي ځواک په توګه د هېواد د آزادۍ په لار کې په پوځي او سیاسي ډګرونو کې فعال نقش درلود.

د جمعیت کدرونو په فرهنګي، پوځي او سیاسي برخوکې د مناسب موقف او موقعیت له مخې د هېواد د نجات او بیارغونې په لار کې هر ډول خدمت او قربانۍ ته ژمن او د ملت د پرګنو له ملاتړ برخمن وو.

له بده بخته چې په جمعیت کې د نظار شورا په نوم یو سکتارستي فرکسیون د خپلو توطئو له مخې وتوانید دجمعیت، هېوادنیو ګټو، ځمکنۍ تمامیت او ملي وحدت پر ضد داسې سازشونه رامنځ ته کړي، چې د جمعیت مبارزاتي قدامت او اصالت یې له سوال سره مخامخ کړی و، داسې معلومېده چې ګنې جمعیت هغه دی، چې په کابل کې د نظار شورا په وجود کې د وطن او خلکو پر ضد په کرکجنو او دښمنانه اعمالو بوخت دی، له همدې ځایه ده، چې د جمعیت اسلامي فعالین د ملت او نړیوالو په وړاندې اعلانوي:

ځرنګه چې استاد رباني د نظار شورا له خوا په کابل کې برمته شوی اجرائیه شورا له منځه تللې او درې تنه غړي د دغه سکتارستي فرکسیون له خوا ترور شوی د جمعیت فعالین به په نژدې راتلونکي کې د ولایتي شوراګانو د تدویر له لارې له دغه دردوونکي حالت د وتلو اساسي لار په ګوتو کړي، څکه خو ټول هېوادوال او نړیوال باید په دې خبر وي، چې په کابل کې د قدرت د تمثیل مدعیان د جمعیت له حقوقي او سیاسي

اعتبار نه بې برخې دي، جمعیت به دېر ژر د الله تعالی په مرسته او د ملت په ملاتړ او ډاډ روانې فاجعې ته د پای ټکي په پیدا کولو کې د ټولو اسلامي او ملي اړخونو د فعال ګډون او همکارۍ له مخې په جدي اقداماتو لاس پورې کړئ.

و من الله التوفیق



## د پاڼ پر ژی:

# واقعي يې لا پاتې دي....؟

د جهاد له پیله سترگې پخواني پاچا ته اوښتې، خو د کډوالو ترمنځ دده سم استازيتوب نه و، نه شته، د ولسمل افغان مجاهد او مجاهد ولس دغه ډگر کې یواځینی ستیج پېژندل کېده، په نورو ټکو ولسمل صاحب د روم سیاست پېښور کې ژوندی ساتي، پیر صاحب، حضرت، محمدي حساسو او ټاکونکو شېبو کې د پاچا مخالفت ته ورگرځېدل په خوله یوه په زړه بله...

دوی حقیقت کې پخوانی پاچا د خپلې ننگې لپاره کاراوه، چې د سخت دریځو پر وړاندې یې یوه تکیه موندلې وي.

د پخواني پاچا هیئتونو د اخوانیانو له وېرې د پیر، حضرت او مولوی نبي له دفترونو او میلمستیاوو نوره مخه نشوی موندای.

له امید او انتظار پرته پاچا بل گام پورته نکړی شوای ځکه خو بهر کې کومه پراخه سیاسي جبهه رامنځته نشوه، آن چې د خپلو صدراعظمانو، وزیرانو، سفیرانو، جنرالانو او... همغږي یې هم رامنځ ته نکړای شوه، پاچا د ډاکتر نجیب الله له وړاندیز مخ واړاوه، گویا یو طلایي چانس یې له لاسه ورکړ، په حقیقت کې پاچا د یوې پراخه سیاسي جبهې جوړېدو مخه ډب ساتله، چې دده په شتون کې چا ددې زړه نشوای کړی، یا یې اړتیا او شونتیا نه لیدله.

ډاکتر صاحب صمد حامد وایي د ظاهرشاه په شتون کې د کوم حرکت مخه نه ویني.

پروفیسر رسول امین وایي: پخواني پاچا د راتلو زړه پښتورگي نلري، موږ اخوانیان پرې ډاروو...

پاچا ډېرې چانسونه، فرصتونه بایلل لکه په تیاره یې غواړي، مضر احتیاط زولنې ور اچولې، یواځې اعلامیو، پیغامو ته یې کار ویلی، سم استازي او استازیتوب یې رامنځ ته نکړای شو.

جنرال ساپي ویل: روم کې یې کوم پیغام که اعلامیه کښله، له سهار تر مازیگره لگیاوو، په تورو، ټکو، جملو یې سلا نه راتله، دومره کاغذونه یې خېرې کړل، چې کاغذ داني یې دوه واره ډکه کړه.

خپلو کې په فرانسوي گډ شول، خو د اعلامیې په ټکو نشوی سلا کېدای... چې روس ونه پاریږي، چې امریکایي بده ونه گڼي، چې سعودي خوا بده نکړي، چې د پاکستان اندیښنه رامنځ ته نکړي، چې ایران غبرگون ونه ښیي، چې د اخوانیانو غوسه و نه پاروي چې...

دغه امید او انتظار د سیاسي قیادت د زرغونېدا مخه ډب او خطرناک انتخاب ته مخه پرانیستې، چې ولس د تنظیمو او جگړمارو د

غضب او عذاب زغم له لاسه ورکړي.

که پخوانی پاچا راوړاندې نشو چې زما په اند نه شي را مخ ته کېدای، د خطرناک انتخاب مخه څوک نشي نیولی، تنظیمي جګړه په غرغنډو ده، د کرارېدو نه ښکاري د خپلو په لستونو کې بهرني لاسونه ډېر اوږده غزېدلي...

تنظیمونه او جګړه مارو په زور او توطئو ایمان خپل کړی پر خلکو او ملت یې باور زیانېدلی...

د جګړو پر بل کړي اور چا د لېتی پخېدو متې نغښتې، چا د کیچړي پخولو بډې وهلې، څوک حلوا پخولو ته له ژبو تکونه باسي، ګوره ګوره وایه خوله به دې خوږه وي.

کونډه د لېوره په تمه له واده ووتله... ژر ده ظالم تربوران پرې وروغورځي...

یوه بنډار کې له دې پوښتنې سره چې حالات به کله سم شي...؟

یو په بر بر لګیا شو، هله چې واک واقعي مجاهدین ترلاسه کړي...

یوه کندهاري ملګري پخپل ځانګړي اکټ وویل: شه واقعي یې لا پاتې دي...؟

دا واقعي؟ څوک کېدای شي، څومره واقعي پاتې دي...؟

ملګري ملتونه له پیله افغان ربړه کې ښویېدلې، کور دودیز، بنین سیوان او میستري هر یو د ترکستان په لار ځانونه ستړي کړل... امریکا غول په متیازو وینځي... که څهٔ هم میستري لومړیو کې ښه روان و، کوم تور پرې ونه لګېد، خو د سیاسي ګنګپانو او جهادي کیسه بورانو له لاسه پنچر شو... تر هغې چې د کوټې سرینا هوټل کې قاضي وقاد، مولوی تره خېل ..... خصي کړ.

(۴)

# پيښليک

## ۱۹۹۴ جنوري لومړۍ:

کابل درنې جګړې لړزوي، جګړه د جنرال دوستم او جمهور رييس د ځواکونو ترمينځ غځېدلې، حزب هم په جګړو کې برخه لري، د حزب وياند دغه جګړې ملي اسلامي قيام وباله، مجددي هم د همغږۍ شورا خواره برخه ګرځېدلې، د حزب وياند وويل، جګړه له ارګ سره روانه ده، رباني د دوستم پر ضد جهاد اعلان کړ، جنبش يې د کمونستو پرچميانو برخه وبلله، استاد رباني لکه اوښ خپلو متيازو کې ښويېدلی.

حضرت صاحب په وينا د هر هغه حرکت ننګه کوي، چې د رباني ناقانونه حکومت پر خلاف مقاومت پيل کړی، مزارو فارياب کې هم جګړه غځېدلې.

جنرال همايون فوزي دغه جګړه د رباني ناقانونه حکومت پرخلاف ملي قيام وګڼه، حرکت د رباني ملاتړ اعلان کړ، سيّاف د رباني په ننګه ودرېد، مولوي خالص د ملېشو او کمونستانو د مخالفت له امله د رباني پلوي وکړه، حزب د کابل، ګارنېزيون او هوايي ډګر دنيولو ادعا وکړه.

جمعيت اعلان کړه، چې ياغي باغي ځواکونه يې پر شا تمبولي، ان چې د غازي ستديوم د نيولو خبر يې ورکړ، د دولت په وينا جګړه د

بالاحصار شاوخوا روانه ده، جنرال همایون فوزي وويل: د حزب وحدت جنګیالي د دوی ترخنګ دي، د رباني مسعود ځواکو ته يې درانه زيانونه اړولي دي.

د دوستم ځواکونه د شپې تياره کې د پخواني رژيم پر مرکزي کمېټه چې له حرکت انقلاب اسلامي سره ده وروختل، د ملايانو ځنې، ږيرې يې باد او د سترې محکمې رييس مولوي محمد شاه فضلي، پوهنې وزير مولوي جليل الله مولوي زاده يې چاپې، جېبونه او بکسونه ورتش کړل.

د احمد شاه مسعود ځواکونو مقاومت وکړ، ملېشه يې په شا وتمبول، وزير اکبر خان مېنه کې يې د دوستم فرهنګي دفتر لاندې کړ، د دوستم ځواکونه بالاحصار او مرنجان غونډۍ ته راټول او وزير اکبر خان مېنه او هوايي ډګر بمبار کړ، د هوايي ډګر يوې ډيپو اور واخيست.

د دوستم نيول شوي افراد ژوندي اور ته وغورځول شول، د دوستم ملېشې چې مرکزي کمېټې ته رسېدلې وې، د زغروالو ځواکونو د ځنډ له امله له تلفاتو وروسته په شا شول. ددغه جګړې ۸۰۰ زخميان د سره صليب روغتون ته وړل شوي، يوه کندهاري ملا وويل: د رباني حکومت د الله تعالی پر حکم مسخرې جوړې کړې، کله حکمتيار د دوستم پر خلاف د جهاد اعلان کوي، او رباني يې د مسلمانۍ تېکه اخلي، بله ورځ يې رباني پر ضد د جهاد فتوا ورکوي، حکمتيار ځنګ پورې نيولی وي.

دا شل مياشتې د دوستم پر ضد جهاد فرض نه و، اوس فرض شو، د حزب استازی حاجي فريد رسنيو ته وويل: پر چهار آسياب د نظار شورا د بريد مخه د دوستم ځواکونو د بالاحصار په برخه کې ونيوله، هغه و چې جګړه پيل شوه.

## د جنوري ۲:

جګړه روانه ده، د جنرال دوستم وياند د رباني مسعود حکومت په دې پړ وباله، چې يوازې د تاجکو لپاره کار کوي، له همدې امله دوی جګړه کې برخه واخيسته، چې سياسي نظام ته تغير ورکړي، چې لړکيو ته د منلو وړ وګرځي، اسلام آباد کې کابل سفارت خپله اعلاميه کې د دوستم او حکمتيار ائتلاف ناولی وباله، دوستم يې خلکو، هېواد او دين ته په خيانت تورن کړ.

همغږې شورا يوه اعلاميه کې له رباني د فوري استعفا او جهادي مشرانو په توافق د مؤقت حکومت جوړېدو غوښتنه وکړه.

ملي اسلامي محاذ روانه جګړه د واک جنګ وباله او سملاسي اوربند يې وغوښت، خالص له دې امله چې جنرال دوستم له کمونست رژيم سره پېيلی او په لوټ تالان پړ دی د رباني ملاتړ تکرار کړ.

دحزب وياند رسنيو ته وويل: جګړه نظار شورا د خپلو کمونستو انډيوالانو په ملتيا د حزب پر ضد پيل کړې، د همغږۍ شورا پرمختګ يې د جهاد په بري کې ستر ګام وباله.

محمد يونس قانوني وايي: د ګلبدين، دوستم او کمونستانو مثلث د اسلامي دولت پر ضد توطيه او کودتا وکړه، چې له شرمېدلي ماتې سره مخامخ شوه، ده د جنرال دوستم ځواکونه بدنامه ملېشې وبللې، چې ټول ملت يې وار له مخه پر ضد درېدلي.

انجينر مهدي وويل: برهان الدين رباني د ترکيې سفر پر مهال جنرال دوستم خپل ځای ناستی ټاکلی و، اوس په کومو سترګو دده پر ضد د جهاد خبره کوي.

## جنوري ۳:

جګړه په وحشت روانه ده، دواړه غاړې د پرمختګ دعوا کوي، بي - بي - سي د میرویس جلیل له خولې د حکومتي ځواکونو د برلاسي رپوټ ورکړ، په واټونو، کوڅو کې ځای ځای مړي پراته دي، د مړو جسدونه، هملته تر خاورو لاندې کېږي، روغتونونه تر دهلېزونو له زخمیانو ډک دي، په چپرکټونو دوه، درې تپیان اچول شوي، په غولي هم زخمیان پراته دي، درمل نشته.

رباني له ارګه وتلی، د ډکو سمڅو کې یې اړولي.

## جنوري ۴:

جګړه نوره هم سخته شوه، تر دې چې روغتونو ته زخمیان نه شي رسول کېدای، یوازې د سره صلیب کار کوونکي په دغو هڅو لګیا دي، سره میاشت د دولت پر ګټه په جګړه بوخته ده، خپلو امبولانسونو کې د تپیانو پرځای دولتي چارواکي، وسلې او مهمات لېږدوي...

## جنوري ۵:

میرویس جلیل رپوټ ورکړ، چې د خواجه رواش هوایي ډګر په بشپړه توګه دولتي ځواکونو لاندې کړ، په رپوټ کې د جګړې سیمه بالاحصار، مرنجان غونډۍ، قابل بای، زاړه مکروریان ښودل کېږي، سیاف د رباني مسعود په پلوۍ جګړه کې برخه لري...

ډګر جنرال عبدالمومن چې د دوستم پوځي مرستیال و، د الوتکې چاودنه کې ووژل شو، پړه یې پر دوستم غورځېدلې، د دوستم هوایي

ځواکونو وزیر اکبر خان مېنه بمبار کړه.

نسیم مهدي د خواجه رواش هوايي ډګر نیول رد کړل، دده په وینا ختیز اړخ کې یې دوی پوستې بېځایه شوې، د حزب ویاند قریب الرحمن سعید وايي برې د دوی دی، دہ د بي - بي - سي له خبریالانو ګیله وکړه، چې ګنې د حکومت د فشار له امله د حکومت په خوښه او ګټه خبرونه ورکوي.

نسیم مهدي په ارګ د بمبارۍ خبر ورکړ، همغږې شورا خبرداری ورکړ، چې رباني باید ۴۸ ساعتو کې استعفا ورکړي.

همغږۍ شورا د حکومتي ځواکونو له خوا د خواجه رواش نیول ومنل، چې د اکمالاتو مخه یې تړل شوې وه، خو بالاحصار کې له لوګر او چهار آسیاب د حزب له خوا د اکمالاتو مخه پرانیستې ده.

## جنوري ٦:

د حزب ویاند قریب الرحمن سعید: الحمد لله، جګړه په شدت سره روانه ده! د دولت الوتکې د حزب او د دوستم پر ځواکونو او سیمو بمونه غورځوي، دوستم د لوګر پوخ سړک د رنوې کرښه ګرځولې، موټرانو جلا خامه لیکه ابستلې. سید اسحق ګیلاني وايي روغتونونه فلج دي، یوازې څلور سوه بیز روغتون نوکی فعال دي، خلک کلا بند دي، د جګړو له سیمې نه شي وتلی، چې لارې تړلې، نقلیه وسایط نشته، د جګړې له ساحې د وتلو مخه ډب ده.

هره دقیقه یو راکټ او توغندی لګېږي، ډېری په ملکي او مېشتدنې سیمو غورځي، جنرال همایون فوزي له کابلیانو وغوښتل، کورونه تخلیه

او له سیمې ووځي، چې په راتلونکو ورځو کې د نویو بریدو پلان لري...

حزب وحدت جګړه کې ناپیلی دریځ اعلان کړ، یوه اعلامیه کې یې یوازې یوه ورځ د سوء تفاهم له امله جګړه کې ځان ښکېل وباله.

## جنوري ۷:

کابل کې د ورېځې او واورینې هوا له امله نسبي ارامي ده، که څه هم د درنو وسلو ډزې اورېدل کېږي، خو د ګولیو د ږلی لمن ټوله ده.

د جګړې غاړو د سهار له ٦ بجو ۲۴ ساعته اوربند اعلان کړ، چې بهرني دیپلوماتان له کابله ووتلی شي، د حزب ویاند ورسره د زخمیانو د درملنې، ښخولو او خوندي سیمو ته د خلکو د لېږد خبره هم مل کړه.

خلک لږ و ډېر بازار ته راوتلي، چې د خپلوانو عزیزانو خبر واخلي، د نادر شاه مېنې (زړو مکرویانو) نوي سلنه وګړي ووتل، په کورونو کې توپکیانو اړولي، څه یې چې موندلي هغه یې لوټلي دي.

## جنوري ۸:

دولت یو ځل بیا تبلیغاتي څپه راپورته کړې، په یوه اعلامیه کې دولت څرګنده کړې، چې غیر دیني ډلې به منحل کړای شي، د اعلامیې له مخې جنبش د خلق دموکراتیک ګوند سره پېیلی، په اعلامیه کې راغلي، جهاد د حزب اسلامي پر ضد نه، د ملېشو پر ضد اعلان شوی.

## جنوري ۸:

په ۲۴ ساعته اوربند کې بهرني دیپلوماتان له کابل ووتل، دواړو غاړو

يوه بله له اوربند په سرغړونه پره وبلله، ديپلوماتان د تورخم له کرښې واوښتل، ملکي وګړو هم د دوی په کاروان کې له کابله د خوندي وتو مخه ومونده، ډاکتران د (۴۰۰) تنو د وژنې خبره کوي، ميرويس جليل له بي - بي - سي رپوټ ورکړ، چې د ښار له لوېديځ او جنوب لوېديځ سلګونه کورنۍ خيرخانې او نورو برخو ته لېږدېدلې.

دغو کورنيو غوښتنه کړې، چې د ملګرو ملتو قواوې دې راشي او هېواد دې له دغو بېرحمو لوټمارانو وژغوري، کډې پلې ځغلي، ښځې پنډې، ګنډې او د کور سامان په خپلو اوږو لېږدوي، ځينې لاسي کراچۍ کاروي، دوی چيغي وهي چې نه ډوډۍ غواړي، نه کور خو دغو جګړمارو ته چې په هرڅه عقيده لري د هغه روی وړاندې کوو، چې نور خلک لوټ او بې عفته نه کړي.

د بهرنيو چارو وزارت مرستيال حامد کرزی د ملي امنيت لخوا ونيول شو.

## جنوري ۹:

د توغنديو او راکټونو خال خال ډزې اورېدل کېږي، عزيز مراد وويل، له دوستم سره خبرې نه شي کېدای، خو له حکمتيار سره خبرو ته چمتو دي. نرخونه څلور برابره لوړ ختلي.

نژدې ۵۰۰۰ کورنۍ جلال آباد ته په لېږدېدو بېلا بېلو دښتو کې اړولي، ځينې په موټرو او سروېسو کې مېشت دي، دولت د جنرال دوستم پر ضد د کفر او بېدينۍ ټاپې لګوي، جنايتکار يې ګني، چې کلونه يې د روسانو غلامي کړي، خيانت او جنايت يې تر سره کړی، پر

کندهاریانو د جنایتکارو ملېشو د ظلمونو یادونه کوي، دغسې یې نورو ولایتو کې هم د ملېشو جنایات رابرسېره کوي، دده د فحشا او عیاشۍ فلمونه ښیي، دولت وایي دوستم باید څو واره په اعدام محکوم شي، له کابل راډیو تلویزیون په وار وار دغسي مطالب خپرېږي، دوستم لوټمار او ملحد یادېږي، د سرکاري تبلیغاتو له مخې دولت دده له ګنا تېر شو، خو دی د لستوڼي مار وخوت، د دغو تبلیغاتو له مخې دوستم د خلق ملحد ګوند د جنبش تر نامه لاندې فعال ساتي، د دوستم، پرچم او ګلبدین مثلث غندي.

## جنوري ۱۰:

کابل کې درنې جګړې روانې دي، ملګرو ملتو سرمنشي له ټولو ډلو وغوښتل څپل استازي اسلام آباد ته ور ولېږي، چې اوربند ټینګ او د سیاسي اواري پر لارو چارو غور وکړي، ده پر ټولو اړخونو غږ وکړ، په خپل ملت رحم وکړي، ملګرو ملتو له افغان آزادو شخصیتو غونډه کې دګډون غوښتنه وکړه، د نیوز ورځپاڼې خبریال وویل: کابل کې یې پر واټونو د مړو جسدونه او پر وینو لړند جامې لیدلي، ان د موټرو ټیرونه هم په وینو سره وو.

د تورخم پر کرښه د کډوالو (۹۰۰) کورنۍ غونډې دي، د پلخشتي جومات هم پر توغندیو لګېدلی، پر منار یې ګنې ګولۍ نښتي، غالۍ یې وار له مخه لوټ شوې.

## جنوري ۱۱:

کابل راډيو د ګلبدين، دوستم او کارمل د مثلث په اړه تبليغات لري، بالاحصار، مرنجان غونډۍ، بمبار کړای شول، همغږې شورا اعلان کړه، تر هغې چې رباني استعفا نه وي ورکړې، د اوربند په اړه خبرې نه شي کېدای، کابل راډيو حکمتيار منافق او دوستم ملحد او کمونست ونومول.

د بګرام هوايي ډګر باندې بمباري وشوه، پاکستان له جګړې د تښتېدلو کډوالو لپاره د تورخم دره پرانيسته، د نويو کډوالو لپاره د نويو پاڼو يا کارت اعلان وشو، چې له پخوانيو هغو سره يې توپير وکړای شي، د بي بي سي ويليم ري او ميرويس جليل له کابله ووتل، دوی د کډوالو په کاروان کې جلال آباد ته ورسېدل، کډوالو شپه د سراج العماره بڼ او ثمرخېلو ډاګ کې تېره کړه، ميرويس جليل وايي د احمد شاه مسعود پلويان پرې تور لګوي چې له حکمتياره يې ډالر اخيستي، د حکمتيار ډله يې له مسعود د پيسو په اخيستو تورنوي.

اسلامي کنفرانس د سولې هڅې پيل کړي، صديق چکري د جمعيت او حاجي فريد د حزب استازيتوب کوي، ابراهيم بکر او حامد الغامد تر مشرۍ لاندې د خبرو لومړی پړاو پاکستان کې تېر شو، جمعيت څرګنده کړه، چې له دوستم سره خبرې نشي کېدای، خو له حزب سره په دې شرط چې له ملېشو راوګرځي خبرې کېدای شي، د رباني حکومت د دورې په پای ته رسېدو د ملګرو ملتو او اسلامي کنفرانس تر نظارت لاندې ټاکنې وشي.

حزب په ډاګه کړه چې د ټولو کشالو منشا رباني دی، بايد سملاسي

استعفا ورکړي، چې د سولې پخوانۍ هڅې هم دده له امله ناکامې شوي دي.

## جنوري ١٢:

کابل کې ځمکني او هوايي جګړه روانه ده، د جنرال دوستم الوتکو پر حکومتي سيمو بمباري وکړه، دولت ادعا وکړه چې د دوستم دوې الوتکې يې نسکورې کړي دي، د حکومتي ادعا له مخې يې تر اوسه دوولس الوتکې غورځولي، يا بګرام کې کوزې شوي دي، پاکستان د تورخم دروازه د افغان کډوالو پرمخ بېرته وتړله، د دوستم الوتکو د لوګر د سقاوې دښتې پوخ سړک د ړنوي کړښه ګرځولې، ځمکنۍ ترافيک پر دښته کې خامه سړک کاروي.

## جنوري ١٣:

کابل کې جګړه روانه ده، د پاکستان جمهور رييس او صدر اعظم په جګړه کې ښکېلو غاړو، د اور بند غوښتنه کړې، حزب بيا هم د رباني د استعفا شرط ايښی، دولت ښرګنده کړې چې له ملېشو سره خبرې نه شي کېدای، البته له حزب سره خبرې په دې شرط مني، چې له ملېشو راوګرځي...

دروازه تړلې، تورخم کډو نيولی، د صرافي شهزاده مارکېټ، لوټ او سوځول شوی...

سرکاري راډيو د وحشي دوستم، ياغي ګلبدين، ملحد کارمل د مثلث په غندلو لګيا ده.

## جنوري ۱۴:

کابل راډيو وويل: د اسلامي دولت اتلو ځواکونو مرنجان غونډۍ او بالاحصار کې د دوستم ګلبدين پر قرارګاوو وژونکي ګوزارونه وکړل.

په کابل د ويجاړوونکې جګړې لمبې بلې دي، تورخم دروازه تړلې، د رحيم الله يوسفزي په وينا د جلال اباد پنډغالي کې خلک پر تش ډاګ پراته دي، نه خېمې شته نه د خوړو درک.

زرګونه کورنۍ جلال اباد ته لېږدېدلي، حکمتيار له بي - بي - سي سره مرکه کې د رباني پر استعفا ټينګار وکړ، ده وويل چې د بنين سيوان طرحې ته ورته موقت حکومت دې رامينځته کړای شي، دده په وينا له دوستم سره يې وار له مخه ائتلاف نه و کړی، پر يوه وخت پر دواړو د جګړې تپل دوی ګډ مقاومت ته راکاږل.

## جنوري ۱۵:

سرکاري راډيو پر له پسې خبر ورکوي چې د اسلامی دولت هوايي او توپچي ځواکونو د ګلبدين، دوستم د تجمع مرکزونه په مرنجان غونډۍ او بالاحصار کې تر سختو ګوزارونو لاندې نيولي، د دې په مقابل کې د ګلبدين دوستم ملېشو له خوا د ښار د استوګنې په سيمو راکټي او توپچي حملې او بېرحمه بمباري وشوه.

انجينر احمد شاه احمدزي د برهان الدين رباني پيغام د پاکستان جمهور رييس ته يوور، پيغام کې له پاکستان د اوربند په ټينګښت کې د مرستې غوښتنه شوې.

## جنوري ۱۶:

ولي خان مطبوعاتي کنفرانس کې غوښتنه وکړه، چې د افغان کډوالو پرمخ د تورخم دروازه پرانيستل شي، ده وويل: پاکستان کلونه افغان مهاجرو ته پنا ورکړې، د کابل له جگړو مهاجر هم افغانان دي.

د سعودي بن باز د حکمتيار د بغاوت فتوا ورکړه.

ورځ نسبتاً ارامه وه، د تلوېزيون غونډۍ بمبار کړای شوه، د حکمتيار يوه استازي پېښور کې وويل: يو شمېر مشهورو قوماندانانو لکه مولوي صديق الله، محمد انور او نورو د مسعود پيغام چهار آسياب ته وړی، په پيغام کې راغلي د حزب اسلامي، مولوي خالص، حرکت، جميعت، محاذ دوه دوه استازي په يوه پلاوي کې راټول او د اوربند لپاره يوه طرحه او پرېکړه اعلان کړي.

همغږۍ شورا اعلان کړه، چې خبرو ته چمتو دی، خو په دې شرط چې رباني خپله استعفا اعلان کړي.

ننگرهار کې له کابل لېږدېدلي کډوال په وچ ډاگ پراته دي، ايله نن د ملگرو ملتو مرستندويه کاروان له پاکستان (۲۰۰۰) خېمې پر دوی ووېشلې...

حامد کرزی د ملي امنيت له بنديخانې وتښتېد، ده هغه وخت د تېښتې مخه ومونده چې د يوه راکټ په لگېدو د ودانۍ يوه برخه ونړېده.

## جنوري ۱۷:

د وريځې او واورو له امله جگړه سخته نه ده، بمباري ونه شوه، قوماندانانو د حقاني په مشرۍ له استاد رباني سره وکتل، استاد رباني

نوې خبره نه درلوده، په اوبو کې يې د لوټې ايښودو او پل اخيستو لوبه کوله.

د جنبش فرهنګي مسوول وويل: همغږۍ شورا کې له حزب، جنبش، نجات جبهې سرېره د حرکت او محاذ قوماندانان هم مله دي.

پير ګيلاني د کابل جګړو کې د خپلو قوماندانانو ګډون رد کړ، ده د ملګرو ملتو او اسلامي کنفرانس تر چتر لاندې د ربړې د اوارې په اړه د نويو ګامو غوښتنه وکړه، پير ګيلاني وويل: ګاونډي هېوادونه اوارې نه شي راوستی.

د ايران استازي طاهريان اسلام آباد کې د افغانستان په اړه له خبرو وروسته تهران ته ستون شو.

اسلام اباد کې د کابل سفارت اعلاميه کې د حامد کرزي نيول تېروتنه وبلل شوه.

حامد کرزي پر سياسي نماينډګيو نيوکه وکړه، چې د جمعيت په پلوي تبليغات کوي، دده په وينا سياسي نماينډګۍ ښايي د ملت استازيتوب وکړي.

## جنوري ۱۸:

جګړه يو ځل بيا سخته شوه، محمدي، سياف او خالص د دوستم پر خلاف د اعلان کړي جهاد ننګه وکړه، د سولې لپاره د قوماندانانو شورا توافق ته ورسېده، چې په جګړه کې ښکېل اړخونه دې خپل ځواکونه شاته کړي، يوه عبوري اداره دې جوړه کړای شي.

پخواني پاچا د ملګرو ملتو تر څارنې لاندې د لويې جرګې غوښتنه

وکړه، د پخواني پاچا وياند وزيري وويل: د حضور اعليحضرت اعلاميه جدي ده، ملل متحد بايد چمتو اوسي، خو قواوې يې بنايي مداخله ونه کړي، چې صوماليا او کمبوديا کې يې ښه پايلې ونه شواى لرلى.

دده په وينا ملگري ملتونه دنده لري، دا يې منشور دى، چې د ربړې اوارې ته وړاندې شي، حضور اعليحضرت خدمت ته حاضر دى، دى د ملت ارادې ته احترام لري، د لويې جرگې خبره د ملت ارادې ته دده د احترام څرگندوى ده.

حضور اعليحضرت ويلي: بهرني هېوادونه د افغانستان اور ته لمن وهي...

د شمالي ولايتونو واليانو د همغږۍ شورا له اعلاميو ملاتړ وکړ...؟

## جنوري ۱۹:

له واورو او سړې هوا سره جگړه غځېدلې، حکمتيار د کابل قوماندانانو د سولې پلان د رباني داستعفا پر شرط ومانه.

د رباني استازي محمد صديق چکري د دوستم پرضد جهاد پرتداوم ټينگار وکړ، د کابل قوماندانانو وويل، که هر لوري د دوى پلان ونه مانه، پر ضد يې درېږي.

د همغږۍ شورا يو پلاوى پاکستان ته تللى، د رباني حکومت له پاکستان غوښتي د همغږۍ شورا پلاوي ته د پاکستان د ننوتو اجازه ورنه کړي.

قوماندانانو پرېکړه وکړه، چې اته تنه علما او د هر تنظيم دوه دوه استازي د عبوري حکومت پروسه کې برخه واخلي، د کابل قوماندانانو

شورا څخه د تصمیم نیولو عالي مرجع ګڼي، خو د دوی له خوا اعلان شوی اوربند ټینګ شوی نه دی.

## جنوري ۲۰:

مازیګر سخت جنګ ونښت، ارګ بمبار کړی شو، د قوماندانانو له خوا اعلان شوی اوربند مات شو، د رباني حکومت الوتکو چهار اسیا او د همغږۍ شورا مرکزونه بمبار کړل.

## جنوري ۲۱:

له غرمې وروسته جګړه سخته شوه، د همغږۍ الوتکو ارګ، وزیر اکبر خان مېنه او خیرخانه بمبار کړه، د رباني حکومت الوتکو پر مرنجان غونډۍ، بالاحصار او چهار آسیاب بمونه وغورځول، د پښتونخوا والي له یوه مرستندوی کاروان سره ننګرهار ته تللی... چې د کابل له جګړو لېښلیو کډوالو سره هېواد کې دننه مرسته وکړي، حاجي عبدالقدیر یې هرکلی وکړ، تورخم د کډوالو پرمخ تړلې.

همغږۍ شورا ټولو الوتکو ته خبرداری ورکړ، چې د افغانستان حدودو ته له ننوتو ډډه وکړي.

## جنوري ۲۲:

د رباني مسعود ځواکونو د (نادر شاه مېنې) د نیولو ادعا وکړه، همغږۍ اعلان کړه، چې د رباني مسعود ځواکونه یې په شا تمبولي دي.

ایمنستي انټرنیشنل له پاکستان وغوښتل، د کابل له جګړو د لېښیلو

پرمخ د تورخم دروازه پرانیزي، ریډکراس ویلي وروستیو جګړو کې له (۶۰۰۰) زیات ولسي وګړي وژل شوي، او له ۱۸۰۰۰زیات ټپیان شوي دي.

کابل کې د اوږو بیه څلور او د تېلو درې برابره لوړه ختلې.

قاضي محمد امین وقاد وویل: جګړه ګلم جمو پیل کړې، رباني باید د شپږ میاشتو په تېرېدو حکومت پرېښی وای، له دوستم سره د حزب ملتیا د حزب د مرکزي شورا له پرېکړې پرته حکمتیار په خپل سر کړې.

همغږۍ شورا یوه اعلامیه کې ددې له امله چې بهرنیو هېوادو کې سیاسي نمایندګۍ اعتبار نه لري، له هېواد بهره پانګې د کنګال کېدو غوښتنه وکړه.

## جنوري ۲۳:

همغږۍ شورا یوه اعلامیه کې د مولوي حقاني د سولې هلو ځلو هرکلی وکړ.

کابل کې سخت جنګ دی، د دوستم الوتکو ارګ، دفاع وزارت تاسیسات، وزیر اکبر خان مېنه او تلوېزیون غونډۍ بمبار کړه، د رباني هوايي ځواکونو پر مرنجان غونډۍ، بالاحصار بمونه وغورځول.

د شهزاده سرای صرافانو رسنیو ته وویل: دکانونه یې د نظار شورا وسله والو لوټ، او سوځولي دي، رباني اعلان وکړ چې د ملګرو ملتو او اسلامي کنفرانس ګډه طرحه منل کېدای شي.

په ماښام رباني وویل: قانوني جمهور رییس دی، استعفا به ورنه کړي.

## جنوري ۲۴:

حزب اسلامي ادعا وکړه، چې دولتي مطبعه او مسلخ یې ونیول، مولوي خالص وویل: له یوې غاړې هم ډاډه نه دی، د خالص په خبره له یوه اړخ سره دوستم دی، له بل سره بابه جان، دواړه لوري باید دغسې کسان له خپل ځنګ وشړي.

حکمتیار له پاکستان وغوښتل د تورخم دروازه پرانیزي، ده وویل په داسې حال کې چې مزدک، کارمل او نور پرچمیان د رباني حکومت برخوال دي، د ډاکټر نجیب الله د بندي کېدو جواز نشته، ننګرهار کې د سعودي سفیر له حقاني او حاجي عبدالقدیر سره وکتل.

رباني وویل: استعفا ته چمتو دی، خو د چا لپاره...؟

## جنوري ۲۵:

جګړه روانه ده، له مرنجان غونډۍ پر بي بي مهرو، خیرخانه او چمتلې دښته توغندویي برید وشو، دغسې بالاحصار مرنجان غونډۍ تر اور لاندې وه.

## جنوري ۲۶:

د واورې وریځې له امله د جګړې خپې ناستې دې، نن طبیعت د جګړې مخه ونیوه، امنیت شورا د فوري اوربند غږ وکړ او سیمې ته یې د یوه پلاوي لېږل اعلان کړل.

رباني، داکتر نجیب الله لفرابي د بهرنیو چارو وزیر ایران ته ولېږه، همغږۍ شورا د ایکو غونډه کې د لفرابي ګډون ناقانونه وباله، اعلامیه

کابل حکومت سره هر ډول ترونونه بې اعتباره ګڼي، د پاکستان کورنيو چارو وزير سردار اصف احمد علي وويل: د جلال آباد هوايي ډګر پرانيستی، هغه هېوادونه چې د تورخم پرانيستو خبره کوي، خپلو الوتکو کې دې کډوال له هغه ځای واخلي او خپلو هېوادو کې دې پنا ورکړي.

د کابل روغتونو د ۸۰۰۰ ټپيانو د درملنې خبر ورکړ، څهار آسياب کې د حزب د راډيو تلوېزيون تاسيسات بمبار شول، خو خپرونې يې قطع شوي نه دي.

د حزب تلويزيون د سرکاري هغه په پرتله معياري خپروني لري، د سرکاري تلويزيون خپرونې په وچ پروپاګند راګرځي هغه هم په سپورو ستوغو ټکو خو د حزب تلويزيون د تبليغاتو ترڅنګ معيار پامور ګڼلې، د بشارت رول په دغه معيار کې جوت دی...

د ملګرو ملتو امنيت شورا د افغانستان په اړه بېړنۍ غونډه وکړه، راتلونکې اونۍ کې د بلې غونډې پرېکړه لري.

## جنوري ۲۷:

د بريځر تر لسو بجو ارامي وه، لس نيمې بجې د همغږۍ شورا ځواکونو تعرض وکړ، پغمان، خير خانه، د بابه جان مرکزونه بمبار کړای شول.

د دولت الوتکو په مزار او شبرغان کې د دوستم ځواکونه بمبار کړل، دولت وايي هوتخېلو کې يې د ملېشو بريد پر شا تمبولی.

## جنوري ۲۸:

جګړه روانه ده، سعودي، پاکستان له اسلامي کنفرانس وغوښتل د سولې کنفرانس راوبولي، همغږي شورا وويل: الوتکو يې ارګ، چمتله دښته، پل ارتل او پغمان کې د رباني قرارګاوې بمبار کړې.

دغسې د حکمتيار او همغږي شورا مرکزونه حکومتي الوتکو بمبار کړل، همغږي شورا ادعا وکړه، چې ملي بس او مسلخ يې نيولي دي.

دولت وايي: د دښمن بريدونه يې په شا تمبولي، جګړه مرنجان غونډۍ او بالاحصار ته راښوله ده.

## جنوري ۲۹:

کابل کې د راکټونو خال خال ډزې دي، خو له بغلان، جوزجان او فارياب د سختو جګړو خبرونه ورکړل شول، سياف وويل جګړو کې بهرنی لاس دی، ده د ازبکستان نوم واخيست، دده په وينا له ازبکستان الوتکې الوزي بمباري کوي...

دپاکستان اپوزيسيون مشر نواز شريف پارلمان کې د کډوالو پر مخ دروازه تړل وغندل، د بلوچستان پارلمان کې بلوڅانو له خپل ايالت د افغان کډوالو د ايستو غوښتنه وکړه، پښتنو استازو يې مخالفت وکړ، په دې سلا شوه چې افغان کډوال به هغه وخت استول کېږي، چې د افغانستان ربړه اواره شي...

حقاني د اصلاحي شورا له پلاوي سره جلال آباد کې دی.

## جنوري ۳۰:

همغږی ځواکونو آرتل پل، جمال مېنه او دهمزنګ بمبار کړل، فارياب، جوزجان او بغلان کې هم جګړې شوې، خلک له جګړې په منډو دي، هر لوري ته ځغلي، په دوی پسې توغندي، توپي غورځېږي، لکه خروړي سپي منډې پسې وهي، کابل پر توکمي، سياسي او مذهبي ډلو وېشل شوي.

له کابل سل زره وګړي کليوالو سيمو، شپېته زره جلال آباد ته لېږدېدلي دي، ۸۰۰۰ زخميان او ۱۰۰۰ تنه وژل شوي دي...

## جنوري ۳۱:

جګړه سخته ده، همغږی شورا د بابر بڼ او ګذرګا د نيولو ادعا وکړه، دولت مرنجان غونډۍ، بالاحصار او چهار آسياب بمبار کړ، شمال کې هم جګړه غځېدلې، جنرال فوزي د سمنګان نيولو ادعا وکړه.

ډاکټر موسی توانا له جمعيت سره خپل شلون اعلان او جنبش کې شامل شو، ده پر رباني او مسعود نيوکې وکړې، دغسې يې د دوستم پر ضد د رباني اعلان شوی جهاد باطل وباله.

توانا په وروستيو کې د جمعيت د مرستيال په توګه کار کاوه او د توکمي فرکيسيون مشر ګڼل کېده.

ډاکټر موسی توانا په ډاګه کړه، چې رباني دوستم ته د ننواتې لپاره ولېږه، خو رباني په تګی کې و... دده په وينا احمد شاه مسعود هم له دوستم سره د اړيکو او روغې په هڅو کې رښتينی نه شوی ګڼل کېدای.

ستوريس مسوريش د ملګرو ملتو استازي ببړنی اوربند وغوښت،

دده په وینا د طرحو کمی نشته، خو پر افغان مظلوم ولس زره سوی نشته، ده وویل لومړی باید اوربند ټینګ شي، لویې جرګې ته مخه ورکړل شي... همغږی شورا د ملګرو ملتو له هلو ځلو سره موافقه اعلان کړه.

پېښور کې افغان قونسل وايي: جنګ حکمتیار پیل کړی، د ننګرهار شورا وايي که رباني له دوستم او ملېشو سره په جنګ لګيا وي، موږ ورسره ولاړ یو، خو که له حزب سره جګړه کوي، موږ فریق نه جوړېږو.

## فبروري ۱:

دواړو غاړو د حقاني په مشرۍ اصلاحي شورا ته واک ورکړ، چې د سولې لپاره خپلې هڅې وغځوي، دوی اصلاحي شورا ته بلنه ورکړه، چې کابل ته ورشي.

ایراني چارواکو مشهد کې د سنیانو یو جومات پر بلدوزرو ونړواوه...

مولوي حقاني جلال آباد د امن ښار ونوماوه...

## فبروری ۲:

جګړه روانه ده، د حقاني په مشرۍ اصلاحي شورا کابل کې ده، د کابل له قوماندانانو او جهادي شورا له پلاوو سره یې ولیدل، له رباني حکمتیار سره یې خبرې وشوې.

حزب اسلامي د ملګرو ملتو (مسورش) د وړاندیز هرکلی وکړ او د خلور ورځني اوربند لپاره یې خپل چمتو والی اعلان کړ.

د جنرال دوستم استازي روس ته اخطار ورکړ، چې که د رباني لپاره

يې د پيسو له چاپولو لاس وانه خيست، مزار کې به د روس قونسلگري وتړي.

## فبروري ۳:

کابل کې تينګه وربخ ده، واوره اورېدلې، د جګړې څپې ناستې دي، تېرو درېيو مياشتو کې لومړی پلا د سره صليب د خوراکي توکيو يو کاروان کابل ته ورسيد، د تورخم دروازه د پخوانيو کډوالو پر مخ چې د افغان کمشنرۍ شناختي پاسونه لرل پرانيستل شوه، خو له څو ساعتو وروسته بېرته وتړل شوه.

## فبروري ۴:

د واورې له برکته نسبي کراري ده، په شمالي ولايتو کې جګړه ده، د اصلاحي شورا پلاوي د حقاني په مشرۍ له رباني، سياف او مسعود سره وکتل.

د ننګرهار، لغمان، کونړ شوراګانو حاجي عبدالقدير خپل مشر وټاکی.

مازيګر درنو دزو د يو ځل بيا وېره ګډه کړه.

استاد رباني ازبکستان د دولت له مخالفانو سره په مرسته تورن کړ.

## فبروري ۵:

جګړه روانه ده، د سره صليب پر روغتون توغندی ولګېد، دولت پر بالاحصار مرنجان غونډۍ او چهار آسياب بمباري وکړه.

## فبروري ٦:

د اصلاحي شورا پلاوی دويمه پلا له استاد رباني او سياف سره وکتل، رباني په خپل دې دريځ ولاړ دی، چې حل او عقد شورا ولسمشر منلی.

د ملګرو ملتو ځانګړي استازي (مسوريش) ننګرهار کې له حاجي عبدالقدير سره وکتل، ازبکستان د کابل حکومت د ورومبي ورځې تور رد کړ.

## فبروري ۷:

د کابل جګړو کې تر اوسه سل زره کورنۍ بېځايه شوي او له ۱۵۰۰۰ زيات ولسي وګړي وژل شوي دي، دغسې له دېرش زره زيات زخميان دي.

احمد شاه مسعود پر ازبکستان تور پورې کړ، چې د دوی مخالفانو (دوستم) ته T30 ټانکونه ورکړي.

دده په وينا، بېنظير بوټو هم ورسره په خپلو ژمنو وفا ونه کړه، تر اوسه مخالفان (حکمتيار) پالي.

همغږۍ شورا د اصلاحي شورا طرحې ته ورته طرحه وړاندې کړه، چې رباني او حکمتيار دواړه استعفا وکړي، د کابل امنيت د کابل قوماندانانو ته وسپارل شي، له هرې ناحيې به دوه دوه تنه د خلکو د استازو په توګه په دغه شورا کې برخه ولري، د دوی له استعفا به پينځلسو ورځو کې د شپږو مياشتو لپاره له ناپېيلو او منليو کسانو مؤقت حکومت جوړ کړای شي، د حکومت جوړونې پروسه به د ملګرو ملتو او اسلامي کنفرانس تر څارنې لاندې بشپړه شي...

## فبروري ۸:

اروپايي ټولنې د افغانستان پر جګړو خواشيني وښوده، حقاني چهار اسياب کې له حکمتيار سره وکتل، خو غوځه پايله يې ترلاسه نه کړای شوه.

رباني يو ځل بيا پر ازبکستان له دوستم سره د مرستې تور پورې کړ.

## فبروري ۹:

د دولت دوې چورلکې لغمان کې حزب اسلامي ته تسليم شوې، دغو چورلکو چې شمشاد کې يې د استاد سياف له غونډ کابل ته پوځي توکي لېږدول، د حزب قوماندان ناصر خان ته تسليم شوې.

د اسلامي کنفرانس مشر حامد الغامد افغانستان کې د جګړې له ټولو غاړو روژه کې د اوربند غوښتنه وکړه، پېښور کې يې د حزب او جمعيت له استازو سره وکتل.

## فبروري ۱۰:

کابل کې جګړه سخته شوه، د همغږۍ شورا ځواکونو د تلوېزيون غونډۍ بمبار کړه، دولت هم د مخالفانو سيمې تر اور لاندې نيولې...

حقاني له حکمتيار سره وکتل، د دولت او حزب وحدت ترمينځ د اړيکو خبر ورکړل شو.

## فبروري ۱۱:

د روژې لومړی ورځ ده، څکه خو تر اوسه کراري ده، انگلستان خپلو اتباعو ته خبرداری ورکړ، چې افغانستان ته سفر ونه کړي.

دهمزنگ کې د حزب وحدت او نظار شورا ترمینځ لنډه نښته وشوه.

د شهزاده سرای له لوټ تالان وروسته چې صرافان پر سالنگ واټ د مېوې زړې منډيي مخامخ مارکيټ ته راليږدېدلي وو، د شپې چور او لوټ شول.

## فبروري ۱۳:

جگړه په يو څه ځنډ روانه ده، نظار شورا افشار بېرته حزب وحدت ته وسپاره.

## فبروري ۱۴:

د حقاني په مشرۍ اصلاحي شورا د سهار له پينځو بجو موقت اوربند رامينځته کړ، اوربند بې قيد و شرطه دی، د حقاني په وينا کابل ته غځېدلې لارې به پرانيستي وي، دده په وينا له دغو لارو پوځي اکمالات نه شي کېدای، همغرۍ شورا د اوربند منل اعلان کړل، اوربند خلور ورځنی دی، چې د دايمي اوربند پيلامه گرځېدای شي.

قريب الرحمن سعيد وويل، اوربند يې منلی، په څلورو ورځو کې به د رباني د استعفا، او نوې حکومت طرحه چې ترمخ به يې کابل ناپوځي شي بشپړه شي.

## فبروري ۱۵:

اوربند د توغنديو درنو ډزو مات کړ، حقاني پغمان کې له احمد شاه مسعود او استاد سياف سره وکتل، دولت وايي توغندي د دوستم ځواکونو ويشتلي، خو دوی به يې ځواب ورنه کړي، خلک د اوربند پر دوام باوري نه دي، ځکه خو له فرصت په ګټه اخيستو له زړو مکرويانو او جګړې له سيمې پښې باسي...

د ننګرهار د سرشاهي پنډ غالي کډوال وايي: له مجاهدينو کرکه لري، دا قاتلان دي، کډوال په وچ ډاګ پراته دي، پنډ غالي د ماينو تر ګوابښ لاندې دي.

## فبروري ۱۷:

مزاري ووېل: زموږ دريځ د همغږۍ شورا دريځ دی. د کابل کډوالو ۲۵ سلنه د سرشاهي پنډ غالي کې مېشت دي، نور په سړکونو، پارکونو، واټونو پر غاړو پراته دي، په يوه بس کې يوه کورنۍ مېشت ده.

اوربند ايله درې ورځې دوام وکړ، خلکو وکړای شول د جګړې له سيمې ووځي، حکمتيار له کابله ننګرهار ته تللی، حقاني په ده پسې ننګرهار ته ولاړ.

## فبروري ۱۸:

د پاکستان د بهرنيو چارو وزير سردار آصف احمد علي جلال آباد کې له حکمتيار او حقاني سره وکتل، حقاني ووېل: کابل ته غځېدلې لارې ښايي پرانيستې وي، خواره او غلې بايد د جګړې وسله ونه ګرځي.

له نادر شاه مېني (زړو مکرويانو) وروستي استوګن ووتل، سياف وويل: د اصلاحي شورا پلاوی باید د جنګ منشا له مینځه یوسي، دده په وینا ملېشې او کمونستان د جګړې مسببين دي.

ده وويل: د ملګرو ملتو مرسته به دا وي، چې د بهرنی مداخلې مخه ونيسي.

د رباني حکومت د کابينې غړي او لوړ پوړيو چارواکو کورنی تر اوسه پاکستان کې دي، خپله د احمد شاه مسعود کورنۍ اسلام اباد کې مېشت ده، دوی له تورخم د اوښانو او خرو په لار له کربښې اوړي، مسعود اسلام آباد کې د خپل پلار جنازه کې چې ترافيکي پېښه کې ومړ برخه وانه خيسته.

حکمتيار او رباني باکستان کې د خپلو زامنو له ورا بې برخې پاتې شول.

## فبروري ۱۹:

د ملګرو ملتو د بشري حقونو د څانګې مشر ارماکورا د مجاهدینو پر مشرانو نيوکې وکړې، دوی يې د خپلو خلکو قاتلان وبلل.

د ثمرخېلو او سرشاهي پنډغالو کې د کابل له جګړو د کډه شويو کورنيو خېمې دربدلې، خو ډېری کورنی په وچ ډاګ راغونډې دي، کېږدی نه لري، که څه هم ځای ځای د بهرنيو مرستندويه موسسو لوحې لګېدلې، لارې هماغسې ترلي دي، حقاني له حکمتيار سره د لارو د پرانيستو پر سر خبرې وکړې.

## فبروري ۲۰:

پېښور کې درېيو وسله والو د ښوونځي يو بس اسلام آباد ته وتښتاوه، تښتوونکو غوښتل افغانستان ته د خوراکي توکيو د رسېدو مخه پرانيستل شي، بس اسلام آباد کې د افغانستان سفارت ترمخ د پوليسو محاصره کې دی.

جنرال نصير الله بابر له تښتوونکو سره خپله خبرې ان توکې وکړې.

له دوی يې تومانچه وغوښته، ور يې کړه، ده وکتله بېرته يې تښتوونکو ته وسپارله، محمد علي جاويد د يو بل پلاوي په مشرۍ اعلان کړه، چې د رباني لپاره د ټاکلې مودې په پای ته رسېدو لويه جرگه چې سل تنه ديني علما، قوماندانان او سياسيون په کې وي، نوی حکومت جوړ کړي، ده اعلان کړه چې خپلې هڅې به د حقاني له هڅو سره همغږې کړي.

حزب د حقاني پر ټينگار پر يو بل ځلور ورځني اوربند هوکړه وکړه.

## فبروري ۲۱:

له کابل جلال آباد ته د کډوالو بهير روان دی، د دويمې ورځې لپاره هم د پېښور ماډل سکول ښتولی بس افغانستان سفارت کې ولاړ دی، دوی پينځه مليونه کلدارې، د پولې او لارو پرانيستل او يوه چورلکه غواړي، چې خوندي ځای ته يې ولېږدوي.

حقاني له سوريس مسوريش او حکمتيار سره جلال آباد کې جلا جلا خبرې وکړې.

## فبروري ۲۲:

د ښوونځي بس درې واړه ښتوونکي د پاکستان د پوځي کوماندويي ځواکونو له خوا د شلو دقيقو په لنډ وخت کې ووژل شول، ويل کېږي دوی د پروان اوسېدونکي د احمد شاه مسعود مربوط وو.

په ژوره ماتې ښتوونکي په شربت کې دنشه يې موادو په گډېدو بېهوښه، او بيا په ډزو ووژل شول، له بېهوښی وروسته ددوی وژنې گڼ سوالونه راولاړ کړي.

حقاني اعلان کړه، چې د اور بند پر تمديد موافقه شوې، حکمتيار وويل، د اصلاحي شورا اوربند يې ځکه ومانه، چې د ربړې اواری رامينځته کړای شي.

حقاني له حکمتيار او خالص سره وکتل.

حقاني د بس ښتونې په اړه وويل: دا غلط عمل و، له بده بخته پاکستان هم مناسب کار ونه کړ، ښتوونکی بايد ژوندي نيول شوي وای، چې د واقعيت پته لگېدلی وای.

## فبروري ۲۳:

سردار آصف احمد علي له ننگرهار د ځمکې له لارې کابل ته راغی، کابل کې له غرمې وروسته خال خال ډزې اورېدل کيږي، آصف احمد علي به له مسعود او رباني سره گوري.

کابل پر ازبکستان د دوستم د ملاتړ تور لگوي، سياف وايي دا مداخله نه شو منلی، کابل کې د پاکستان پر ضد مظاهره وشوه، مظاهره کوونکي پر سفارت وروختل، اسلام آباد کې د ښوونځي د بس د

دربیو تبنتوونکو د وژنې په غندنه کابل کې حکومتي مظاهره وشوه.

دا په داسې حال کې چې کابل کې هره ورځ د سیالو ډلو ترمنځ لسگونه بېگناه افغانان وژل کېږي.

## فبروري ۲۴:

سردار آصف احمد علي کابل کې خپل ترلی سفارت وکوت، له ده سره رباني او مسعود ملگري وو، آصف احمد علي له عبدالعلي مزاري سره هم ولیدل.

## فبروري ۲۵:

کابل راډیو چې د پښتونستان پروگرام وار له مخه ایسته کړی، د بلوچي پروگرام پر ځای ازبکي هغه خپور کړ.

له جلال اباد تر کابله (۱۷۰) پوستې پرتې دي، له موټرو او مساپرو باج اخلي.

## فبروري ۲٦:

کابل کې د پاکستان پر ضد دویمه مظاهره وشوه، حقاني له مسعود، رباني او سیاف سره پغمان کې وکتل، د سولې لپاره یې ظاهراً ده ته له واک ورکولو سره موافقه وکړه، خو ماته د زړه هغه نه برېښي.

## فبروري ۲۷:

حقاني صاحب یو ځل بیا له استاد رباني او سیاف سره ولیدل، په خوله خواږه په زړه کاږه.

حکمتیار سره هم ولیدل شول، ده هم په خوله واک ورکړ...؟

## فبروري ۲۸:

کندز د همغږۍ شورا له خوا ونیول شو، قریب الرحمن سعید وویل، د کندز ټولې ولسوالۍ یې نیولي، خو دوستم وویل د کندز مهمې سیمې یې تر واک لاندې دي.

کابل کې هم د جګړې غاړو د یو بل مرکزونه تر اور لاندې ونیول، حقاني د کابل له قوماندانانو سره د امنیت سپارلو په اړه خبرې وکړې،

پلچرخي کې د کابل قوماندانانو خپله غونډه لرله، د دوی او باډیګارډانو له خبرو د ډار او وحشت لمبې ختې، دغسې خبرې او کریکترونه څرنګه کړای شي کراري راولي، او امنیت ټینګ کړي.

زه حیران شوم چې حقاني صاحب له دغو قوماندانانو د امنیت د ټینګښت هیلې پالي، حقاني صاحب دوی ته وایي: د سولې په لار کې زما ټول امکانات ستاسې په خدمت کې دي، ما حقاني صاحب ته له خپلې اندېښنې وویل، په عمیق تأثر یې راته کړه: څنګه یې کوې؟

## مارچ ۱:

په خوراکي توکیو بار د ملګرو ملتو شپږ لارۍ د حکمتیار له موافقې وروسته کابل ته راغلې، حکمتیار په دې شرط کابل ته د ننوتو مخه

ورکړه، چې د همغږۍ شورا د وېش له پروګرام سره سم خوراکي مواد ووېشل شي، دا چې درې لارۍ به د حکمتیار او درې د رباني تر کنترول لاندې سیمو کې وېشل کېږي.

## مارچ ۲:

پېښور کې د پیر ګیلاني تر مشرۍ لاندې یوې غونډې د لویې جرګې په جوړېدو ټینګار وکړ، د کابل پر ښار ښېلو برخو راکټونه ولګېدل.

د جلال آباد سرشاهي پنډ غالی د نورو کډوالو د مېشتېدو ظرفیت نه لري، عزیز مراد د همغږۍ شورا د ځواکونو له خوا د کندز نیول دروغ وبلل، ده وویل د کندز د دفاع جګړه روانه ده، د دوستم ګلبدین ملېشو ته د سر او مال درانه زیانونه اوښتي.

## مارچ ۳:

کابلیان د ملګرو ملتو د شپږو لاریو لار څاري.

بېنظیر بوټو ناصر باغ کې د نویو کډوالو پنډغالي ته ولاړه، د تورخم دروازې پرانیستو ژمنه یې وکړه.

اصلاحي شورا د ډېبدلي اوربند د څارنې پلاوی اعلان کړ، چې له اوربند سرغړوونکی اړخ په ګوتو کړي...

## مارچ ۴:

د حزب قوماندانانو د ملګرو ملتو د شپږو لاریو مخه ډب کړه، کابل کې کړاري ده، اوربند نه دی مات شوی، د اصلاحي شورا د څار پلاوی له

اوربند سرغړوونكي په گوتو كړل، دا يې قواله په چا يې منې...؟

د اصلاحي شورا يو بل پلاوی له دوارو غاړو د بنديانو د خلاصون په موخه خپل كار پيل كړ.

## مارچ ۵:

حقاني د اصلاحي شورا په مشرۍ له حكمتيار سره وليدل، حقاني ټينگار كاوه چې لارې خلاصې او تعرض ونه شي، خو حكمتيار خپل واک مشروط وباله، چې له همغږۍ شورا سره هم وكتل شي.

بطروس غالي د حكمتيار په نامه يوه پيغام كې د ملگرو ملتو شپږو لاريو ته د مخه وركولو غوښتنه وكړه.

## مارچ ٦:

كابل كې نسبي آرامي ده، حكمتيار د ملگرو ملتو لاريو ته اجازه وركړه، چې كابل ته ننوځي، درې لارۍ د رباني او درې د حزب تر واک لاندې سيمو كې، خوراكي توكي وويشي.

## مارچ ۷:

د ملگرو ملتو لارۍ د كابل ښاريانو له خوا چور كړای شوې، دغه وخت د جگړې دوارو غاړو د يو بل تر واک لاندې هغو سيمو توغندو يې بريد وكړ، چې د دغو لاريو توكي پكې وېشل كېدل، د خلكو د چور له امله د موادو وېش ودرېد، خيرخانه كې د يونيسف يو افغان مامور خلكو برمته كړ، د خيرخانې يوه جومات كې د موادو د وېش لړۍ روانه

وه، چې توغندي ولګېدل، شپږ تنه مړه او ۳۰ زخميان شول.

د ملګرو ملتونو لخوا، درې لارۍ اوړه د يوه لوی ښار کلابندو اوسېدونکو ته له مسخرې پرته بل څه نشي ګڼل کېدای، چې د شپږو مياشتو کلابند ښاريانو هر يوه ځان لومړی درجه مستحق ګڼه، چې بايد خپل حق او برخه ترلاسه کړي، درې لارۍ ښايي د څرخي پله زندان کې د زرګونو ميشتو کډوالو لپاره د يوې ورځې يوه ګوله مړۍ برابره کړې وای، خو د يوه لوی ښار د کلابندو اوسېدونکو سره دغسې مرسته د ملګرو ملتونو يوه بله بې توپيري او ټوکه رامنځ ته کړه...

## مارچ ۸:

د کابل بېلا بېلې سيمې د دواړو غاړو له خوا تر توغندويي بريد لاندې دې، حقاني له حکمتيار سره وکتل.

## مارچ ۹:

کندز د رباني ځواکونو له خوا بېرته ونيول شو، حقاني د باغ بالا هوټل کې له استاد رباني، سياف سره وکتل، له کابله د کډوالو د وتلو بهير له پخوا زيات غځېدلی، ښار کې شبنامې غورځېدلې، چې د اختر تر ځلورمې له ښاره ووځي.

## مارچ ۱۰:

جګړه روانه ده، د جګړې غاړې يوه پر بله توغندويي بريدونه کوي، I.R.C روغتون ته. ۲۳ ملکي ټپيان راوړل شوي.

## مارچ ۱۱:

کابل راډیو د حکمتیار ځواکونو د دوو تعرضونو د په شا تمبولو خبر ورکړ، پخوانی پاچا د وړوکي اختر په مناسبت خپل پیغام کې د روانو جګړو له امله خواخوږي وښوده، پیغام کې د هېواد او هېوادوالو خدمت ته چمتووالی څرګند شوی دی. څه خبر خدمت ته چمتو حضور اعلیحضرت به کله د دغه خدمت مخه مومي...؟

## مارچ ۱۲:

د بلوچستان حقوقپوهانو یوه قطعنامه کې د ډاکټر نجیب الله د خوشې کېدو غوښتنه کړې، کابل کې خال خال ډزې اورېدل کېږي، لارې هماغسې تړلې دي.

## مارچ ۱۳:

استاد رباني د خیرخانې جامع جومات کې د اختر په لمانځه کې خپل حکومت دده په وینا مدینة الرسول کې لومړنی اسلامي حکومت وباله.

دده د خپل حکومت ستونزې د پیغمبر صلی الله علیه وسلم او صحابه وو ستونزې وبللې، دده په اشاره اشاره حکمتیار منافق ونوماوه، هرات کې اسماعیل خان د سولې او اوربند طرحه وړاندې کړه، چې حکمتیار له خپلو متعهدینو سره تر مشورې مشروط کړه، خو رباني ورسره موافقه وښوده.

## مارچ ۱٦:

د کابل پلچرخي کې خلکو مظاهره وکړه، د جګړې غاړې یې وغندلې، قریب الرحمن سعید د هرات د سولې پلان د حقاني د سولې د هڅو سبوتاژ وباله.

## مارچ ۱۵:

اسلام اباد کې د کابل سفیر سردار محمد روشن رباني حکومت له خوا تبدیل کړای شو، له ده سره د حکومت کشاله د هغه چک پر سر وه، چې نواز شریف مجددي ته د پاکستان له اړخه د مرستې لپاره ورکړی و.

مجددي دا له ځان سره مرسته بلله، له دې... دوه ملیوه ډالر رباني اداري ایستلی او نورې د سردار روشن لخوا کنګال کړای شوې، چې د یوې نماینده او قانوني حکومت تر وخت یې څوك ونشي ایستلی.

## مارچ ۱۸:

د مارچ ۱۴، ۱۵، ۱٦، ۱۷ په کرار تېرې شوې، خو نن توغندویي برید کابل یو ځل بیا ولړزاوه.

د رباني حکومت ویاند وویل، که همغږی شورا له بمبار او توغندویي بریدونو لاس وانه خلي، دوی به د ملېشو پلوه افسرانو کورونه بمبار کړي.

څو توغندي د وزیر محمد اکبر خان مېنې، شاو خوا ولګېدل، څمکنۍ جګړې، ملي بس، زړو مکرویانو او میوند واټ کې غځېدلې، خلکو له جګړې جوماتونو ته پنا وړې.

## مارچ ۱۹:

مولانا کوثر نیازی د مغزي سکتې له امله پاکستان کې ومړ. ده خپل سیاست له جماعت اسلامي پیل کړی و، مولانا مودودي ته دومره نژدې و چې زوی یې باله، بیا یې له جماعت سره پرې کړه، چې جماعت اسلامي له یوې مخې سیاست او اقتدار ته استخدام کړای شو، گویا له روحانیت او اصلاح یې پر مخ اړولو تورن کړ... "اور لاین کٹ، اور جنهیں مے نے دیکھا" دده مشهور کتابونه دی، چې لومړی یې د بوټو زوال او جنرال ضیاء الحق د کودتا په اړه کښل شوی.

له جماعت اسلامي په وتو مولانا پیلپز گوند ته ورغی، د بوټو حکومت کې لومړی د اطلاعاتو خپرونو او بیا د حج او اوقافو وزیر و.

## مارچ ۲۰:

د جگړې غاړو د یو بل پر سیمو درنې بمبارۍ وکړې، حکومتي الوتکو د سقاوې دښته کې د همغږۍ شورا د الوتکو رنوی کرښه (سړک) بمبار کړ، له غرمې وروسته یوه بجه د همغږۍ الوتکو وزیر اکبر خان مینه او خیرخانه بمبار کړی.

## مارچ ۲۱:

د نوي لمریز کال په لومړي ورځ د جمال مېنې غونډۍ دوه توغندي ولگېدل.

برهان الدین رباني د لسو ورځو ورځو یو اړخیز اوربند اعلان کړ.

## مارچ ۲۲:

استاد رباني له شپږو میاشتو وروسته مطبوعاتي کنفرانس ته وینا وکړه، ده په ډاګه کړه، چې استعفا به ورنه کړي، رباني په دې اړه یوې پوښتنې ځواب کې وویل، چې د استعفا یې هډو سوال نه پیدا کېږي.

ده تکرار کړه، چې له حکمتیار سره مذاکرات شوني دي، خو له دوستم سره خبرې نه شي کېدای، رباني یو ځل بیا پر ازبکستان د پوځي مداخلې تور پورې کړ.

## مارچ ۲۳:

سره صلیب خپل پیغام کې د جګړو په اړخو غبږ وکړ، چې له روغتونو سره له مورچو نیولو ډډه وکړي، امنیت شورا یو ځل بیا افغانستان کې د جګړو د پای هیله وکړه.

## مارچ ۲۴:

اروپایي ټولنې افغانستان ته د خوراکي توکیو د رسولو غوښتنه وکړه.

حزب اسلامي د وزیرانو شورا د سولې کمېسون طرحه رد کړه، حزب د رباني پر استعفا ټینګار او دوو اوونیو کې د موقت حکومت جوړښت غواړي، جګړه د خال خال ډزو په بڼه روانه ده.

## مارچ ۲۵:

پخواني پاچا له امریکا غږ سره مرکه کې یو ځل بیا د لویې جرګې پر

جوړېدو زور ورکړ، ده په اوسنیو شرایطو کې ټولټاکنې ناشونې وبللې، د ده په وینا روان کړکیچ د ېېړنیو پرېکړو غوښتنه کوي، د ملت اراده باید پامور وبلل شي.

ده په ډاگه کړه، چې له ملگرو ملتو سره یې اړیکې دې، له امریکا او نورو اړخونو سره یې هم خبرې روانې دي، ده یو ځل بیا تکرار کړه، چې د وطن لپاره هر خدمت ته چمتو دی.

خو د خدمت پر څرنگوالي یې لا څه نه شوای ویلی...، ملت عمل غواړي، په تش چمتو والي څه نه کیږي...

## مارچ ٢٦:

د توغندیو باران دی، په تېره یوه میاشت کې د میشتېدنې پر سیمو تر ټولو زیات توغندي لگېدلی، د جگړې دواړو غاړو د یو بل سیمې د توغندیو تر برید لاندې نیولي دي.

پر ارگ، ده افغانان، وزیر اکبر خان مېنه، بالاحصار، مرنجان غونډۍ توغندي لگېدلي، شاو خوا سیمې هم توغندیو زیانمنې کړې.

(١٦٠٠) مړه سلگونه زخمیان دي.

له پل محمودخان سره هم توغندي لگېدلي.

اته تنه هغه وخت پر توغندي ولگېدل، چې په جگړه کې د یو وژل شوي ماشوم په ښخولو بوخت وو.

حکومتي الوتکو چهار اسیاب بمبار کړ.

محمود میستري اسلام اباد کې دی، دده په وینا له افغانانو سره تر لیدو کتو وروسته خپل پلان وړاندې کولای شي.

## مارچ ۲۷:

خال خال ډزې اورېدل کېږي، محمود میستري له پاکستانه خپل کار پیل کړ، گویا ابتدا بیا هم په سکون شوه...؟

حکمتیار د میستري د هلو ځلو هرکلی وکړ.

ده ووېل غوره دا ده چې اصلاحي شورا او د کابل قوماندانانو طرحه چې ډېره موده یې د سولې لپاره کار کړی، پلي کړی شوی وای.

## مارچ ۲۸:

له ماسپښین وروسته سختو نښتو پر کابل د وېر او ډار تیارې وغوړولې، حزب وايي حکومت محمد آغه کې د دوی سنگرونه بمبار کړل.

جلال آباد کې د سولې سیمینار پرانیستل شو، حاجي عبدالقدیر له جلال آباد د حج پروازونه اعلان کړل، سعودي هم د خپل سفارت د وېزې ځانگه جلال آباد ته لېږدولې.

## مارچ ۲۹:

جگړه په نادرشاه مېنه (زړو مکروریانو) عیدگاه جومات، میوند وات کې غځېدلې، اسماعیل خان هرات کې د سولې لپاره د یوه کنفرانس غږ وکړ.

داسې چې یوه دېرش کسیزه شورا به واگی ترلاسه کړي، قاري بابا له اسماعیل خان سره مخالفت وکړ، دده په وینا قوماندانان ښایي سیاسي مشران انتخاب نه کړي، دغو مشرانو هېواد ویجاړ کړی دی...

## مارچ ۳۰:

محمود میستري له پاکستان په الوتکه کې ننگرهار ته راغی، د سرشاهي پنډ غالی یې وکوت.

حقاني له رباني سره وکتل، په دغه کتنه کې رباني خپله استعفا ناشونې وبلله، د دوی ترمینځ خبرې ترخې شوې، حقاني رباني له ملت سره په دښمنۍ تورن کړ.

## مارچ ۳۱:

کابل کې جګړه روانه ده، همغږۍ شورا د ملي بس او پل محمود خان په استقامت پرمختګ وکړ او له کابل سیند یې ځواکونه واوښتل...

اصلاحي شورا چهار اسیاب او باغ بالا کې له رباني او حکمتیار سره وکتل...

## اپریل ۱:

میستري کابل ته راغی، له حقاني، سیاف او رباني سره یې وکتل، کابل کې کراري ده.

له غرمې وروسته میستري له مزاري سره ولیدل.

حقاني کارېز میر کې له مسعود سره وکتل.

## اپریل ۲:

محمود میستري کابل ښاریانو او حکمتیار سره وکتل، کابل ښاریانو

له میستري د ملگرو ملتو د دندو او مکلفیتونو پوښتنه وکړه، ښاریان پر ملگرو ملتو په غوسه دي، پر ملگرو ملتو يې ټينگې نيوکې وکړې.

## اپریل ۳:

میستري د ناروغۍ له امله لیدنې کتنې وځنډولې.

پاکستان اسلام آباد کې د کابل سفیر بهرنیو چارو وزارت ته وغوښت، چې د ملا راکتي له خوا د نیول شوو چینایانو خوشې کول باوري کړي، ملا راکتي د سیاف قوماندان دی، چې کوټه کې پخپل کور یوه چا په کې د پاکستاني پوځیانو د ستینگرو نیولو په بدل کې يې چینایي انجنیران تښتولي وو، ویل کېږي سیاف د پاکستان او ملا راکتي جوړ جاړي ته مخه پرانیستی.

استاد سیاف او پاکستان په گډه دده تاوان پرې کړ.

ماښام میستري له مسعود سره دوه ساعته خبرې وکړې.

## اپریل ۴:

که څه هم د میستري د سفر وروستۍ ورځ وه، خو د خراب موسم له امله يې ستنېدل وځنډېدل.

کابل کې مظاهرې وشوې، تنظیمي حکومتونه يې وغندل، د ملگرو ملتو د پلاوي له استوگنځای سره نژدې ښځینه وو مظاهره وکړه.

حقاني د پاکستان له سفیر سره پلچرخي کې وکتل، حقاني وويل د افغانستان ربړه کورنۍ او بهرنۍ اړخونه لري، پرمختیاوې او اړیکې باید څرگندې او له خلکو پټې ونه ساتل شي.

## اپریل ۵:

محمود میستري پاکستان ته ستون شو، له دې وړاندې یې د دویم ځل لپاره له حقاني سره وکتل، میستري په دغه کتنه کې وویل، چې دواړو غاړو د اصلاحي شورا له طرحې سره یو ډول توافق څرګند کړی، میستري د حقاني د سولې هلې ځلې وستایلې، دی به دوې اوونی وروسته بېرته افغانستان ته راشي.

## اپریل ٦:

تګاب کې د حزب او جمعیت جګړې زور اخیستی.

## اپریل ۷:

محمود میستري پاکستان کې د خپل ماموریت دویم پړاو اعلان کړ، دی به مزار او هرات ته هم سفر وکړي.

د کعبې امام احمد بن سهیل د اسلامي هیوادو علماوو د یوه پلاوي په مشرۍ افغانستان کې د سولې هلو ځلو لپاره پېښور ته ورسېد.

## اپریل ۸:

محمود میستري پېښور کې له تفاهم شورا او لیکوالو ټولنې له غړو سره ولیدل.

کابل کې سختې جګړې روانې دي.

## اپریل ۹:

جګړه هماغسې په درز کې روانه ده، د همغږۍ الوتکو حکومتي تاسیسات بمبار کړل.

د اسلامي هېوادو یو پلاوی د کعبې امام په مشرۍ پاکستان کې دی، له امام پرته نور پلاوي د مولوي خالص په ملتیا جلال آباد ته راغی، دوی سره د عربي هېوادو دیني پوهان او د پاکستان مولانا حسن جان، مولانا رحمت هادي، مولانا چترالی او نور ملګري دي، پلاوی د سولې لپاره خپل اغېز او نفوذ کاروي.

## اپریل ۱۰:

جګړه په هماغه شدت روانه ده، حکومتي الوتکو د حزب پر سنګرونو بمباري وکړه، دوارو غاړو د یو بل بریدونو په شا تمبولو ادعا وکړه.

پېښور کې د تفاهم شورا په نوښت د ملګرو ملتو دفتر پر وړاندې مظاهره وشوه، مظاهرې ته محمود مستري وینا وکړه او له افغانانو سره یې د ملګرو ملتو پیوستون څرګند کړ.

د غونډې پرېکړه لیک کې د ملګرو ملتو تر څارنې لاندې د لویې جرګې جوړېدو غوښتنه وشوه، دغسې د رباني حکمتیار پر استعفا هم ټینګار وشو.

د اسلامي هېواد د علماوو پلاوي پلچرخي کې له حقاني سره وکتل.

## اپریل ۱۱:

اسلامي هېوادو د علماوو پلاوي د حقاني په ملتیا انترکانتیننتال

هوټل کې له رباني، سياف سره وکتل، استاد سياف په فصيحه عربي هغسې سوګندونه خوړل، ما وې چې تک ونه چوي...

## اپريل ۱۲:

له چهار آسياب د علماوو پلاوي په راستنېدو د توغنديو تر بريد لاندې راغی، که څه هم په دغه ورځ ښار کې کراري وه، خو دغه توغندويي بريد يو وار بيا وېره خپره کړه.

د علماوو پلاوي دواړه غاړې پېرې وبللې، حکمتيار د رباني حکومت په شتون کې د ۲۵ کالو جنګ ټتر وواهه، محمود ميستري وويل رباني تش په نوم جمهور رييس دی، دغسې يې حکمتيار هم ناقانونه صدر اعظم ياد کړ، د جمهور رييس او صدر اعظم ترمينځ جګړې کابل وران او هېواد په ستره غميزه اړولی دی.

د ميستري په وينا افغانان له ملګرو ملتو د مداخلې غوښتنه کړې، خو ملګري ملتونه پوځي مداخله نه شي کړای، ده د لويې جرګې او پخواني پاچا درول خبره ورکړه د مجاهدينو مشران يې، د جنګي بانډو مشران وبلل، چې له سياسي بصيرت او د ملت له استازيتوب بې برخې دي.

## اپريل ۱۳:

د علماوو پر پلاوي د توغندويي بريد له امله مدير غفار او صديق چکري ښښې غوښتو ته پلچرخي ته راغلل.

کرۍ ورځ جګړه روانه ده، پلاوي کوم اغېز ونه شوی ښندلای.

## اپریل ۱۴:

زرداد د بېرته ستنېدو پر لار سروبي کې دپلاوی افغان غړي (مولوي خالص، حاجي دين محمد) يو ساعت ايسار کړل، وايي له حاجي دين محمد سره يې حساب دی... لکه اراده يې خطرناکه وه... خو د حاجي ابراهيم په التماس يې مخه ورکړه، د علماوو پلاوی ناکام پاکستان ته ستون شو، هوايي ډگر کې ورسره رباني مخه ښه وکړه.

د سره صليب په روغتون راکټونه ولگېدل، محمود ميستري مزار ته ولاړ، چې له دوستم سره وگوري.

نجيب لفرابي د ميستري دا خبره چې رباني د وسله وال باند مشر دی وغندله.

## اپريل ۱۵:

محمود مستري رباني او حکمتيار د اقتدار وږي وبلل.

ميستري بې حوصلې شو، د رباني په غندنه يې خوله پرانيسته، چې په خپلو ژمنو نه دی ولاړ، د ده په وينا رباني مسعود دواړه د سولې په لار کې خنډونه رامينځته کوي، دوی د ملگرو ملتو د سولې پلان ناکام کړ، حکومت يې له قانوني تکيې بې برخې وباله.

## اپريل ۱۶:

حقاني جلال اباد کې د حکومت داسې طرحه اعلان کړه، چې جنگي ډلې پکې برخه نشي لرلی.

## د اپریل ۱۷:

کابل حکومت (رباني مسعود) اعلان کړه، چې له دوستم سره یې خبرو کې پرمختگ شوی، ډاکتر عبدالرحمن له ازبکستان نه په راگرځېدو کابل کې اعلامیه خپره کړه، مجددي له مسکو په راگرځېدو وویل، رباني د هند او روس په مینځگړتوب له دوستم سره د پخلاینې غوښتنه کړې، کابل راډیو د دوستم پر ضد تبلیغات بند کړل، دغسې یې له مزار شریف د پاسپورتونو له اجرا سره موافقه وکړه، دوستم د لسو، پینځو زرو کرنسي چلند ته وړاندې او کابل ومنل.

ډاکتر عبدالرحمن وویل: د دوستم پر ضد یې جهاد بېرته واخیست، دده په وینا د بندیانو تبادله پیل شوي، په دې توگه د دوستم پر ضد د جهاد نازل شوي ایتونه او نبوي احادیث منسوخ کړای شول...؟

## اپریل ۲۴:

استاد سیاف له جنرال حمیدگل سره ننگرهار ته تللی د اتحاد مربوط شمشاد غونډ سمڅې یې وکتلې...

## اپریل ۳۰:

استاد سیاف دویم وار له جنرال حمیدگل او سوډاني سفیر سره شمشاد غونډ ته ولاړل، شمشاد غونډ په لیدو کې د حمیدگل او سوډاني سفیر ملتیا پاموړ ده...

په شان د مړي دې مدام زه پر اوږو گرځوم
سترې ژوندونه تا به دا رنگه تر څو گرځوم

(...)



Shuhrat Nangyal is a journalist, columnist and a political analyst. He has written more than 2000 articles on different political, literary and social aspects of the situation in Afghanistan and the region, as well as published tens of books on various topics and also ran numerous publications. ''Weena pa Qalam ke'' '' Blood in the pen'' is the most prominent of his valuable analytical works, which is highly appraised in the course of biographical writing style.

Shuhrat Nangyal pioneered a new method and a unique pattern in writing of memoir or diary and also popularized professional column writing in Afghanistan. With establishing new methods in this regard he has also opened new horizons of innovation in critical and analytic writing.

This book TWELVE GRAMS BRAIN highlights what he witnessed and collected as his memoir during the Afghan civil war. In other words it is a collection of impartial analysis and accurate assessment of incidents with the help of first hand materials, based on the horrific developments which took place in the period of 1979-1999.

It is the depiction and portrayal of the civil war, factionalism, foreign interference, secret deals and the bloodshed which took place in the same period in Afghanistan but did not make its way to the press. In addition to the diary, the memoir and chronicle are strikingly fascinating because the media neither exposed nor featured the incidents of that time with such transparency and lucidity due to hostile tensions, dominant suffocation and the overwhelming oppression.

Since this memoir is written with enjoyable and fluent narration, therefore in addition to the historical aspect it enjoys important literary value as well.

Consequently this book could undoubtedly play a role of credible source for analysts and historians as well as a bright mirror of facts for the readers.

# TWELVE GRAMS BRAIN

BY: SHUHRAT NANGYAL

